# د طبابت لنډ تاریخ

پوهاند عبدالحی مومني

Afghanic






ننگرهار طب پوهنځی

Nangarhar Medical Faculty

Pashto PDF
2016

Funded by
**Kinderhilfe-Afghanistan**

# A Short History of Medicine

Prof A Hai Momeni




ننگرهار طب پوهنځی

# د طبابت لنډ تاریخ






پوهاند عبدالحی مومني

۱۳۹۵



د طبابت لنډ تاریخ

A Short History of Medicine

پوهاند عبدالحی مومني
۱۳۹۵




Afghanic

Nangarhar Medical Faculty

Prof A Hai Momeni

# A Short History of Medicine



Funded by
**Kinderhilfe-Afghanistan**





ISBN 978-9936-500-51-8



2016

بسم الله الرحمن الرحيم

# د طبابت لنډ تاریخ

## پوهاند عبدالحی مومني



| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | د طبابت لنډ تاریخ |
| لیکوال | پوهاند عبدالحی مومني |
| خپرندوی | ننګرهار پوهنتون، طب پوهنځی |
| وېب پاڼه | www.nu.edu.af |
| چاپ شمېر | ۱۰۰۰ |
| چاپ کال | ۱۳۹۵ |
| ډاونلوډ | www.ecampus-afghanistan.org |
| چاپ ځای | افغانستان ټایمز مطبعه، کابل |




دا کتاب د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې په جرمني کې د Eroes کورنۍ یوې خیریه ټولنې لخوا تمویل شوی دی.
اداري او تخنیکي چارې یې په آلمان کې د افغانیک لخوا ترسره شوي دي.
د کتاب د محتوا او لیکنې مسؤلیت د کتاب په لیکوال او اړونده پوهنځی پورې اړه لري. مرسته کوونکي او تطبیق کوونکي ټولنې په دې اړه مسؤلیت نه لري.

د تدریسي کتابونو د چاپولو لپاره له موږ سره اړیکه ونیسئ:
ډاکتر یحیی وردک، د لوړو زده کړو وزارت، کابل
تیلیفون ۰۷۵٦۰۱٤٦٤۰
ایمېل textbooks@afghanic.org


ای اس بي ان ۹ ــ ۰ ـ ۹۸۷۳۱۷۲ ــ ۰ ــ ۹۷۸

## د لوړو زده کړو وزارت پیغام




د بشر د تاریخ په مختلفو دورو کې کتاب د علم او پوهې په لاسته راوړلو، ساتلو او خپرولو کې ډیر مهم رول لوبولی دی. درسي کتاب د نصاب اساسي برخه جوړوي چې د زده کړې د کیفیت په لوړولو کې مهم ارزښت لري. له همدې امله د نړیوالو پیژندل شویو معیارونو، د وخت د غوښتنو او د ټولنې د اړتیاوو په نظر کې نیولو سره باید نوي درسي مواد او کتابونه د محصلینو لپاره برابر او چاپ شي.

له ښاغلو استادانو او لیکوالانو څخه د زړه له کومي مننه کوم چې دوامداره زیار یې ایستلی او د کلونو په اوږدو کې یې په خپلو اړوندو څانګو کې درسي کتابونه تألیف او ژباړلي دي، خپل ملي پور یې اداء کړی دی او د پوهې موتور یې په حرکت راوستی دی. له نورو ښاغلو استادانو او پوهانو څخه هم په درنښت غوښتنه کوم تر څو په خپلو اړوندو برخو کې نوي درسي کتابونه او درسي مواد برابر او چاپ کړي، چې له چاپ وروسته د ګرانو محصلینو په واک کې ورکړل شي او د زده کړو د کیفیت په لوړولو او د علمي پروسې په پرمختګ کې یې نېک ګام اخیستی وي.

د لوړو زده کړو وزارت دا خپله دنده بولي چې د ګرانو محصلینو د علمي سطحې د لوړولو لپاره د علومو په مختلفو رشتو کې معیاري او نوي درسي مواد برابر او چاپ کړي.

په پای کې د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمیټې او زموږ همکار ډاکتر یحیی وردک څخه مننه کوم چې د کتابونو د خپرولو لپاره یې زمینه برابره کړېده.

هیله منده یم چې نوموړې ګټوره پروسه دوام وکړي او پراختیا ومومي تر څو په نیږدې راتلونکې کې د هر درسي مضمون لپاره لږ تر لږه یو معیاري درسي کتاب ولرو.

په درنښت

پوهنوال دوکتور فریده مومند

د لوړو زده کړو وزیره

کابل، ۱۳۹۵

# د درسي کتابونو چاپول

قدرمنو استادانو او گرانو محصلينو!

د افغانستان په پوهنتونونو کې د درسي کتابونو کموالی او نشتوالی له لويو ستونزو څخه گڼل کېږي. يو زيات شمير استادان او محصلين نويو معلوماتو ته لاس رسی نه لري، په زاړه ميتود تدريس کوي او له هغو کتابونو او چپترونو څخه گټه اخلي چې زاړه دي او په بازار کې په ټيټ کيفيت فوتوکاپي کېږي.

تر اوسه پورې موږ د ننگرهار، خوست، کندهار، هرات، بلخ، کاپيسا، کابل او کابل طبي پوهنتون لپاره ۲۲۳ عنوانه مختلف درسي کتابونه د طب، ساينس، انجنيري، اقتصاد او زراعت پوهنځيو (۹٦ طبي د آلمان د علمي همکاريو ټولنې DAAD، ۱۰۰ طبي سره له ۲۰ غير طبي د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې Kinderhilfe-Afghanistan او ۴ نور غير طبي د آلماني او افغاني پوهنتونونو ټولنې DAUG) په مالي مرسته چاپ کړي دي.

د يادونې وړ ده، چې نوموړي چاپ شوي کتابونه د هېواد ټولو اړونده پوهنځيو ته په وړيا توگه وېشل شوي دي. ټول چاپ شوي کتابونه له www.afghanistan-ecampus.org وېب پاڼې څخه ډاونلوډ کولای شئ.

دا کړنې په داسې حال کې تر سره کېږي چې د افغانستان د لوړو زده کړو وزارت د (۲۰۱۰ ـ ۲۰۱۴) کلونو په ملي ستراتيژيک پلان کې راغلي دي چې:

*"د لوړو زده کړو او د ښوونې د ښه کيفيت او زده کوونکو ته د نويو، کره او علمي معلوماتو د برابرولو لپاره اړينه ده چې په دري او پښتو ژبو د درسي کتابونو د ليکلو فرصت برابر شي د تعليمي نصاب د ريفورم لپاره له انگريزي ژبې څخه دري او پښتو ژبو ته د کتابونو او درسي موادو ژباړل اړين دي، له دې امکاناتو څخه پرته د پوهنتونونو محصلين او استادان نشي کولای عصري، نويو، تازه او کره معلوماتو ته لاس رسی پيدا کړي."*

موږ غواړو چې د درسي کتابونو په برابرولو سره د هيواد له پوهنتونونو سره مرسته وکړو او د چپټر او لکچر نوټ دوران ته د پای ټکی کېږدو. د دې لپاره دا اړينه ده چې د لوړو زده کړو د موسساتو لپاره هر کال څه نا څه ۱۰۰ عنوانه درسي کتابونه چاپ شي.

**له ټولو محترمو استادانو څخه هيله کوو، چې په خپلو مسلکي برخو کې نوي کتابونه وليکي،**

**وژباړي او يا هم خپل پخواني ليکل شوي کتابونه، لکچر نوټونه او چپټرونه ايډېټ او د چاپ لپاره تيار کړي، زمونږ په واک کې يې راکړي چې په ښه کيفيت چاپ او وروسته يې د اړوند پوهنځيو، استادانو او محصلينو په واک کې ورکړو. همدارنګه د ياد شويو ټکو په اړوند خپل وړانديزونه او نظريات له مونږ سره شريک کړي، تر څو په ګډه پدې برخه کې اغېزمن ګامونه پورته کړو.**

د مؤلفينو او خپرونکو له خوا پوره زيار ايستل شوی دی، ترڅو د کتابونو محتويات د نړيوالو علمي معيارونو په اساس برابر شي، خو بيا هم کيدای شي د کتاب په محتوی کې ځينې تيروتنې او ستونزې وليدل شي، نو له درنو لوستونکو څخه هيله مند يو تر څو خپل نظريات او نيوکې مؤلف او يا مونږ ته په ليکلې بڼه راوليږي، تر څو په راتلونکي چاپ کې اصلاح شي.

د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کميټې او د هغې له مشر ډاکتر ايروس څخه ډېره مننه کوو چې د دغه کتاب د چاپ لګښت يې ورکړی دی، دوی په تېرو کلونو کې هم د ننګرهار پوهنتون د ۱۰۰ عنوانه طبي او ۲۰ عنوانه غيرطبي کتابونو د چاپ لګښت پر غاړه درلود.

په ځانګړې توګه د جي آی زيت (GIZ) له دفتر او CIM ( Center for International Migration & Development) چې زما لپاره يې په تېرو پنځو کلونو کې په افغانستان کې د کار امکانات برابر کړی دي، هم د زړه له کومې مننه کوم.

د لوړو زده کړو له وزيرې پوهنوال دوکتور فريده مومند، علمي معين پوهنوال محمد عثمان بابري، مالي او اداري معين پوهنوال ډاکتر ګل حسن وليزي، د ننګرهار پوهنتون د پوهنځيو رييسانو او استادانو څخه مننه کوم چې د کتابونو د چاپ لړۍ يې هڅولې او مرسته يې ورسره کړې ده. د دغه کتاب له مؤلف څخه ډېر منندوی يم او ستاينه يې کوم، چې خپل د کلونو-کلونو زيار يې په وړيا توګه ګرانو محصلينو ته وړاندې کړ.

همدارنګه د دفتر له همکارانو هر يو حکمت الله عزيز، احمد فهيم حبيبي او فضل الرحيم څخه هم مننه کوم چې د کتابونو د چاپ په برخه کې يې نه ستړې کيدونکې هلې ځلې کړې دي.

ډاکتر يحيی وردک، د لوړو زده کړو وزارت سلاکار
کابل، اپريل ۲۰۱۶
د دفتر ټيليفون: ۰۷۵۶۰۱۴۶۴۰
ايميل: textbooks@afghanic.org

## د مننی پیغامونه

کله چې زما یو عنوان کتاب «تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکاملی آن در افغانستان» په کال ۱۳۸۴ کې له چاپه راووت، د علومو اکادمی ځینو پوهانو هیله ښکاره کړه چې دغه اثر په پښتو ژبه واړول شي او ما هم د هغو سره هوډ وکړ چې دا کار به حتماً وشي او دا زما د پاره د لومړنی، هڅونې پیل و.

وروسته کله چې د محترم د طبی علومو عالی داکتر پوهاند اکادمیسن محمد موسی وردګ د روغتیا مجله په خپریدو پیل وکړ ما هم مقالې لیږلې او د تحریر پلاوی په ډله کې هم وګمارل شوم. د محترم وردګ صاحب سره څه نا څه قلمي لیکنې هم دوام درلودلې. د دغو کارونو په دوام کې وردګ صاحب په ۱۳۸۶ کال زما څخه غوښتنه وکړه چې په پښتو ژبه یو کتاب ولیکل شي، د نظامي طبابت کادرونو څخه معلومات راټول شي او کیدای شی چې څو تنه د اثر په تالیف کې ونډه واخلي.

په لومړي سرکې د محترم دوکتور ولایت حبیبي سره چې د داخلي ناروغیو په خاصه توګه د زړه د ناروغیو پیاوړی داکتر او څو کاله د اردو د مرکزي روغتون او بیا د مسلحو قواو د طبي علومو اکادمي قوماندانی دنده د ده په غاړه وه، د هیواد څخه د باندې ورسره تماس ونیول شو خو هغه لیکنې مواد نه درلود او وعده یې وکړه چې کله افغانستان ته راستون شی څه نا څه لیکنی به منځ ته راوړي. خو تر اوسه پوری دا کار ونه شو.

د محترم وردګ صاحب سره په لاندی ټکو موافقه وشوه:

۱. د اسنادو، مدارکو او لیکنو را ټولول زما په غاړه و.

۲. د لیکنو تنظیمول او په پښتو ژبه اړول او د کمپیوټر چارې د مؤمنې په غاړه وو.

۳. مالي چارې د محترم وردګ صاحب له خوا تادیه کیږي.

د کتاب نوم، برخې او څېرکیو پلان جوړ او د وردګ صاحب له خوا تائید شو.

په دې توګه لومړی د علومو اکادمۍ پوهانو او بیا د محترم وردګ صاحب څخه د زړه له کومې قدر داني او مننه کوم چې زه یې دې کار ته وهڅولم. د محترم وردګ صاحب مرسته په دغه ټکو نه خلاصیږي بلکې د نظامي طب په پوهنځي کې او وروسته زما سره ډیرې معنوي مرستې کړي دي لومړی دا چې د دوی په مرسته چې طبی علومو اکادمۍ مرستیال او نظامي طب پوهنځی قوماندان و او د محترم ډګروال انجینر محمد محسن اقبال چې د پوهنځي سیاسی چارې ور په غاړه وې زما څلور عنوانه درسي او مسلکي کتابونه د اردو په مطبعه کې چاپ شوي دي. چې د هغو څخه مننه کوم محترم وردګ صاحب زما د پوهاند علمي رتبې د لاربښوونکي استاد په توګه ډیره همکاري راسره کړې او زما د علمي ترفیع لپاره یې ډیر ښه نظر ښکاره کړی و.

دویم دا چې په ۱۳۷۹ کال په لومړیو کې محترم وردګ صاحب د ډیرو مصروفیتونو له کبله نشو کړای د افغانستان علومو اکادمۍ په جلسو کې اشتراک وکړي او د طبی علومو د مرکز کارونه پرمخ بوځي همدا و چې زه یې د یوې خوا د هغه لورنې او نیک نظر چې زما په برخه یې لرل او له بلې خوا پخوا کلونو کې د علومو اکادمۍ په سیمینارونو او نورو چارو کې مې اشتراک کړی و، زه یې د علومو اکادمي رهبري غړو ته معرفي کړم ترڅو د هغو سره په طبي چارو کې مرسته وکړم ځکه په هغه وخت کې د طبی علومو مرکز کې طبی کادرونه موجود نه وو، چې د وردګ صاحب دغه نیک کار زما څخه هېڅکله نه هیریږي.

د افغانستان په علومو اکادمۍ کې زما منل کېدل د محترم سر څېړونکی مرستیال محمد ناصر ناصر د علومو اکادمۍ علمی منشی او مولوی صاحب فیروزی د اکادمۍ رئیس په ډیره دلچسپی او خوښی سره ترسره شو. چې د هغو څخه د زړه له کومې مننه کوم.

محترم وردګ صاحب د ډیرو مصروفیتونو له کبله کوم تحریري سند یې و نشو کړای تهیه کاندی خو د کتاب لومړی برخې لپاره یې پراخه مالي مرسته کړې ده.

بيا د تورنجنرال الحاج دوکتور عبدالقيوم طوطاخيل سره تماس حاصل شو او د لومړي برخې په برخه کې په دري ژبه ليکنې راکړل او ضمناً د پاتو د کمپيوتر کولو څخه وروسته د کتاب ځني برخې تر نظره تير کړ چې لازمې لارښووني او يادداشتونه يې پيشنهاد کړل چې د کتاب د محتوا د لا ښه کېدو لپاره گټور معلوماتونو وو.

محترم پوهاند محمد صديق رازقي نړۍ وال هغه ټولې ليکنې چې ورسره وې زما په اختيار کې کيښودلې چې دغه ليکنو د کتاب محتوا ډيره اوچته کړه او د عامی روغتيا وزارت پياوړی کادر محترم دوکتور عبدالولي غيور د کتاب د دويمی برخې وروستی څپرکی لابډای کړ.

د کتاب په ليکلو کې زما د کورنۍ ټولو غړو زمينه برابره کړی خو په خاصه توگه د کتاب د کمپيوتر چاری سره د دی چې نور مصروفيتونه يې هم درلود په ډيره حوصله مندی وليد جان مؤمنی په غاړه اخستي، د تکثير او نور مصارف يې يحيٰ جان مؤمنی او حامد جان مؤمنی په غاړه اخستی چې د خدای (ج) څخه دوی ته ښه صحت، د عمر اوږدوالی او په اړوندو وظايفو کې لا برياليتوبونه غواړم.

له امکان څخه لېری نه ده چې په دغه اثر کې نيمگړتياوې او اشتباه گانې موجودې نه وي. په دې اړوند د محترمو لوستونکو څخه هيله کيږي چې د دغه اثر د لا ښه والي، اصلاح او تکميلولو کې مرسته وکړي، ترڅو په راتلونکي کې داسې يو اثر چې د هېوادوالو تنده ور باندې ماته شي، وړاندی کړل شي.

**په درنښت**

# لــــړ لـــيـــک

**سر ليک** **مخ**


د مننې پيغامونه ........................................................ الف

سريزه ........................................................ ۱


**لومړی برخه**
**په نړۍ کې د طبابت بهير**
**لومړی څپرکی**


د طبيب او طبابت په هکله ځيني خبرې ........................................ ۷

- طبابت تر ټولو غوره مسلک ........................................ ۷
- د روغتيا او ناروغۍ سره د انسان اړيکې ........................ ۱۳
- د يو طبيب اخلاق، طبيعي کرکتر او کلتور ........................ ۲۵
- د ناروغ او طبيب خپل منځوني اړيکي ........................ ۲۹
- د طبابت سوګند نامې ........................................ ۳۵


**دويم څپرکی**


په لرغونو پېړيو کې د طبابت ځانګړتياوې ................................ ۴۱

- په لومړنيو ټولنو کې د طبابت د ودی خصوصيتونه ............ ۴۱
- د طبابت وده د مريي توب په ټولنه کې ........................ ۴۵

➢ طبابت د سومريانو په زمانه کې ........................................ ۴۶

➢ د بابليانو په منځ کې طبابت ........................................ ۴۷

➢ د آشوريانو د طبابت ځرنګوالی ........................................ ۴۷

➢ په لرغوني چين کې طبابت ........................................ ۴۸

➢ په لرغوني هند کې طبابت ........................................ ۵۰

➢ طبابت په لرغوني مصر کې ........................................ ۵۲

➢ په لرغوني یونان کې طبابت ........................................ ۵۷

## دریم څپرکی

په منځنیو پېړیو کې د طبابت پر مختګ ...................................... ۷۱
- طبابت په منځني اسیا کې ............................................. ۷۷
- طبابت په اروپا او افریقا کې ........................................ ۷۹
- د منځنیو پېړیو نامتو طبیبان ......................................... ۸۳

## څلوم څپرکی

په نویو پېړیو کې د طبابت پرمختګ ........................................ ۱۲۷
- په نویو پېړیو کې پیاوړي طبیبان .................................. ۱۳۲
- په معاصر تاریخ کې د طبابت نوښتونه او پرابلمونه ............ ۱۵۱

## دویمه برخه
## په افغانستان کې د طبابت تاریخ
## لومړی څپرکی

تر اسلام د مخه د افغانستان طبابت ........................................ ۱۷۵

## دویم څپرکی

په افغانستان کې طبابت د اسلام له ظهوره د مغلو تر یرغل پورې ..... ۱۸۹
- د طب او طبابت په باره کې د انجیل او تورات لارښووونې ... ۱۹۰
- د طب او طبابت په هکله د قرآن مجید حکمونه ................. ۱۹۱
- طبابت د امویانو په دوره کې ........................................ ۱۹۶
- طبابت د عباسیانو په دوره کې ....................................... ۱۹۶
- طبابت د طاهریانو په عصر کې ...................................... ۱۹۸

- طبابت د ساسانیانو په دوره کې .................................... ۱۹۹
- طبابت د غزنویانو په زمانه کې .................................... ۲۰۰
- طبابت د سلجوقیانو په زمانه کې .................................... ۲۰۱
- طبابت د غوریانو د واکمنۍ په دوره کې .............................. ۲۰۱
- طبابت د خوارزم شاهانو په زمانه کې ................................ ۲۰۱
- داسلامي طبیبانو خدمتونه ........................................... ۲۰۶
- د اسلام تر ظهور وروسته د دی سیمې نظري او عملي خصوصیات ۲۰۸

## دریم ځپرکی

د افغانستان طبابت د مغل له یرغل نه د شلمې پیړۍ تر لومړیو پورې ۲۱۵

## څلورم ځپرکی

د افغانستان طبابت د شلمې پیړۍ له لومړیو څخه تر ۱۳۸۰ کال پورې ...... ۲۳۳
- د امیر حبیب الله خان په دوره کې .................................. ۲۳۳
- غازی امیر امان الله خان په زمانه کې .............................. ۲۳۹
- د محمد نادر خان او اعلحضرت محمد ظاهر شاه په زمانه کې ۲۴۷
- د علي آباد سناتوریم .............................................. ۲۵۷
- د روغتیا په اړوند خپرونۍ او د کلونو له مخې واقعات ......... ۲۶۱
- د جمهوریت څخه تر لنډ مهالې دورې پورې د افغانستان طبابت .... ۲۸۰

## پنځم ځپرکی

طبابت د لنډ مهالې دورې څخه تر نن ورځې ۱۳۸۰-۱۳۸۹ .......... ۲۹۳

## دریمه برخه
## په افغانستان کې د نظامي طبابت ځلانده تاریخ
### لومړی څپرکی

په تاریخ کې د نظامي طبابت ریښې ........................................ ۳۱۳

### دویم څپرکی

نظامي طبابت او د هغه پرنسیبونه ........................................ ۳۱۷

### دریم څپرکی

د نظامي طبابت تشکیلات، ښوونه او روزنه .............................. ۳۲۳
- د اسلام تر مخه نظامي طبي تشکیلات ........................... ۳۲۳
- په اسلامي نړۍ (منځنیو پېړیو) کې د نظامي طبابت تشکیلات . ۳۲۵
- سدوزایانو (۱۱۶۰-۱۲۵۹هـ) دورې روغتیایي تشکیلات ...... ۳۲۷
- په نظامي طبابت کې د هندي او ترکي داکترانو ونډه ............ ۳۳۴
- نظامي طبابت د محمد نادر شاه په دوره کې ..................... ۳۳۹
- د محمد ظاهر شاه د سلطنت په دوره کې نظامي طبابت ........ ۳۵۹
- نظامي طبابت د محمد داود خان د جمهوریت نه تر ۱۳۸۰ .... ۳۹۵
- په اردو کې د طبي اکمالاتو خصوصیتونه ......................... ۴۲۵
- نظامي طبابت د مجاهدینو د قدرت په وخت کې .................. ۴۳۶

### څلورم څپرکی

د مسلحو قواو طبي علومو اکاډمي ........................................ ۴۴۱

### پنځم څپرکی

د ملکي مدافعې عمومي ریاست روغتیایي څانګه .......................... ۴۵۳

## شپږم څپرکی

د ۱۳۸۰ کال راهیسي د نظامي طبابت څرنګوالی ...................... ۴۷۱

اخځلیک ........................................................... ۴۷۳

## ښلولې (ضمایم)

لومړۍ ښلولې:

په اردو کې د روغتیایي چارو مدیران، آمران او رئیسان ............... ۴۷۹

دویمه ښلولې:

د کتابونو او آثارو فهرست چې د نظامي طبي کادرونو له خوا لیکل شوي دي ۴۸۱

## د مؤلف لنډه پیژندنه

- پوهاند استاد عبدالحی مؤمنی ........................................ ۴۸۹

ختم ............................................................. ۴۹۷

**سریزه**

تاریخ هغه علم دی چې د مکان او زمان په قید سره د بشري ټولنو د تکامل، جریان څخه بحث کوي. د ټولنې د پرمختګ او تکامل په جریان کې امکان لري داسې حوادث منځ ته راشي چې د انسانانو د افتخار وړ وګرځي او ممکن داسې حوادث هم تیر شوي وي چې آینده نسلونه ور باندی شرمیږي.

په هر صورت دواړه خواوې باید په دقیقه توګه تر مطالعې لاندې قرار ونیسي ترڅو موجوده وضع درک کړای شي او د زمانې او ټولنې په خواست سره مؤثر ګامونه واخیستل شي. په دې توګه مونږ خپل تېر شوی تاریخ د دی دپاره مطالعه کوو چې ننني اوضاع په صحیحه توګه درک کړو او د آینده له پاره خپله لاره پرانیزی و خو یوازې د خپلې ټولنې پر تاریخ باندې ځېړنه کفایت نه کوي بلکې سیمې او نړۍ پر اوضاعو باندې ځان اګاه کول اړین دی ترڅو زمونږ خپل تاریخ نورو خلکو ته روښانه شي.

په همدی دلیل ما هڅه وکړه ترڅو د افغانستان د طبابت تاریخ په مجرده توګه تر ځېړنې لاندې ونه نیسم بلکې د سیمې او نړۍ پر تاریخ باندې هم رڼا واچوله شي. دغه اثر چې *«دطبابت لنډ تاریخ»* نومېږی په دریو برخو ویشل شوی دی.

لومړی برخه په نړۍ کې د طبابت بهیر تر غور لاندې نیول شوی چې لاندې څپرکي په برکی نیسي:

لومړی څپرکی – د طبیب او طبابت په هکله ځنې خبرې دي، طبابت تر ټولو غوره مسلک، د روغتیا او ناروغۍ سره د انسان اړیکي، د یو طبیب اخلاق، طبیعی کرکتر او کلتور، د ناروغ او طبیب خپل منځوني اړیکي او د طبابت سوګند نامې په بر کې نیسي. دغه څپرکی په حقیقت کې یو ښوونیز بحث دی چې طبي کارکوونکي څرنګه پخپل مسلک کې کولای شي د یو ناروغ او اړ انسان سره مرسته کولای شي. په دې توګه لومړۍ څپرکی د یو لارښود په څېر روغتیایي کار کوونکو ته وړاندی شوی ترڅو هغوی پر خپل

مسلک باندې وویاړی او د هغه په رڼا کې د انسان سره په ډیره مینه مرسته ورسوي.

دوهم څپرکی چې په لرغونی پیړیو کې د طبابت ځانګړتیاوې دي، د طبابت د منځ ته راتلو او ودې شرایط تر غور لاندې نیول شوی او وروسته د مریی توب په دوره کې د بابلیانو، آشوریانو، چینایانو، هندیانو، مصریانو او یونیانانو طبابت تر څېړنې لاندی نیول شوې دې.

په دریمه څپرکی کې چې په منځنیو پیړیو کې د طبابت پرمختګ په بر کې نیسي زیاتره په منځنی آسیا، اروپا او افریقا کې د طبابت څرنګوالی تشریح شوی او د دغو پیړیو نامتو طبیبان هم په ګوته شوی دی.

څلورم څپرکی – په نویو پیړیو کې د طبابت پرمختګ تر غور لاندې نیول شوی چې په هغه کې په نویو پیړیو کې پیاوړی طبیبان او په معاصر تاریخ کې د طبابت نوښتونه او پرابلمونه په مشرح توګه توضیح شوی دی.

دویمه برخه – په افغانستان کې د طبابت تاریخ نومیږي.

په لومړی څپرکی کې تر اسلام نه د مخه د افغانستان طبابت توضیح شوی دی چې په دغه برخه کې د اوستا نقش په طبابت کې روښانه شوی دي.

په دویمه څپرکی کې په افغانستان کې طبابت د اسلام له ظهوره د مغلو تر یرغل پوری شرح شوی چې عمده ټکي یې د طب په باره کې د انجیل او تورات لارښووني، د طب او طبابت په برخه کې د قرآن مجید حکمونه، طبابت په امویانو، عباسیانو، طاهریانو، ساسانیانو، غزنویانو، سلجوقیانو، غوریانو، خوارزم شاهانو، د اسلامي طبیبانو خدمتونه او د اسلام تر ظهور وروسته د دې سیمې نظري او عملي طبابت خصوصیات په مشرح توګه توضیح شوی ده.

دریم څپرکی یې د افغانستان طبابت د مغل له یرغل نه د شلمې پیړۍ تر لومړیو پورې په بر کې نیسي چې دلته د امیرحبیب الله خان، امان الله خان، محمد نادر خان، محمد ظاهر شاه خان، د روغتیا په اړوند خپرونۍ او د کلونو له مخی واقعات او د جمهوریت څخه تر لنډ مهالې دورې پورې د افغانستان طبابت چې په هغه کې د شهید سردار محمد داود خان او نورو رژیمونو په برخه کې طبابت توضیح شوی دی.

په پنځم څپرکی کې طبابت د لنډ مهالې دورې څخه تر نن ورځې شرح شوی دی.

د کتاب دریمه برخه په افغانستان کې د نظامی طبابت ځلانده تاریخ څېړل شوی چې په لومړی څپرکی کې یې په تاریخ کې د نظامي طبابت ریښې، دویم څپرکی کې نظامي طبابت او د هغه پرنسیبونه، په دریم څپرکی کې د نظامی طبابت تشکیلات، بنوونه او روزنه شرح شوی چې لاندې موضوعگانې په بر کې نیسی:

د اسلام ترمخه نظامي طبي تشکیلات، په اسلامي نړی کې د نظامي طبابت تشکیلات، د سدوزیانو دورې روغتیایي تشکیلات، په نظامي طبابت کې د هندي او ترکي داکترانو ونډه، نظامي طبابت د محمد نادر شاه په دوره کې، د محمد ظاهر شاه په دوره کې، د سردار محمد داود خان د جمهوریت نه تر ۱۳۸۰ کال پوری او په اردو کې د طبي اکمالاتو خصوصیتونه په بر کې نیسي.

څلورم څپرکی کې د مسلحو قواو طبی علومو اکادمی په مفصله توگه توضیح شوې او په پنځم څپرکی کې د ملکي مدافعې عمومي ریاست روغتیایي څانگه شرح شوی ده. په شپږم څپرکی کې په لنډ ډول د ۱۳۸۰ کال راهیسی د نظامی طبابت څرنگوالی په نښه شوی دي.

همدارنگه په دغه اثر کې دوه نښلولې چې په لومړی کې یې د روغتیایي چارو مدیران، آمرین او رئیسانو فهرست دی او دویمه نښلولې کې د کتابونو او آثارو فهرست چې نظامي طبي کادرونو له خوا لیکل شوی دي.

په دغه اثر کې ځنی برخی د «تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکاملی آن در افغانستان» د پوهاند مؤمنی تالیف چې پښتو ژباړه یې محترم پوهاند رازقی صاحب کړی، کتاب څخه اقتباس شوی دی.

**په درنښت**

## لومړی څپرکی

## د طبیب او طبابت په هکله ځینی خبری

### طبابت تر ټولو غوره مسلک

درمل او درملنه هومره لرغونتوب لري څومره چې انسانی بشریت یې لري. لومړنی انسان د آفتونو لکه باد، اوربښت، طوفان، تودوښي، یخنۍ او وحشی ژوو څخه ځان ګوښه کاوه او کله چې به درد او ناروغي ورته پیښیده نو د ځان چاره یعنی درملنه به یې کوله.

لومړنۍ ښځه چې د خپل اولاد ځانګو یې خوځوله د ځان او اولاد د درملنې په فکر کې شوه. په دغه زمانه کې هغه طبیبه او درمل جوړونکې وه. په دې توګه داسې جوتیږي چې طبابت د ټولو طبیعي علومو په پرتله ړومبي توب لري، دا ځکه چې د لومړنیو انسانانو لپاره طبابت د جدي ضروریاتو څخه شمېرل کېده، او کله چې د تکلم او ناطقې قوه پیل کیږي او د اور کشف، د کار افزار ایجادېدل، د ښکار منځ ته را تلل، پر ځمکه باندې کار کول او د وحشي حیواناتو اهلي کول، دا هغه کشفیات دي چې د هغو له برکته د طبابت لومړني ګامونه واخیستل شول، او د زماني په تیرید و سره یې خپل پړاونه ووهل تر څو چې اوسنی شکل یې ځان ته غوره کړ.

د طبابت علم او فن نسبت نورو علومو ته خاصې ځانګړتیاوې لري، دا ځکه چې دغه علم مستقیماً د انسان په خدمت کې قرار لري. او انسان د ټولو مخلوقاتو له جملې څخه الله پاک ته منلی او نږدې مخلوق دی، هغه ته یې د اشرف المخلوقات خطاب کړې او د ځمکې، هوا او بحر ټول نعمتونه یې د انسان د ګټې لپاره خلق کړیدی او هر هغه څه چې انسان ورته اړتیا لری په ځمکه کې پیدا کیږي لکه چې فرمایي: ترجمه «ستاسو د ژوندانه وسیلی مو په ځمکه کې پیدا کړي» (الاعراف - ۱۰) او د قرآن عظیم الشان په مختلفو آیاتونو کې راغلی چې: ترجمه «تاسو ته مو سیندونه او سمندرونه

مسخر کړل، څه چې په ځمکه کې دي او لمر او سپوږمۍ مو درته مسخر کړه، شپه او ورځ مو ستاسو په تسخیر کې در کړه او ټول کوم څيزونه چې په ځمکه او آسمان کې دی، هغه مو ستاسو په تصرف او تسخیر کې در کړل» (الجاثیه - ۱۲، ابراهیم - ۳۲، الحج - ۶۵، ابراهیم ۳۳، النخل ۱۲، الجاثیه - ۱۳).

پس د خدایؑ لپاره په ټولو مخلوقاتو کې انسان ډیر معزز مخلوق دی. نو طبابت هم د انسان د ښیګڼی لپاره پیدا شوی او د هغه مخلوق په چوپړ کې دی چې پروردګار باندې ډیر ګران دی. نو ځکه دغه علم له فقی څخه وروسته منل شوی علم دی. د اسلام مقدس دین ارشادات د ښځي او نارینه لپاره دا امکانات مساعد کړ ترڅو چې د طبابت په هکله تحصیل وکړی او په همدې علت وو چې د عباسیانو په زمانه کې طبابت خپلې لوړۍ څوکي ته رسیدلې وو حال دا چې لویدیځه اروپا د جهالت په خوب کې ویده و.

په دی توګه دغه مخلوق (انسان) ته خدمت کول او هغه د ناروغیو او ناخوالیو څخه نجات ورکول دنیوي او اخروي ستر اجر لري. لکه چې د دې آیات کریم ترجمه داسي ده «چا چې ژوندی کړ یو نفس په تحقیق چې حیات ور کړیدی ټولو خلکو ته» (المائده -۳۲).

خبره داده چې د طبابت غړي کومې ځانګړتیاوې باید ولري، پخپل مسلک او رشته کې څه ډول د خلکو سره چلند وکړي د روغتیایي کارکونکو خپل منځي اړیکي څنګه وي او د دې سپیڅلی مسلک نوم او نښان څنګه لوړ وساتي، د لومړی څپرکی اساسی محتوا تشکیلوی.

په دغه برخه کې د طبیب او طبابت په هکله پوهانو خپلې نظریې څرګندې کړی چې په لنډ ډول وړاندې کیږي.

په اوستا کې چې د بلخی زرتشت له خوا منځ ته راغلی دی د طبیب کیدلو په برخه کې اوږده معلومات وړاندی شوی دی او په هغو شرایطو باندې بحث شوی دی چې دغه شرطونه د «تمدن زرتشتیان» په کتاب کې داسی لیکل شوی «اساسي شرط داو چې شخص باید طبابت په دقیقه توګه زده کړي، هغه باید د مطالعې خاوند وي، ښه حافظه ولري، د طبابت حرفي سره علاقه او مینه ولري او د ډیرې تجربې خاوند وي. داسې شخص باید د خپلو ناروغانو خبری په حوصله مندۍ سره واوری او غوږ ورته ونیسی، دهغه درد سره چې ناروغ یې زغمي ناراحته شي، د ناروغ د ټولو اندامونو په دندو باندې پوه وی، په آګاهانه توګه درملنه وکړي، خوږه ژبه ولري، ملایم، مهربان او د ناروغ روغیدو ته علاقه ولري او بالاخره د خپلې حرفي

شرافت باندې باوري اوسي، د مادي ګټې او پیسو لپاره کار ونکړی او له خدایه وډار شی...»۱.

همدارنګه د زرتشتیانو په زمانه کې ځنیی مقررات لکه د کار نحوه، فیس یا اجوره، د معاینې وختونه، ناروغ ته رسیدل او داسې نور د قانون په رڼا کې په دقیقه توګه معیین شوي وو.

په ایوروئید کې د طبیب په برخه کې داسې لیکلي «که طبیب غواړي چې په ورځني کارونو کې بریالی و اوسي باید چې د ښې روغتیا څخه برخمن وي، نظیف، د درناوی څښتن او برده بار وي، لنډه ږیره ولري، پاکوالی او صفایي ته علاقه ولري، نوکان یې نیول شوي وي، سپین کالی یې اغوستي وي، کله چې له کوره وځي په لاس کې باید امسا او پرسریې چترۍ وي، د ښځو سره لاپې ونه وهي او ټوکې ونکړي او په یو چپرکټ باندې د هغو سره کښې نه نې، خبرې یې ورو، مؤدبانه او امیندوار کوونکي وي، زړه یې پاک او د صداقت څخه ډک وي، کرکتر یې تل د راستی او صفا سره سینګار وی، مزاج یی سوړ او د نیک او ګټورو کارونو سرته رسولو لپاره هاند او کوښښ وکړی. «ښه طبیب دنده لری چې تل ناروغان ومنی، په دقیقه توګه یی معاینه کړی او ډارن او غیر مصمم نه وی او د دندی د اجرا کولو په وخت کې وارخطا نه شی»[۲].

«د سومریانو په زمانه کې د حمورابی قانون چې د بشریت په تمدن کې ډیر پخوانی قانون دی منځ ته راغلی چې پر یوه تیږه باندې چې دوه متره او پنځه څلویښت سانتی متر لوړ والی لری په متن کې یی د طبیب حق الزمه هم لیکلی شویده»[۳] همدارنګه په دغه قانون کې د طبیبانو د حق الزحمی سربیره د طبیبانو او قابله ګانو د جریمی په هکله هم لیکنی شوی دی، د بیلګې په توګه که د غاښو طبیب له خوا د ناروغ یو غاښ مات کړی شی طبیب هم د یو غاښ څخه محرومیږی یعنی د طبیب غاښ ایستل کیږی. او یا که طبیب د یو ناروغ سترګه چوی لاس یې پرې کیږی او که درملنه یې پر مرګ باندې ختمیږی باید یو غلام وپیری او ارباب ته ور کړل شی او که دایه د پلار او مور پرته له اجازی څخه بل ماشوم ته شیدی ور کړی د هغی تی پرې کیږی.

---

۱- عبدالحی مؤمنی - تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکاملی آن در افغانستان ، مطبعه آزادی ، کابل ۱۳۸٤ - ص - ۷۰ .
۲- اثر فوق.
۳- پوهندوی دوکتور محمد انور ترابی - طب در گسترده تاریخ ، ۱۳۸۵ شاهمامه هالند ، ص - ٤۵ .

سینوهه د فرعون مخصوص طبیب په دوه ټوکو کې یو کتاب لیکلی چې په زړه پورې طبی مسایل پکی لیکل شوی دی. د بیلګې په توګه هغه وایي «په دارالحیات کې پوه شوم چې د طبیب په روزنه کې استعداد ډیر اهمیت لری. زه متوجه شوم هومره چې استعداد په روزنه کې اهمیت لری، تحصیلات د اهمیت وړندی. ځکه که محصل استعداد ونلری د دارالحیات څخه چې په نړۍ کې ډیره لویه مدرسه ده د یو واقعی طبیب په توګه د هغه څخه خارجیدلای نه شی. «څوک چې دارالحیات (د مصر د طبس په ښار کې لویه مدرسه وه) کې شاملیږی باید پر طب مین وی او د دې علم په لاره کې خپل هر شی قربان کړی او په لومړۍ درجه کې خپل استراحت باید قربان کړي»[1]. زه په دارالحیات کې پوه شوم چې د طبیب په هکله اعتماد ډیر مهم دی او ناروغ باید ایمان او عقیده ولری چې د هغه معالج طبیب حاذق او بصیر دی او د اشتباه څخه مصئون دی.

همدارنګه په لرغونو زمانو کې اصولنامی هم منځ ته راغلی چې د اطبا و مسلکی کارونه یې تنظیمول.

د بیلګې په توګه د مان (MANN) د قانون پر اساس کله چې د طبیب له خوا د ناروغ درملنه په درسته توګه صورت ونه مومی باید جریمه ور کړی.

هیپوکرات (بقراط) ۳۷۷ - ۴۶۰ ق م نامتو پوه او حکیم ډیر با ارزښته آثار د طبیبانو انسانی، ټولنیزی او مسلکی روزنی په برخه کې پری اینبی دی چې تر اوسه هیڅا ندی پری ایښی. هیپوکرات به ویل «د هر ناروغ سره دی بې له د هغه د جیب حجم او د اقتصادی سطحې څخه مرسته وشی. او کله چې ضرورت وی د یو پردی، خارجی او فقیر ته باید مرسته ورسوی او هغه حتماً باید ورسوی، ځکه چیرته چې د انسان او انسانیت سره عشق موجود وی هلته د مسلک سره هم عشق موجود دی»[2].

نوموړی وصیت کوی چې د طبابت زده کوونکی باید یو آزاد سړی او د ښه طبعیت څښتن وی. په عمر کم او په ونه برابر او د متناسبو اندامونو خاوند وی، ښه ذکاوت او پوهه ولری او د مشورې او مصلحت په وخت کې دې د ښې رایې او د ښه فکر خاوند وی او باید زړه ور او پاک نفسه وی او خوږه ژبه دې ولری. په پیسو باندې مین نه وی، غبی نه وی، په ناروغ

---

۱- اثر فوق - ص - ۵۷ .

۲- عبدالحی مؤمنی - تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکاملی آن در افغانستان ، مطبعه آزادی ، کابل ۱۳۸٤ – ص - ۲۱ .

باندې مهربان وی او د هغه راز دې پټ وساتی، ځکه چې راز راز ناروغان شته چې خپل راز طبیب ته وایی، خو نه غواړی چې د ده راز نورو ته څرګند شی. که چیرې ناروغ ورته ښکنځلی وکړی باید هغه وزغمی، ځکه چې ځنی د برسام ناروغان شته دی چې دوی په سودا او وسواس باندې اخته وی او خلکو ته خوشې خوشې ښکنځلی کوی ...

سپینی، پاکی او پستی جامی واغوندی، ښه معتدل تګ وکړی یعنی نه دې منډې وهی او نه ورو ورو تګ چې د ځان د کهالت او لټی باندې دلالت وکړی. هر کله چې طبیب ناروغ ته ورشی باید چې پلتری ووهی او وروسته له هغه ډیر څوکه څوکه او ورو ورو د ناروغ د حال پوښتنه وکړی او خپل ځان دی ورته باثباته ښکاره کړی ...[1]

د هیپوکرات سوګند نامه چې تر اوسه خپل ارزښت یی له لاسه ندی ور کړی وروسته وړاندې کیږی.

هیپوکرات له طبیبانو څخه غوښتل چې هغوی باید عالی کرکتر ولری «او پریږ ده چې دی (طبیب) د خلق او عادت له نظره، عالی انسان، مهربان، ستر او انسان دوست وي»[2] هغه څرګندوی چې عجله او وارخطایی سره د دی چې ګټور هم وی تحقیر کوونکی دی. هغه طبیب چې خپله خواخوږی په مسخره ګۍ او خندا سره اظهار وی او خوله یی بې مور ده په شوخۍ باندې خلاصه وی، فکر کیږی چې متاثر کوونکی دی او باید د هغه څخه په جدی توګه اجتناب وکړی.

د جالینوس (۱۳۱- ۲۰۱م) د طبابت اساسی مقرره په دریو برخو کې خلاصه کیږي:

۱- د روغتیا د ساتلو په خاطر لازمه ده چې د مشابه - مشابه پرنسیب څخه استفاده وشی.

۲- د ناروغۍ د درملنې په خاطر باید د ضد - ضد پرنسیب څخه استفاده وشی.

۳- په درملنه کې طبیب باید یواځی طبیعت سره مرسته وکړی، ځکه غالباً خپله طبیعت درملنه کوی.

---

۱- پښتو آریانا دایرةالمعارف - لومړی ټوک ، ۱۳۲۹ ، دولتی مطبعه ، کابل - ص - ٦٨٤ .
۲- عبدالحی مؤمنی - تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکاملی آن در افغانستان ، مطبعه آزادی ، کابل ۱۳۸٤ ــ ص - ۳۲ .

جالینوس یا ګالن داسی شمیری چې د طبیب اساسی دنده دا ده چې د اورګانیزم دفاعی قدرت وساتی.

په منځینو پیړیو کې داسی طبیبان موجود وو چې د طبیبانو او درمل جوړونکو کړنی یی ستایلی وو او د دندو په ارتباط یی لکه هیپوکرات مقررات وضع کړی وو. د دغو له ډلی څخه یو هم تیوفراست پاراتیلزس یا پاراسلز (۱۴۹۳- ۱۵۴۱م) داسی لیکلی دی «د طبیب قوت په زړه کې دی، د هغه کار باید د الله پاک په لارښوونه سرته ورسیږی، د تجربې او زده کړې په روښنایی سره روښانه وی، ډیر ښه درمل د مسلک سره له علاقمندۍ او عشق څخه عبارت دی. دی زیاتوی چې طبیب نه باید ریا کار، مضر، دروغجن، بې مغزه او لاوبالی وی، بلکې مؤدب او راستکار سړی وی»[1].

نامتو لیکوال چخوف لیکی «د طبابت ځانګه د قهرمانۍ یو کار دی چې د ثبات، متانت او اندیشو د پاکوالی مستلزم دی. د عقلی له نظره صریح د اجتماعی برخورد له امله عادل او د فزیکی له نظره لطیف وی»[2].

د نن ورځی طبیب یواځی دا دنده نه لری چې د مسلکی سطحی دانش لوړ بوځی، بلکې هم پخپله د ښوونې او روزنې، کلتور او فرهنګ څښتن، او نورو ته د روغتیا او سعادت ناقل وی. همدارنګه خپل شاوخوا او د محیط لپاره لرونکی د نیک کردار او اطوار او د حمیده اخلاقو سره په ټولنه کې سرمشق وی.

ابن سینا لیکی چې طبیب باید منطق باندې پوه وی ترڅو د ناروغیو جنس او ډول (نوع) درک کړی او د فصل، خاصه او عرض په منځ کې فرق وکړی او په اخر کې علت وپیژنی، ځکه تر څو چې علت پیدا نه شی درملنه صورت نه مومی ...[3]

کله چې د لیندی د میاشتی ۲۹ مه په کال ۱۳۱۶ د طب د پوهنځی او درمل جوړولو عالی ښوونځی فارغ التحصیلانو ته دیپلومونه او بری لیکونه توزیع کیدل، پروفیسور بای حسن رشاد چې د پوهنځی رئیس و، اوږ ده وینا وکړه چې په لنډه توګه څو ټکو ته یی اشاره کیږي:

---

۱- اثر فوق - ص - ۳۲ .

۲- دوکتور شیر احمد زاهدی - نقش موثر تربیه خودی در حیات مسلکی یک طبیب - مطبعه اردو ، ١٣٦٩ کابل، ص - ٤٧ .

۳- مجله خراسان دوره سوم ، سال ۲۷ - میزان – عقرب ١٣٨٦ - ص - ۱۵ .

د پوهنځی رئیس د دیپلوم پر اهمیت باندې خبرې وکړی او د فارغانو څخه داسی غوښتنی لري:

۱- د اولو الامر اطاعت هیڅکله مه هېروئ.

۲- خپل علم او اقتدار پر مخ بوځئ. د مثال په توګه دایه که هر څومره شیدی رو دونکی ماشوم باندې مهربانه وی او تری خوښ راشی، خو د اصلی مور شفقت نه لری.

هر هېواد مکلف دی متقابلاً یو بل سره مرستی وکړی، خو د هیواد زامن دی چې خپل وطن د ترقۍ لوړو مدار جوته رسوی.

۳- هیله لرم زیار وباسئ چې خپل پوهنځی نړیوالو ته ور وپیژنئ.

۴- کله چې ناروغ ته غوښتل کیږئ هیڅکله د وفق او ملایمت څخه د باندې حرکت ونکړئ. د حق الزحمی اخستل ستاسو حق دی، ځکه علم مو مصرف کړیدی، خو کله چې ستاسو د حق الزحمی ور کولو توان ونلری، په دی وخت کې مادی منفعت ته سترګی مه نیسئ او د دغی مبارک حدیث (خیر الناس من ینفع الناس – یعنی بهترین خلک هغه دی چې ګټه یی خلکو ته رسیږي). ارشادات په نظر کې ونیسئ او د الله پاک د رضا د لاس ته راوړلو لپاره قدم کیږ دئ. پخوانیو ویلی «یو په پیسو او بل په دوعا».

## د روغتیا او ناروغۍ سره د انسان اړیکي

د طبابت تاریخ د انسان د منځ ته راتلو سره جوخت پیل کیږی، ځکه انسان د ژوندی موجود په توګه د ژوندانه د دوام لپاره ضرورت لری او د خپل روغتیا د ساتلو په هکله هاند او کوښښ کوی. خو د انسان دغه غوښتنی تل د طبیعی عواملو او وحشی ژوو تر حملې لاندی راغلی او دهغو له کبله ناروغۍ او ټپونه منځ ته راغلی، او همدارنګه د تاریخ په پړاوونو کې قبیلوی جنګونه هم ټپیان منځ ته راوړی چې هرو مرو ځارنی، مراقبت او درملنې ته یی ضرورت درلود، چې د تجربه لرونکو اشخاصو له خوا درملنې لاندی نیول شوی دی.

په دی توګه نشوکولای د طب او طبابت تاریخ په دقیقه توګه مشخص کړو چې انسانانو د درد، ناروغۍ او درملنې په هکله منځ ته راغلی شروع کړو، ځکه په دی توګه زمونږ په لاس کې مشخص تاریخ نشته او پر حدس

او گمان باندې تکيه کيدلای نه شی، ځکه تاريخ په مکان او زمان باندې مقيد دی.

څرنگه چې وويل شول درملنه د انسانانو د لومړنيو ضروورياتو څخه شميرل کيږی او د تجربو پر اساس يې خپل فعاليتونه پر مخ بيولی دی، خو علم هم د انسان د تجاربو محصول دی. په دې توگه د تجربو پر اساس او د زمانی د تيريدو سره د ژوند پرابلمونه سره مقايسه شوی او په آخره کې يوه مطلوبه طريقه يی لاس ته راوړې ده.

انسانانو تر ټولو د مخه د غذا په توگه د بوټو څخه استفاده کوله چې د زرونو کلونو په درشل کې د ځينو بوټو درملی خواص يې وپيژاندل، خو کله چې خط (ليکل) منځ ته راځی د هغی راهيسی د انسانانو ټولی لاس ته راوړنی په ليکل شوی يا رسم شوی شکل وروستی نسلونو ته انتقال مومی.

روښانه ده چې انسان د يو ژوندی موجود په توگه د خپلې بقا او ژوند لپاره تندرستی او روغتيا ته ضرورت لری او د روغتيا د تامينولو لپاره د خپل خلقت څخه د ډيرو ناخواليو سره سره د نورو علومو د تکامل او پرمختگ سره طبابت هم خپلی لاس ته راوړنې پرايښی دی.

په دې بحث کې د انسان ارتباط او پيوند د روغتيا او د تندرستۍ (سلامتي) پديدو سره او هغه تعريفونه چې په دې هکله موجود دی تر څيړنی لاندی نيول کيږی.

د طب د علم هدف د فزيکی او روحی روغتيا تقويه، د ناروغيو درملنه، د روغتيا ساتنه، د معيوبتونو نه مخينوی او د بيارغونې څخه عبارت دی چې د اساسی اسلوبو او موازينو له جملې څخه شميرل کيږی.

ابو علی سينا د (قانون طب) په کتاب کې ليکلی چې د طب موخه د سلامتی په موقعيت کې د تندرستی حفظ يا ساتنه او د هغه اعاده د ناروغۍ په وخت کې دی.

معالجوی طب د ناروغيو علتونه، علايم، تشخيص او له درملنې څخه بحث کوی او وقايوی طب د ناروغيو اسباب، د سرآيت شکلونه، شيوع، توزيع او د مخنيوی او د کنترول له تدابيرو څخه بحث کوی. حال دا چې اجتماعی طب ټول هغه اجتماعی، اقتصادی، سياسی، مذهبی او نور عوامل او فکتورونه چې د ناروغيو منځ ته راتگ، شيوع، دوام، دبيرته راگرځيدو (عود- نکس) کې رول لری په واضحه توگه رابرسيره کوی او د لاس رسی او اصلاحی شيوې يی روښانه کوی.

د یادونې وړ ده چې د طبی علومو دری واړه خواوی د یو بل لازم او ملزوم دی او یو د بل سره نه شلیدونکی او نږدی اړیکی لری. د بیلگې په توگه که وقایوی طب وجود ونلری او یا نیمگړتیاوې ولری، یواځی معالجوی طب نه شی کولای په پراخه توگه لاس ته راوړنې ولری او برعکس، که اجتماعی شرایط موجود نه وی او یا نیمگړتیاوې ولری بیاهم د طب هغه اهداف او ستراتیژی په عمل کې پیاده کیدلې نه شی.

نن ورځ د عصری ژوند په شرایطو کې د اجتماعی چاپیریال عوامل او فکتورونه د انسانانو روغتیایي ژوند باندې دومره تاثیر اچولی دی چې ځیرونکی او پوهان د ډیرو پرابلماتیکو ناروغیو علل او انگیزه د ژوند د چاپیریال تاثیر بولی.

نن د طبی علومو هدف نسبت پخوانی نوم ځخه چې طب او طبابت د انسانانو له خوا د استفادی وړ گرځیدلې دی، ډیر وسیع او پراخ دی چې په حقیقت کې هماغه د تندرستی ساتنه او د روغتیا اعاده د سلامتی او تندرستی د نه موجودیت په صورت کې دی.

له دی کبله طب د تیوریکی او پراتیکی فعالیتونو مجموعه ده چې د هغه د اهدافو د تأمین په موخه او د انسان د روغتیا او سلامتی د اعادې په خاطر ور ځخه کار اخستل کیږی. لومړی تر ټولو باید د صحت یا روغتیا په هکله معلومات وړاندی شی.

صحت یا روغتیا د نړیوالی روغتیایی اداری له خوا داسی تعریف شوی دی «عبارت ده له بشپړې بدنی، نفسی، ټولنیزی او روحی سلامتی ځخه ... یوازی د ناروغۍ او جسمی کمزورتیا نشتوالی روغتیا نه ده».

هغه ځه چې په دی تعریف کې د پاملرنی وړ دی، هغه بشپړه سلامتی یا عافیت دی نه له نمیگړی سلامتی ځخه بحث کوی او دا هغه روغتیا ده چې مونږ یی غواړو چې انسان په بهترین حالت او د بدنی، نفسی، اجتماعی او روحی سعادت او سلامتی په لوړه درجه کې وی.

باید وویل شی چې روغتیا لکه نوری ټولینزی پدیدی د هغو شرایطو مولود ده چې شخص په هغه کې ژوند کوی او د دغه واقعیت پر اساس یو عالم د پرکوس (Perkus) په نامه داسی نظر وړاندی کړی دی.

*«روغتيا د شاو خوا د محيط (چاپيريال) فکتورونو سره د يو متوازن حالت ښکاره کوي»*[۱].

د پورتني تعريف پر اساس ويلاې شو چې محيطي عوامل او فکتورونه د انسان پر اورګانيزم او روان تاثير کوي او کله چې دغه موازنه سر چپه شي ناروغۍ رامنځ ته کيږي. حال دا چې د انسان عضويت په شکل نه يو شکل عکس العمل ښکاره کوي چې موازنه بيرته د خپل ځان په ګټه مستقر کړي.

هغه عوامل چې د انسان پر روغتيا تاثير اچوي ډير زيات دي، خو په عمومي توګه ويلاې شو چې ناروغۍ د انسان (ميزبان) او سببي محيط فکتورونو عمل او عکس العمل دي.

بايد وويل شي چې محيط يا چاپيريال زمونږ څلور خواوې دي چې په هغه کې ژوند او کار کوو يا د ژوند چاپيريال ټولې پديدې او شيان چې زمونږ په شاو خوا کې شته او د هغوی څخه په يو ډول نه يو ډول ګټې تر لاسه کوو، د ژوند چاپيريال په نامه يادېږي.

هيپوکرات د انسان روغتيايي محيط او ماحول سره ارتباط ور کاوه او د غذايي موادو، هوا، اوبو او نور فکتورونه يې د انسان پر اورګانيزم تدقيق کړل. هغه د څلورو مايعاتو تعادل د انسان په اورګانيزم کې بيان کړل چې عبارت دي له ويني، مخاط (بلغم)، توره او ژيړه صفرا څخه. کله چې انسان روغ وي دغه مايعات په يو معيين تعادل کې قرار لري او کله چې دغه تعادل په عضويت کې ګډوډ شي ناروغي منځ ته راځي. د هيپوکرات په عقيده د يو طبيب اساسي دنده دا ده چې د دغو مايعاتو تعادل په عضويت کې برقرار کړي.

د چاپيريال د نه درک کولو او نه پيژندلو په نتيجه کې د يو طبيب لپاره به ډيره ګرانه وي چې روغتيا تقويه کړي، ناروغۍ کنترول او وقايه کاندي او د ناروغ بيارغونه وکړي. ځکه په روستي وخت کې داسي عقيده ده چې ناروغۍ د انسان او چاپيريال په منځ کې د موازنې يا تعادل ګډوډۍ ده.

۱- پوهندوی دوکتور محمد انور ترابی - طب در گسترده تاريخ - ۱۳۸۵ - شاهمامه - هاليند ص ۱٦ .

لکه چې علي ابن عباس زر کاله د مخه په لنډیز سره وایی «روغتیا د بدن اعتدال دی»[۱].

او ابن سینا هم زر کاله مخکی د دی توازن د دنیامکیت تعبیر پخپل قانون کتاب کې داسی تعبیر کړیدی «هغه اعتدال چې د انسان په فطرت کې اغېزل شوی دی د دوو حدنو – افراط او تفریط – تر منځ حالت دي».

په دې توگه د چاپیریال فکتورونو کې د توازن نشتوالی د ایکالوجی محیط خرابیږی او په نتیجه کې د انسان، حیوان او نبات ژوند په خطر کې لویږی او په پای کې د انسانانو لپاره د ژوند چوکات او کړۍ تنگیږی او د ژوند د ډیرو ستونزو سره مخامخ کیږی خو باید وویل شی چې د انسانانو رول د ژوند د چاپیریال د توازن یا د توازن د نشتوالی په خاطر له هرڅه نه زیات د پام وړ او ارزښتمن دی.

هغه څه چې د بدۍ په صورت کې د روغتیایی موازینو د راټیټولو او یا د ښه والی په صورت کې دهغه د جگولو (ښه کولو) امکانات برابر وی، په انسان او چاپیریال کې د هغو عواملو مجموعه ده چې ابن سینا ورته «د انسان د بدن د حالاتو ساتونکی او بدلون ورکوونکی اسباب» بللی او لاندې عوامل پکی شاملوی. لکه هوا او مربوطات یی، خواړه، اوبه، څښاک، د فضلاتو څخه د بدن خالی کیدل، پرهیز کول، چاپیریال، ښار، مسکن او مربوطات یی، بدنی او نفسانی حرکات او سکنات، خوب، ویښتوب، عمر، د عمر او جنس اختلاف، مصنوعات او عادتونه»[۲].

علی ابن عباس بدنی روزنه یا سپورت، مساژ، حمام کول او اجماع یا جنسی اړیکی هم پکې ورزیاتوی او وایی که چیرې دا کارونه پخپل ځای، په موقع او د بدن د هری برخی د ضرورت پر اساس په مناسب کمیت، کیفیت، وخت او ترتیب سره استعمال شی، هر څه پخپل شکل ساتل کیږی او د انسان روغتیا دوام مومی.

دلته کولای شو دغه عوامل په دوو برخو یا مجموعو وویشو:

---

۱- داکتر محمد هیثم خیاط - د چاپیریال روغتیا د اسلام په میزان کی - نړیواله روغتیایی اداره - پنځم مخ - ۱۹۹۷ کابل .
۲- داکتر محمد هیثم خیاط - د چاپیریال روغتیا د اسلام په میزان کی - نړیواله روغتیایی اداره - پنځم مخ - ۱۹۹۷ کابل .

لومړۍ برخه چاپېريال دی چې ځنی عناصر يې په ټولو وګړو پوری تعلق لری لکه اوبه، هوا، خواړه، فضله جات او ځنی په انفرادی ډول په هر وګړی پوری مربوط دی لکه کور، صنعت او کار.

دوهمه برخه يا مجموعه چې د روغتيا پوری له اړوند سلوک څخه عبارت دی او د ابن سينا او علی ابن عباس په وينا دا د ژوندانه عادتونه او طريقی دی لکه خوراک او څښاک، خوب، ويښتوب، بدنی روزنه، بيکاری، ستونزی، سوکالی، ټولنيزی او کناره ګيری، چې دا مجموعه کولای شو د بدنی او نفسانی حرکاتو او سکناتو په نامه ياد کړو او وروسته له هغی څخه کولای شو چې جنسی سلوک، طبيعی معالجه او بالاخره په روغتيا پورې اړوند د سلوک څرنګوالی او همدارنګه عمر او د جنس له پلوه اختلافات په نظر کې ونيسو.

د ژوندانه د دې سلوک او تګ لارې په هکله علی بن عباس وايی «د روغتيا د ساتنی په ټولو برخو کې لازمه ده چې عادتونو ته پاملرنه وشی ځکه چې نظر او فکر کول په دی هکله د روغتيا په ساتنه او د ناروغيو په تداوی کې زيات اهميت لری او که موده يې اوږده شی لکه طبيعی شی داسی کيږي» دغه دوه مجموعی له هغو عواملو څخه دی چې په حقيقت کې په روغتيايي پوتانسيل يا په ګټه يا په زيان اغيزه کوی.

په دې توګه د انسان ميزبان عمل او عکس العمل د محيطی عواملو او سببی عامل يوه ديناميکه جنبه لری او د هرم پرنسيب تعقيبوی يعنی روغتيا او ناروغتيا د هرم د اتکا د نقطی نتيجه او د دوو نهاياتو توازن دی. لذا يو کوچنی تغير په هر يو نهاياتو کې او يا د هرم د اتکا پر نقطه باندی، د دغه توازن د منځه تللو موجب ګرځی.

نوميالی پوه زيګموند فروئيد د دغه ديناميک توازن له منځه تلل ته د روانی له نظره د انسان د دفاع نه موجوديت د خواستو او تمايلاتو په مقابل کې بولی او وايی کله چې تمايلات او خواستې د هغه د آرزو سره سم لاس ته ورنه شی، روانی عقدۍ منځ ته راځی او کله چې دغه عقدۍ زياتۍ شی د انسان روان سر چپه کيږی او د نورمال حالت څخه غير نورمال يا انارمل وضعيت ته اوړی، کيدای شی چې د دغو عقدو د سپړلو په نتيجه کې انسان لومړنی نورمال حالت ته واوړی. همدارنګه د انسانانو غير نورمل حالت د هغه روزنې پورې تړی. په دې توګه چې ټولنيز چاپيريال د انسان په روزنه باندې عمل کوی او د انسان کرکتر او شخصيت منځ ته رواړی. په دي هکله پوهان ادعا کوی چې که دوه ماشومان په دوو متفاوتو اجتماعی شرايطو کې

تولد شی د بیلګې په توګه یو د پاچاهی په قصر کې او بل په یوه ځنګله کې په وحشی بومیانو کې چې د انسان د تمدن څخه لیری وی، او دغه تولد شوی ماشومانو محل او ځای ته تغیر ور کړو، او کله چې هغوی رشد او تکامل وکړی وحشی بومی به یوه متمدنه شهزاده وی حال دا چې متمدن شهزاده یو وحشی بومی منځ ته راځی.

دغه پوهانو د چاپیریال او د روزنی نقش د انسان د شخصیت پربنسټ برازنده او تعیین کوونکی بولی.

د پورتنیو دری ګونی عواملو یعنی سببی فکتورونه، چاپیریال فکتورونه او انسان میزبان د مطالعی په اثر چې د هر یو په موازنه کې کوم تغیر او تحول منځ ته راشی د ناروغۍ د منځ ته راتلو باعث ګرځی. داسی معلومیږی چې د طب او طبابت هدف د دغه توازن ایجادونکی دی تر څو مسئله د روغتیا په ګټه تمامه شی.

باید وویل شی چې سببی عوامل ساکښ او بی سا عناصر دی چې د حساس میزبان په عضویت کې او د مناسبو شرایطو تر اثر لاندې د ناروغیو منځ ته راتګ زمینه برابروی او دغه سببی عوامل په بیولوژیکی، غذایی، کیمیاوی، فزیکی او میخانیکی باندې تصنیف کیږی. او د چاپیریال سببی فکتورونه فزیکی، بیولوژیکی او اجتماعی – اقتصادی چاپیریال څخه عبارت دی.

د انسان میزبان عوامل هم پخپل وار سره د روغتیا په څرنګوالی او د ناروغۍ په ایجاد کې په آګاهانه او غیر آګاهانه صورت سره برخه لری. دغه میزبان انسان عوامل په دوو ګروپو یعنی داخل المنشأ یا ارثی او خارج المنشأ یا محیط سره جدا کیږی چې د ناروغی د منځ ته راتللو کې انکار نه منونکی رول لری.

په دې برخه کې ضروری بلل کیږی ترڅو د روغتیا، ناروغۍ او درملنې په هکله اسلامی نصوصو ته مراجعه وشی.

د درملنې یا معالجی په برخه کې باید وویل شی چې حضرت پیغمبر ﷺ د تداوی اساسات تثبیت کړی او د هغه امر یې کړی دی، لکه څنګه چې ابی داود له اسامه ابن شریک څخه په صحیح حدیث سره روایت کوی چې «تداوی وکړئ» او د ترمذی په راویت یی فرمایلی «بلی ای د خدای ج بندګانو تداوی وکړئ». پیغمبر ﷺ پخپلو مبارکو فرمایشونو سره د ناروغانو پرمخ د شفا د هیلو دروازی پرانستی، لکه څنګه چې په بل حدیث کې له ابی

هريره څخه امام بخاری روايت کړی «لوی خدای ج هيڅ ناروغی نه ده راوستلی، ترڅو يې د هغی شفايی نه وی را استولی»[1].

په دې ډول يې طبيبان د درمل لټولو او دوا ته د لاس بری لپاره د علمی څېړنو پرمخ بيولو ته هڅولی دی. لکه څنګه چې د مسلم احمد په روايت له جابر څخه په حديث کې راغلی «لوی خدای ج هر ناروغ ته شفا راواستوله، هغه چا وپيژندله چې پوه شو او هغه څوک چې پوه نشو ويی نه پيژندله».

د تداوی (درملنې) په برخه کې بله د پام وړ خبره دا ده چې پيغمبر ﷺ د «روحانی طب» په نامه پر ضد را پاڅيدلی؛ ملاحظی، تجربی، اسبابو او مسبباتو پورې اړوند طبابت ته يی ارزښت ورکړی، او هغه څه چې يی د جاهليت په دوران کې د عربو او غير عربو په منځ کې د ناروغۍ د علتونو په باب خپر ول، چې د ناروغيو ظاهری اسباب او طبيعی عوامل به يې پريښودل، او په پټو نامعلومو اسبابو باندې به يې تکيه کوله، باطل وګر ځول، لکه د مريو او صدفونو ځړول، بی معنی سحر او جادو او افسون، بی مفهومه غوذی او شعبده بازی، چې د جادوګرو، ساحرانو او تيرايستونکو له خوا يې رواج موندلی وو. په دې اړوند حضرت پيغمبر ﷺ داسی فرمايلی دی «هر چا چې (په دې مقصد) مرۍ په غاړه ځړولی وی داسی لکه چې شرک يی راوړی وي» (د امام احمد په روايت له عقبه بن عاصر څخه).

اسلامی امت بلکی نور ملتونه هم په دې متفق دی چې شريعت د پنځه ګونو اړتياوو د ساتنی لپاره عبارت دی له دين، نسل، نفس، مال او عقل څخه، وضع شوی دی. او دا هماغه د انسان اساسی حقوق دی چې د هغو له جملې څخه د دريو ساتنه چې هغه نفس، نسل او عقل وی، د روغتيا او سلامتيا له ساتنی پرته نه بشپړيږی. خو د روغتيا ساتنه پخپله د دغو اساسی اړتياوو د ساتنی لپاره لازمی خبره ده. «د نورو اړتياوو او د ژوندانه د اساسی حاجتونو د پوره کيدو پرته چې هغه خواړه، څښاک، کور، کالی، خاوند يا ميرمن، د حمل و نقل وسايل، امنيت، تعليم او لګښتونو منبع او مدرک دی، د روغتيا ساتنه تر سره کيدای نه شي»[2].

---

۱- داکتر محمد هيثم خياط - د چاپيريال روغتيا د اسلام په ميزان کی - نړيواله روغتيايی اداره - پنځم مخ - ۱۹۹۷ کابل .
۲- داکتر محمد هيثم خياط - د چاپيريال روغتيا د اسلام په ميزان کی - نړيواله روغتيايی اداره - ۹ مخ - ۱۹۹۷ کابل .

حضرت پیغمبر ﷺ روغتیا ته لومړی درجه ارزښت ور کړی او فرمایي «له خپل خدای ج څخه روغتیا او سلامتی وغواړی، ځکه چې هیچا ته وروسته له ایمان نه تر روغتیا او سلامتی غوره شی ندی ورکړ شوي» (د ابن ماجه په روایت له ابی بکر څخه)، او هم یی فرمایلی دی «شتمنی هغه چاته چې پرهیزګاره وی بده نه ده خو روغتیا د پرهیزګار لپاره تر شتمنی غوره ده» (دغه حدیث ابن ماجه، حاکم او احمد له معاذ بن عبدالله بن خبیب له پلار څخه یی، له تره څخه روایت کوي). او بیا فرمایی «هر څوک چې له تا سو څخه چې روغ ځان له خوبه راویښ شی، په خپله کورنۍ کې په امن وی او د ورځی روزی هم ولری داسی ده لکه ټوله دنیا چې یی په واک کې وي» (د ابن ماجه په روایت له عبدالله بن محصن انصاری، له پلار څخه).

همدارنګه د خپل تن (جسم) په ساتلو کې ارشادات موجود دی لکه چې آن حضرت ﷺ فرمایلی «په یقین سره چې جسم دی پرتا حق لري» (متفق علیه عبدالله بن عمرو څخه).

وروسته له هغو چې اسلام انسانی حقوق تثبیت کړل څوارلس پیړۍ وروسته د نړۍ خلکو وکړای شول د بشر د حقوقو نړیواله اعلامیه صادره کړی. خو د جسم او جسد په باب یې لا تر اوسه هم کومه اعلامیه نده صادره کړی چې جسم پر خپل خاوند حق لری، چې لوږی په وخت کې ورته خواړه ور کړی، د ستړتیا او ستومانتیا په وخت کې باید راحت ور کړی او له اذیت او ناروغۍ له عواملو څخه یی په تنظیف او وقایه کې پاملرنه وکړی. که په ناروغۍ اخته شوی، نو تداوی او معالجه یی وکړۍ، او له توان څخه لوړ کارته یی مجبور نکړۍ، هغه څه چې وویل شول هر یو یی واجبی حق دی چې اسلام له نظره د نورو حقوقو په وړاندی که څه هم د الله ج له حقوقو څخه وی، اهمال او له یاده ایستل یی جائز ندی.

لکه چې مخکی وویل شول روغتیا د بدن اعتدال دی، نو په اعتدال کې د دی روغتیایي توازن د ساتلو لپاره له خلل څخه یې د ژعوزنی، او د اختلال په صورت کې د اعتدال لوری ته د هغه دبیر ته راوستلو لپاره لازمه ده چې انسان روغتیایي استعداد ولری. له ابن عمر رض څخه د بخاری په روایت حدیث «له خپلی روغتیا څخه یی خپلی ناروغۍ ته سپما وکړه» همدی ټکی ته اشاره کوی.

دغه روغتیایي استعداد یا وړتیا کله د ښی تغذیيی په معنی ده، کله هم د ښه مقاومت د وړتیا د لرلو په معنی، او احیاناً هم پر جسم باندې د رسیدلو

فشارونو او د سختو تکلیفونو په مقابل کې د رواني آرامی لرلو په معنی ده، او حقیقت هم دا دی چې هر اړخیز روغتیایي استعداد او وړتیا دا ټول په ځان کې راټولوی.

نن د نړۍ په روغتیایي سازمان کې چې د پیړۍ له انکشافاتو څخه بلل کیږی د روغتیا په باب له دوو اړخونو څخه بحث کوی لکه روغتیایي بیلانس (Health Balance) او روغتیایي استعداد یا وړتیا ( Health Potencial).

د روغتیایي بیلانس په اعتدال کې روغتیا ساتنه یا حفظ الصحه (Health Protection) او د روغتیایي وړتیا د زیاتوالی لپاره لارو چارو ته د روغتیا تقویه (Health Promotion) وایی. د همدی دوو اړخونو په چوکاټ کې نړیواله روغتیایي اداره فقط پنځوس کاله د مخه د روغتیا تعریف داسی اعلام کړ:

*«روغتیا له بشپړی جسمی، نفسی او اجتماعی سلامتی او عافیت مندی څخه عبارت ده، یوازی د ناروغی او کمزرتیا نشتوالی ته روغتیا نه ویل کیږي».*

دا خبره هغه حدیث را په یادوی چې پیغمبر ﷺ وفرمایل «له خدای څخه روغتیا او سلامتی و غواړۍ، ځکه چې له ایمان نه پس هیچا ته تر روغتیا او سلامتی غوره شی نه دی ور کړ شوي» (د ابن ماجه په روایت له ابی بکر رض څخه).

د روغتیا په باب د نړیوالی روغتیایی اداری تعریف د پام وړ وګرځید، ځکه چې مخکی به طبیبانو هغه د بیماری نشتوالی تعریفا وه، لکه چې ځینی ژوند هم د مرګ یا مړینی نشتوالی بولی. د لویدیځ پوهان د تیری پیړۍ تر لومړی نیمایی پوری د هغه څه څخه چې د عربی اسلامی تمدن طبیبانو په سلګونو کلونو مخکی ویلی و غافله او بی خبره وو.

ابن الرشد چې اسلامی فقیه طبیب وو د نن څخه اته سوه کاله مخکی د روغتیا په هکله داسی ویلی وو «دا په بدن کې هغه حالت دی چې د هغه په وسیله د بدن غړی پخپل طبعیت سره یو عمل سرته رسوی او یا د یوه فعل څخه منفعل او اغیزمن کیږی چې طبیعی ده»[۱].

---

۱- داکتر محمد هیثم خیاط - د چاپیریال روغتیا د اسلام په میزان کی - نړیواله روغتیایی اداره - ۱۱ مخ - ۱۹۹۷ کابل .

دغه راز علی ابن عباس زر کاله مخکی پخپل کتاب «کامل الصناعه» کې د روغتیا تعریف داسی کړیدی «روغتیا د بدن هماغه حالت دی چې د هغه په وسیله افعال پخپله طبیعی مجرا کې سرته رسیږی».

ابن النفیس پخپل کتاب «موجزالطب ص-۳۸» کې اوه سوه کاله مخکې روغتیا داسی تعریف کړیده: «په بدن کې هغه حالت دی چې د هغه په موجودیت سره اړونده فعلونه پخپل ذات کې صحیح وی او ناروغۍ یی ضد حالت دی».

په دې ډول روغتیا د طبی پوهانو په نزد اصل او اساس دی او ناروغۍ د هغه ضد صورت دی. خو د دی نعمت ساتنه د روغتیا په مراقبت او د هغه د بقا او بهبود په عواملو باندې د عمل کولو له لیاری تر سره کیږی. پس هر هغه څه چې طبیبان او د مسلک خاوندان یې د روغتیا ساتنی لپاره یادوی، انسانانو ته په هغو باندې عمل کول له همدی مبدأ څخه لازم ګرځی.

سر بیره پر دی الله ﷻ په کتاب او د هغه د رسول ﷺ په سنتو کې زیاتی لارښوونی بیان شوی چې د جسم د روغتیا ساتنی لاری چاری په عامه توګه، او د هر غړی روغتیا ساتنه په جلا جلا توګه بیان شوی دی.

د ناروغۍ د خپریدو موضوع په ضرر او اضرار کې شاملیږی. ځکه نو مسلمان ته نه ښایی او ورته حرام دی چې اجازه ور کړی ناروغۍ یی بل مسلمان ورور ته ورتیره شی، یا د خپلی ناروغۍ په مخنیوی کې سستی وکړی یا په ټولنه کې د ناروغۍ د خپریدو عوامل برابر کړی.

پیغمبر ﷺ فرمایلی «کله چې په کوم ځای کې د طاعون ناروغۍ له وجود څخه خبر شوۍ هغه ځای ته مه ننوځۍ، او که چیرې ستاسو د استوګنی په سیمه کې طاعون پیدا شو له هغه ځای څخه بهرته مه ځۍ» (د بخاری په روایت له اسامه بن زید څخه).

د غور خبره دا ده چې انسان پوه شی چې د ناروغۍ خپریدل د خدای ﷻ تقدیر دی او د هغه په مقابل کې مبارزه هم د لوی خدای تقدیر دی. لکه څنګه چې ناروغۍ د خدای ﷻ د قضا او قدر په اساس ده نو د هغه وقایه او تداوی هم الهی تقدیر دی.

په پایله کې باید وویل شی چې په ځینو آثارو کې د کلدانی، یونانی، هندی، اسلامی، اولسی، یا کورنی او نوی یا عصری طب په هکله لیکنی شوی دی. خو د عصری علومو لکه کیمیا، فزیک او بیالوژی زیات انکشاف

په مرسته او د تجربی په اساس نوی طب منځ ته راغلی دی. اوس هم د تغییر او انکشاف په حال کې دی. د وجود د عناصرو کمبودی او زیاتوالی او د مکروب، باکتریا او ویروس له منځه وړل او د هورمونو، ویټامینو، معدنی مالګو او نورو موادو په واسطه د وجود تقویه کول او د هغه تعادل ساتل د دی طب اساس دی.

په تشخیص کې د برقی، کیمیاوی، صوتی، لایزری، میخانیکی او نورو عصری وسایلونه او په معالجه کې د ستن وهلو نه هم کار اخلی. د علومو پراختیا او د بشری پوهی د انکشاف او د نوو اختراعاتو او انکشافاتو په برکت دې پوهنې زیاته پراختیا موندلې ده، او مختلف شقوق او بیلې بیلې څانګې یې پیدا کړی دی، چې دری مهمی چانګی یی وقایوی اجتماعی او معالجوی څانګې دی.

د علم په تاریخی جریان کې دا د پخوانو پوهنو یو متکامل او مترقی شکل دی چې په اصولو او جزیاتو کې اکثراً د پخوانی طب سره مخالف او کله کله موافق لویږی. خو په هر صورت معاصر پرختللی ساینس په مستقل ډول خپل پرمختنګ ته دوام ور کوی او د زاړه تمدن په کنډوالو باندې نوی پاخه تعمیرونه جوړوی.

د طب د بیالوژی د پراخو علمی پرمختګونو په نتیجه کې د یوی خواته غذا او تغذیه او طبی بوټو مختلفو برخو او محصولاتو څخه استفاده د طب په خواکی ځانته خپل خاص اهمیت پیدا کړی دی د بلی خوانه «د غذا او بوټو په ذریعه معالجه» هم ځانله نظریه ګرځیدلی ده.

«اوس کوښښ کیږی چې د اجتماعی طب د اساساتو له مخی د ناروغیو عمومی عوامل چې د نورو اجتماعی شرایطو پوری هم ارتباط نیسی له منځه یوړل شی څو چې د ناروغتیا بیخ ووځی او د روغتیا ګلان و غوړیږی»[۱].

بیا د غذا او حفظ الصحی له مخی د وجود د توازن د ساتلو توصیه او تبلیغات کیږی او دا خبری په مدنی ژوند کې ځائیږی. بیا هم که څوک ناروغ شو د هغه د غذا او چاپیریال شرایطو په اړولو یی علاج کیږی او په ډیره مجبوری کې له دوانه (درمل) کار اخستل کیږی، چې د اجتماعی طب اوسنی مترقی علمی جریان په دغه لار روان دی.

۱- کابل مجله - ٤۳ کال، ۸ ګڼه ، پر له پسی ګڼه ٦٤٥ - ۱۳٥۲ کال - ۲۱ مخ .

باید زیاته شی چې د شلمی پیړۍ دویمه نیمایي او د یویشتمی پیړۍ په لنډو لومړیو کې د طبی علومو او طبی تخنیک ډیر اوچت او په چټکتیا سره ګامونه پورته کړیدی، او ننی بشریت د نورو علمی او تخنیکی پرمختګ په څنګ کې د طبابت په ټولو رشتو او اختصاصی څانګو کې د تعجب وړ انکشافات منځ ته راغلی دی. د غړو پیوندول، د جراحی ډیر مغلق او ظریف عملیاتونه، د جینو یا کروموزوم مطالعه او په معالجی کې استفاده، د ناروغیو د تشخیص، تحقیق په هکله نوی او مدرن وسایلو منځ ته راتلل، نجات ورکوونکی واکسینونو کشف او داسی نور لکه د انسان د جنین مشابه جوړول دا ټول د طبابت پراختیا بیانوونکی دی.

## د یو طبیب اخلاق طبیعی کرکتر او کلتور

د نړۍ د لیکوالو په آثارو کې ذکر شوی دی چې طبابت د قهرمانیو یو کار دی او د ثبات، متانت، روانی ستر والی او د اندیشو د پاکوالی مستلزم دی، چې د عقل له نظره صریح او د اجتماعی برخورد له نظره عادل او د فزیکی له نظره نظیف وی. ځکه ننی طبیب نه یوائې دنده لری چې خپل شخصی پوهې ته ارتقا ورکړی بلکې هم د ځان لپاره او هم نورو ته د ښوونې او روزنې، کلتور او فرهنګ، روغتیا او با سعادته ژوند لامل وی. یعنی طبیب باید د نمونی مثال معیار وی او خپل محیط او ماحول ته د نیک کرداره او په ټولنه کې د حمیده اخلاقو سر مشق وی.

روښان فکر (روڼ اندي) لاتینی Inteligo کلمی څخه اخستل شوی او کلتور د تربیت او یا فرهنګ مانا ارایه کوی چې په واقعیت کې دواړه په یو ځایی شکل یو واحد تعبیر ارایه کوی. په دې توګه د یو طبیب عمومی کلتور خاصه په دی ډول تفسیر کړیدی. د نظر وسعت، د پوهی د سطح لوړوالی سره علاقه ولری او هغه طبیب چې یوائې د خپل مسلک سره سروکار لری په حقیقت کې یو ساده کاسب دی، ځکه څنګه چې لازمه ده د ژوند ټول اړخونه فقط د یوې تنګې مسلکی زاویې په چوکات کې ګوری. د انسانانو د نیک بختۍ ژوند په خاطر مبارزه باید په خلاصو سترګو نظر واچوی، انسانان درک کړی او په ټولو مواردو کې د هغوی سره مینه ولری.

د یادولو وړ ده چې نن ورځ طبابت په چټکۍ سره مخ په وړاندی روان دی نو ځکه د متداوله علومو لکه ریاضی، کیمیا، فزیک، سوسیالوژی او نورو زده کړه ضروری بریښی. خو که یو با کلتوره طبیب نه غواړی چې نوموړی علوم ئی زده وی، نو لازمه ده چې اساسی پرنسیبونه او لاس

ته راوړنی یی له پامه ونه غورځوی، خصوصاً هغه طبیبان چې په مختلفو ساحو کې په علمی تحقیقاتی مطالبو باندې مصروف دی. لازم دی چې د علومو متقابلو تأثیراتو باندې پوه وی او د هغو څخه ګټه واخلی، ځکه چیرته چې مختلفې رشتې سره په تماس کې وی هلته د پرمختګ او پراخوالی ټکې موجودی وی چې په هغو کې د پوهی نوی افکار سر را پورته کوی.

په دې توګه با کلتوره انسان باید د نړۍ ښایسته توب، عالی افکارو او انسانی احساساتو سره معرفت او آشنایی ولری. په همدی ارتباط یو با کلتوره انسان خصوصاً یو طبیب پوهیږی چې خارجی ډیر سخت تنبهات د هغو له جملې څخه صوتی تنبهات پر عصبی سیستم باندې ناوړی اغیزی اچوی او په مقابل کې طبیعی خواږه او په زړه پوری آوازونه زیانمنې کموی.

ځنی طبیبان ځکه د ستاینی وړ دی چې په فعاله توګه خپلو علمی مسلکی نظریاتو او خاصتاً علمی او مترقی افکارو ته تکامل ورکوی او په محتاطانه او عینی شکل نوی عینی پدیدو سره برخورد کوی، او پخپل مسلک او ټولنیزی پوهنې (جامعه شناسي) علم باندې په کافی اندازه مسلط وی او د خپل مسلکی پوهې په ارتقا کې کوښښ کوی، د روشنفکری (روڼ اندي) عالی سویه ولری او قادر وی ترڅو د ژوند ټولې پدیدې د طبابت په هکله درک کړی.

هغه څه چې د طبیبانو ورځنی پراتیک او عمومی کلتور باندې مهم رول لری هغه انسانی، اجتماعی، دندی، فامیلی، شخصی اړیکې او د نورو مراعاتول دی او د عمومی قواعدو په وړاندی د هر ډول تخلف څخه په واضح او بر بنډ شکل ځان وساتی.

په کلتور باندې د پوهاوی نه لرل او هغه نه مراعاتول، او د کلتور نه لرل ممکن په ورځنی عادی حالاتو کې لکه د کور په چاپیریال کې، د پولی کلنیک په محیط کې، په دیپارتمنت کې، دهلیزونو، د باغ په ساحه، چمن، دفتر، اداره، مغازه، ښوونځی، ډوډۍ خوړلو خونه، ډوډۍ پخولو مواردو په نظر کې و نه نیسی او هیڅکله د کار نواقصو، کردار او رفتار، خشونت، بې نظافتی، او خپل لباس ته توجه نه لری، او خپل نامطلوب سر او وضعی ته اجازه ورنکړی.

د نړۍ په مترقی هیوادونو کې ډیر زیات مطالب لکه د برخورد طرز په کور کې، ټولنه، رستورانت، سیمینار، د کار محل، په کلی او ښار، کتابتون او نشراتو کې وجود لری چې باید د دغو نشراتو او مطروحه

قواعدو سره په کامله توګه آشنایي ولری او هغه څنګه چې لازمه ده او د ټولو له خوا قبول شوی دی په عمل کې پیاده کړی.

په آثارو کې راغلی دی ډیر ښه شخص هغه ته ویل کیږی چې با نزاکته، با ادبه، متواضع، فروتن او د محسناتو خاوند وی او برعکس نامطلوب هغه شخص ته ویل کیږی چې متکبر، خود خواه، د ځان څخه راضی، بی ادبه، بی نزاکته، حسود او احمق وی.

د اجتماعی ادابو په روابط داسی توصیه کیږي: شاوخوا کې لاړی توکول، په لوړ آواز پر نجیدل، د پوزی خالی کول، په سپوږمو کې ګوتی وهل ښه کار ندی، بلکی تل باید منظم وی، نوکان یی لنډ وی، لاسونه یی پاک منځلی وی او د میز تر شاه نیغ ناست وی، پر میز باندې تکیه ونکړی، پر میز باندې په لاسونو ډول ونه وهی، پښی یی ډیر سره نختی نه وی او کوښښ دې وکړی تر ټولو د مخه په وارخطایی غذا له میز څخه وانخلی، او شوروا په پوکولو سړه نکړی ترڅو هری خواته ونه پاشله شی. غټه مړی دی په خوله کې نه نباسی، او کله چې غذا یی په خوله کې وی خبری دې نه کوی، په دې حالت کې ویښتان په ګوتو ګو منځ نکړی، ګوتی د ژبی سره تماس ورنکړل شی، هډوکی ونه زبیښل شی، د چاړه په څوګه غاښونه پاک نکړی او د غاب په شاوخواو کې هډوکو او د ډوډۍ له پارچو څخه درمن جوړ نه شی، پاسنی ځنی شیان ممکن تکلیف راوړونکی وی، خو په عمومی توګه کله په کټه هم تمامیږی.

باید له یاده ونه باسو چې د هر طبیب د کلتور عالی سطحه د اخلاقی موازینو سرشت سره مستقیمی اړیکی لری. په دی هکله د یو اروپایی مشهور فیلسوف طبیب بیګان سکی خبری چې وایي: هغه کسان چې ښه انسانان نه وی، ښه طبیب هم نه شی کیدلای. تر ټولو د مخه هغه سړی ته ښه شخص ویلای شو چې د خلکو مقابل کې صاف نیت ولری، خیر خواه وی، د خلکو غم، درد او خوشحالی احساس کړی او که ضرورت وی د عمل او خبروله لاری بې د کوم پاداش ځني د خلکو سره مرسته وکړی.

د انسان سره علاقه او انسان دوستی، پراخ تندی او د خندا څخه ډکه خوله هغه اوصاف دی چې طبیبان یی باید په نظر کې ونیسی. ښه معاشرت او نږدی اړیکی د ناروغ سره بې له شکه د هغه په روغیدو باندې تأثیر لری او هیڅوک له مور څخه نړۍ ته طبیب ندی راغلی. ځنی انسانان غیر مناسب او ځنی بی له عیبه او با کفایت وی. مونږ هر یو په عمومی تعلیماتو کې

نواقص او یا په خپل فکری سیستم کې خلاوې لرو، کله کله داسی هم کیږی چې مونږ یو کار کوو چې نه باید هغه موکړی وای.

که نور خلک زمونږ نیمګړتیاوی او خطاګانو ته متوجه نه شی، نو مونږ باید پخپله هغو ته توجه وکړو او د ځان څخه یی لیری کړو، ټول نامطلوب او خراب فکرونه باید له ماغزو وباسو او د هغو سره په منطقی او شعوری توګه مبارزه وکړو. اصل مطلب او خبره دا ده چې د ټولنی ننني او د سبا ورځې طبیب داسی تربیه کړو چې د یو طبیب ټول خصلتونه او مسئولیتونه د ځان سره ولری. د هغه نه په غیر مونږ به انسان د خپل آرزو مطابق داسی تربیه کړو چې دردناکه او عبرت انګیزه آینده به په راتکونکی کې ولری.

د نمونی په توګه د ژوندانه ترخه درسونه چې له بده مرغه زمونږ په ټولنه کې شته دی یو ځای سره مطالعه کوو:

که د یو طبیب اوصاف د پول پرستۍ حرص او وچ کرکتر سره تشکیل کړی، سره د دی چې پخپل مسلک کې ډیر شهرت هم ولری او د هر ناروغ څخه د ټاکل شوی نورم څخه زیات فیس واخلی یعنی زمونږ د وطن د اقتصادی شرایطو په نظر کې نه نیول ډیری پیسی واخلی، نو خدایۍ دی پر ناروغ باندې رحم وکړی، او که یوه ورځې یو ناروغ چې پخپله هم طبیب وی د لوړ طبیب کتنځی ته مراجعه وکړی او هغه قسم خوړلی وی چې ناروغ بی له فیسه معاینه نکړی، او له بلی خوا څرنګه چې طبیب دی د هم مسلکی له پلوه فیس نه شی اخستلای نو د خپل پرنسیب بر اساس مجبور دی چې مجانی ناروغ (طبیب) بی له معاینی له خپلی کتنځی څخه رخصت کړی او یا دا چې نسخه یی لیکلی وی او ناروغ د فیس پیسی ونلری او هغه نسخه څیری کړی او هغه له معاینه خانی څخه وباسی. بیشکه چې دا د طبابت د اخلاقو سرغړونه ده او داسی اشخاصو ته خدایۍ د نیکۍ هدایت ور کړی.

په وروستی برخه کې څو ټکی د یادونی وړ دي:

۱. د بنی آدم شخصیت ته ځکه احترام کیږی چې هغه مهربان، با نزاکته او با ګذشته انسان دی، او کله چې د چا سره یو ځای ژوند کوی نه وایی چې ستا سره ژوند کول زما د پاره ګران دی.

۲. ښه انسانان په عمومی توګه سپیڅلی وی او رښتیا وایي، له دروغ ویلو څخه کرکه لری، ځکه دروغ ویل مقابل سړی توهینوی او دروغ ویونکی ډیر سپک او مبتذل معرفی کیږی.

۳. تربیه هغه شی نه دی چې رسم یی کړو په هغه ډول چې کور کې دی او په کوڅه او بازار کې په هماغه ډول وی او لازم دی چې د لاپی شاپی څخه خودداری وشی او ترڅو چې پوښتنه وجود نه لری، ځواب یی هم ضرور نه دی.

۴. د شخصی ګټی لپاره نورو حیثیت ته باید لطمه ور نکړل شی او د نورو شیطانت ته غوږ و نه نیول شی.

۵. نه شی کیدای چې تربیت په پیسو واخستل شی.

په یاد باید ولرو چې: با استعداده او با تربیه خلکو ته هر څوک احترام کوی او د هغو راحت لپاره تل کوښښ کیږی. باید چې پخپل نهاد (باطن) کې ادب او معاشرت تربیه کړو او رشد ور کړو او د دی د پاره چې تربیه د محیط له سطحی په تیټ حالت کې را نه شی ضروری دی چې شپه و ورځ زحمت وګالی، مطالعه وکړی او پوهه زده کړی.

## د ناروغ او طبیب خپل منځونې اړیکې

په بیلا بیلو زمانو کې د مختلفو پوهانو له خوا د ناروغ او طبیب خپل منځی اړیکې په هکله لکه ارسطو، مولر، تولستوی او نورو ځنی جملې قید شوی دی چې عبارت دی له ښه عاقلین، په ښو کې ډیر ښه او ځنی یی خشن، تند، کلک او نوری کلمی ذکر کړی دی.

په اوسنی عصر کې د طبیب او د ناروغ اړیکو په برخه کې ډیری لیکنی شوی دی او داسی ښودل کیږی چې یو مترقی او با کلتوره طبیب باید تل د خپلو ناروغانو سره د دوستی، ورور ګلوۍ، او ملګرتوب برخورد په نظر کې ونیسی او د ناروغ سره مرستی په وخت کې مکلف دی چې د هیپوکرات له پرنسیبونو څخه چې ناروغ ته ضرر ونه رسوی سپارښتنو څخه پیروی وکړی.

په پخوانیو آثارو کې د طبیب کلام او خبری ډیر خاص ځای یی ځانته غوره کړی دی او په بل ځای کې ژبه او خبرې یی لومړۍ مقام ځان ته اختیار کړی دی چې د طبیب تاثیر د ناروغ په روح او فکر باندې اغیزه

وکړی او حتی په ځینو حالاتو کې د هغه محبوبیت د ناروغانو په منځ کې په ربښتیا سره چې د یو شاعرانه وصف سره د هغوی د درملنې باعث هم شوی دی.

له بلی خوا داسی واقعی هم په نظر راغلی چې د طبیب یواځی کتل د ناروغ سترګوته تل پیام راوړونکې، د ځواکمنی او قوت ناقل، شادابیت، اعتماد او بالاخره د ناروغ روغتیا په مکمل ډول منځ ته راځی. د ولتر په خبره «روغیدلو ته امید د روغتیا نیمایی ده». د تعجب وړ خبره نه ده چې حتی ناروغ طبیبان د دغو خوشبینیو تر تاثیر لاندې راځی.

په ټولو حالاتو او شرایطو کې د یو طبیب ډیر ښه او موثر کلام پر ناروغ باندې باید رعایت شی چې عبارت دی له زړه سواندی، مهربانۍ او د شفقت روابط د ناروغ سره برقراره شی.

د یو اروپایی پیاوړی طبیب یانوش په عقیده زړه سواندی او مهربان هغه شخص ته وایی چې د یو بل په برخه کې تصور او پیژندګلوی ولری او کولای شی احساس وکړی چې بل شخص څه احساس لری، دغه د شفقت څخه ډک خصلت دی چې زمونږ ډیر ښه طبیبان د نورو سره بیلوی.

ځینی طبیان پر ناروغانو باندې د کلام د منفی اغیزو په اړه لږ فکر کوی، مونږ اکثراً له یاده وباسو چې د یو طبیب خبری نه یواځی پر ناروغۍ باندې غلبه کوی بلکې په ځینو مواردو کې د ناروغ د خرابی سبب، د ناروغۍ اوږدوالی او یا حتی د ناروغۍ د نورو اضافی اعراضو موجب هم ګرځی.

د ناروغیو د اعراضو پیدا کیدل چې علت یی خپله طبیب وی ډول ډول دی. د بیلګې په توګه د طبیب د نه توجه او بی احتیاطی، د ناروغ په وړاندی د ناروغۍ د سیر او وصف په هکله غیر ضروری خبرې، د ناروغ پوهېدل پر لابراتواری، رادیولوژیکی او اختصاصی معایناتو، د ناروغۍ ډیر شدید او غټ ښکارول ناروغ ته او داسی نور.

ټول پورتنی شیان خصوصاً د حساسو ناروغانو سره د نارامی احساس، بی اعتمادی، اضطراب، منځ ته راوړی چې په نتیجه کې د روحی تشویش او حتی د هغو د مړینی سبب کیږی.

څرنګه چې مشهور جراح «تشوته» وایی په حقیقت کې یو د ارادی کلک ښوونکی چې د مری د سرطان په ناروغۍ اخته وو او کله چې خبر شو ځان یې مړینی ته اماده کړ او د ژوند په اخر سلګیو کې یی ویل: ولی

طبیب ماته وویل چې ته د سرطان پر ناروغۍ اخته یې، سره د دی چې ما د هغه څخه خواهش کړی و چې حقیقت راته ووایی خو د منفی ځواب په انتظار کې وم. د سرطان او نه علاج کیدونکو ناروغانو سره خبرې اترې باید تل خوشحالوونکې، قوت بخښوونکې او تلقین ورکوونکې وی.

د ویزیت په وخت اکثراً طبیب ناروغ ته وایی چې د هغه معدی سقوط کړی دی او حتی د حوصلی تر ناحیی پوری رسیدلې ده، په نتیجه کې ناروغ د غذا خوړلو څخه انکار کوی ځکه د هغه په نظر څرنګه چې معده یې تر حوصلی پوری رسیدلی ده نو څنګه باید غذا څخه استفاده وکړی.

پورتنی مثالونه یو شی مونږ ته را زده کوی چې د طب پرسونل باید د ناروغانو سره عاقلانه او محتاطانه برخورد وکړی.

هغه اساسی پرنسیپونه چې د طبیب او ناروغ مناسبات بیانوی او د ناروغ د روحی او جسمی بهبودی باندې تاثیر لری د طبابت په پرنسیپونو کې یو بیل فصل دی چې د دیانتولوژی (د وظیفوی مسئولیت تعلیمات) په نامه یادیږی، دلته یې یواځی ځنی خصوصیات وړاندی کیږي:

۱- په لومړۍ سرکې ناروغ د طبیب څخه د مرستې انتظار لری، د یو عاقل حساس او زړه سواندی انسان قادر دی چې ناروغ ته مرسته ورسوی. د ناروغۍ په حالت کې د طبیبانو څخه یو لړ تقاضا وی موجودی دی چې:

تر ټولو د مخه ناروغ غواړی پوه شی چې طبیب په دی فکر دی چې په واقعی توګه د مرستې رسولو فکر ورسره شته دی او ناروغ دا امید لری چې د ویزیت په وخت کې یواځی د هغه فکر د شکایاتو اوریدلو او د اضطراباتو د له منځه وړلو په خاطر وی او بس.

برسیره پر هغه د ناروغ ټول شاوخوا فضا او ټول مؤظف پرسونل حرکات، سکنات او اکت او نور د ناروغ سره باید داسی احساس پیدا شی چې طبیب غواړی یواځی د هغه سره مرسته وکړی او د امکاناتو په چوکاټ کې ناروغ د ناروغۍ او عذاب څخه خلاص کړی. د پورتنیو ټکو په مراعاتولو سره د ناروغ سره اعتماد منځ ته راځی او د طبیب د هر ملاقات سره د ناروغ جسمی او روانی حالت بهبود خواته ځی.

برعکس د طبیب په بی تفاوتی، بی اعتنایی او د ناروغ شکایات او مشکلات نه اوریدل، د هغه اضافی صحبتونه، د د پردیو شکمن لغات او

کلمات استعمالول د طبیب اوتوریته ښکته راولی، بې اعتمادی او بې احترامی د هغه په مقابل کې زیاتیږی.

په دې توګه د ناروغ انسان مقابل کې هر طبیب باید دقیق، محتاط او دلسوز وی. د طبیب خارجی قیافه او ظاهری وضعی سره د ناروغ لپاره د دقت وړ دی چې دغه موضوع هم د نارینه او هم ښځینه طبیبانو لپاره د توجه وړ باید وی.

هیڅ یو ناروغ دا نه خوښوی چې د اوږدو او تیره نوکانو سره هغه قرع شی، د هغه لاسونه سوړ وی او یا خیرن او لانده وی. له همدی سببه هغه طبیبان چې د نوکانو د آرایش مشتاق وی، لاسونه یې سوړ، خیرن او لانده وی ځان ته اجازه ورنکړی چې د ناروغ جسم جس او قرع وکړی.

۲- دویمه موضوع چې د طبیب څخه غوښتنه کیږی عبارت له دی څخه دی چې د خپلی درملنې موثریت پر ناروغ باندې ثابت کړی. په دې ځای کې طبیب نه یواځی کامل علمی او پراکتیکی آمادګی ولری بلکی تر ټولو د مخه هغه باید ناروغ ته د تللو او نږدی کیدلو توان ولری، د ناروغ سره د تماس برقرارول او د ناروغ فزیکی او معنوی ذخیروی قوت څخه په استفادی سره د ناروغ د ناروغۍ د مبارزی په مقابل کې توانایي ولری.

ځکه هر ناروغ ځان ته مشخص خصوصیات لری او که فردی خصوصیات په نظر کې ونه نیول شی د ناروغ تشخیص او درسته درملنه به صورت ونه نیسی او له بلی خوا هیڅکله دوه مطلبه یعنی مطمئن والی او مشکوک والی باید سره اشتباه نه شی ځکه دغه دواړه دوه مختلف مفهومونه رانیسی. یعنی اعتماد پر ځان او مطمئن والی د یو طبیب مثبت اوصاف دی او شک او تردید د هغه د منفی خصایصو په شمیر کې حسابیږی.

هر طبیب د پوهې د لاسته راوړلو او د تجربی حاصلولو په اثر پرځان اعتماد لاس ته راوړی او شک او تردید د فضیلت فروشی، د ځان د انتقاد مصدومیت او بی نزاکتی زمینه منځ ته راوړی. مطمئن والی او علاقه نه یواځی د یو طبیب عالی وصف دی چې د ناروغ لپاره د هغه د اوتوریتی لوړوالی کې نقش لری بلکې یو صفت دی چې د یو طبیب شخصی او طبی حیثیت په تحکیم او لوړوالی کې مستقیم دخالت لری.

۳- دریمه موضوع چې ناروغان یی له طبیبانو څخه غوښتنه لری هغه دا دی چې هر طبیب باید ناروغ ته د یو انسان په توګه احترام وکړی.

نن ورځ په بشری پرمختللی ټولنو کې د انسان د شخصیت ارزښت احساسول ارتقا کړی دی او هغه تفاوتونه چې په مختلفو عرصو کې د انسانانو په منځ کې موجود وو له منځه تللی دی. حال دا چې په ځینو وروسته پاتی هیوادونو کې طبیبان مجبوریږی چې د پیسو په خاطر پیسه لرونکو ته غوږ مالی وکړی او ظاهری تعظیم وکړی او برعکس هغه کسان چې په جیبو کې څه نه لری په مسخرګی سره د هغو څخه مخ ګرځوی.

اصول دا دی چې د طبیبانو برخورد د ناروغانو سره چې د هری ډلی څخه وی یعنی څه ځوان او زوړ، څه شیک پوشه او یا زوړ پوشه، نر وی او که ښځه د یوه ناروغ په توګه په یو واقعی، مسلکی او عاطفی نه ډک په څیر بې له هر تبعیض څخه برخورد وکړی.

په همدی ترتیب غواړم چې تاسی د یوې کلمی سره چې په تأسف سره ځینو طبیبانو له خوا د ناروغ د معاینی په وخت کې صورت نیسی ستاسو توجه جلب کړم چې هغه کلمه عبارت له ته (تو) څخه دی او یا د ناروغ څخه په بې اعتنایي سره پوښتنه وشی چې څه شکایت لری (داري) دغسی یو برخورد هر یو محترم او تحصیل کړی شخص ته خوش آینده نه دی او د تاثر وړ به وی.

په اوسنی عصر کې دغسی عمل په طبابت کې ځای نه لری او د ناروغ مقابل کې هیچاته باید اجازه ور نه کړل شی ځکه د ناروغانو تحقیرول او غیر دوستانه او خشن برخورد په ټولو اشکالویی په یوه انسانی او بشر دوسته ټولنه کې منع کړل شوی دی.

بې ځایه به نه وی چې د ځینو ناروغانو تصوراتو باندې چې د ضرر څخه خالی نه دی تاسو ته یادونه وکړو. د بیلګې په توګه ځینی ناروغان وایی چې پلانی طبیب ډیر ښه لاس لری او یا پلانی طبیب ښه لاس نه لری چې د پولی کلینکونو او یا روغتونونو په چاپیریال کې غوړوته رسیږی. او باید وویل شی چې دغسی ارزښتونه تل بی ارزښته او بې اساسه هم نه وی. ځکه داسی طبیبان هم شته دی چې بعضی د شق پروسیجرونه او بې له درد څخه معایناتو سره عادت نه لری او بې له درد څخه د پروسیجرونو او معایناتو اجرا کول نه یواځی د ناروغ او طبیب تر منځ نورمال مناسبات لاپسی تحکیموی بلکی د طبیب د کار نتیجه هم آسانه کوی او ګټور واقع کیږی. د بیلګې په توګه د یو ناروغ دګیډی د جس کولو طرز باندې رڼا اچوو. که د ناروغ ګیډه غیر سستمیک او په شدت سره اجرا شی طبیعی ده چې بې له احساسولو له درد څخه او د ګیډی د عضلاتو تقلص ځینی نور شی

لاس ته نه راځی، او که د جس عملیه د سمیولوژی د قانون سره سم په مهربانی او نرمش سره صورت ونیسی حتماً د ګیډی د جوف اعضاو په هکله درست او صحیح معلومات لاس ته راځی.

او یا که د پوستکی لاندې په زړی او پنډی ستنی باندې او په نامناسب ځای کې زرق اجرا شی ډیر زیات درد ناک وی او که باریکه، تیره، نوی او ښه تعقیم شوی ستنی څخه کار واخستل شی البته چې بی له درد او اختلاط څخه وی.

په ننۍ طبابت کې ډیر نوی او عصری زیات میتودونه منځ ته راغلی چې اوس د تطبیق وړ دی چې که د هغو څخه په ښه توګه او په موقع سره استفاده صورت ومومی حتی ډیره لږه ناراحتی چې د احساس وړ وی هم منځ ته نه راځی فقط هغه څه چې لازم او د توجه وړ دی، هغه دا ده چې باید هغه زده کړه شی او د استفادی وړتیا په ځان کې منځ ته راوړی.

اوس وګورو چې ناروغ د معالج طبیب سره څنګه برخورد وکړی او اړیکې ولری. تر ټولو د مخه ناروغ باید خپل معالج طبیب ته احترام وکړی او په پوهې مسلکی تجربی او د معاینی طرز باندې اعتماد او باور ولری، په دې توګه باید هغه ته ډیر زیات احترام وشی، د هغه صداقت او راستکاری ته د قدر په سترګه وکتل شی او هغه د یو خبره متخصص او مسلک ته یې احترام وشی.

هر ناروغ ته لازم دی چې د طبیب ټول هدایات، توصیی او مشوری په دقت او په خوښه سره اجرا کړی. باید وویل شی چې نن ورځ په نړۍ کې ډیري ناروغان د دغه او یا هغه ناروغۍ او حتی د نوو درملو استعمال په هکله معلومات لری.

په دې توګه طبیبان باید د خپلو اضافی معلوماتو په رڼا کې د درملنې ګټورتوب، د درملنې میتودونه په مفصله توګه او قانع کوونکې شکل خپلو ناروغانو ته روښانه کړی تر څو د ناروغۍ ټول اشکال په ښه توګه محدود (مهار) شی.

د پخوانیو څخه داسی معمول ده چې په هره ناروغۍ کې دری نیروګانی یعنی یو ناروغی، بل طبیب او دریم خپله ناروغ په مستقیم او مکمل ډول دخالت لری. او که ناروغ او طبیب یو بل سره لاسونه ورکړی هرومرو دریم ګړی پخپله له منځه ځی.

## د طبابت سوګند نامې

په طبی سوګند ناموکې اخلاقی نورمونه او اساسی پرنسیبونه چې د طبیب په فعالیتونو کې د لاربنود په توګه استعمالیږی، منعکس شوی دی.

طبیبان په ډیرو هیوادونو کې د تحصیل نه وروسته او د دیپلوم د اخستلو په وخت کې سوګند (قسم) پرځای کوی. د ټولو سوګند نامو متن د هیپوکرات د سوګند نامی څخه منشأ اخستی چې د یو طبیب د فعالیتونو خصوصیات، د هغه مکلفیتونه، د ناروغ د تکالیفو د له منځه وړلو لپاره آمادګی، د ناروغ سره زړه سوځوونکی رویه، د طبی راز خوندی ساتل او نور احتوا کوی.

**د هیپوکرات سوګند نامه:**

د هیپوکرات سوګند نامه چې تر اوسه هم خپل ارزښت له لاسه ندی ورکړی، طبی کارکوونکو ته داسی لارښوونې کوي:

زه پر لوی ذات الله ج، پر روغتیا او ټولو کائناتو او مقدساتو سوګند یادوم او هغوی د شاهد په توګه قبلوم چې لاندې مسئولیتونه په ټول توان، قدرت، هوښیارۍ او پاک وجدان سره مراعاتوم او هم یې عملی کوم.

۱- ټول هغه کسان چې د طبابت دغه فن یې ماته زده کړی دی لکه خپل مور او پلار ورته احترام کوم، د هغو سره په ژوند کې شریک کیږم او د لزوم په صورت کې د هغو سره مادی مرسته کوم د هغوی اولاد لکه خپل ورور وګڼم او که وغواړی چې طبابت زده کړی، زه هغوی ته بې له کومې اجورې او مکافات او بې له کوم قرارداده ور زده کوم.

ټول قواعد، اصولنامی او علمی تدریسی پرنسیپونه خپل اولاد، د استادانو اولادونو او هغه زده کوونکو ته چې دغه سوګند نامه او د طبابت مسئولیتونه رعایت کړی، انتقالوم او نه بل شخص ته.

۲- د خپل توان او قضاوت سره درملنه د ناروغ انسان په خدمت کې قرار ورکوم او هیڅکله د هغه د ضرر او بدۍ لپاره اقدام نه کوم.

۳- زه به هیچاته زهری مواد چې زما څخه وغواړی ور به یې نه کړم او د دغه موادو کوم پلان او د استعمال طرز یې چاته نه ښیم.

۴- زه به هیڅکله بلاربۍ ښځۍ ته د سقط درمل نه ورکوم او د هغه د منځ ته راوړلو طرز هم نه ښیم، برعکس د خپل مسلکی قدسیت او انسانی کرامت په نظر کې نیسم.

۵- هر کورته چې وغوښتل شم هلته به لاړ شم او هلته یوازې د ناروغ سره مرسته زما په نظر کې وی، د ټولو منفی ارادو خصوصاً د معاشقه بازۍ څخه که نر وی او یا که ښځې سره او یا آزاد سړی وی، پاک اوسم.

۶- د درملنې په وخت کې او یا د درملنې د ساحې څخه د باندې هغه څه چې اورم او یا یې وینم په دې مانا چې هیڅ شی می نه لیدلی او یا مې نه دی اوریدلی، یعنی هر شی زما سره پټ ساتل کیږی.

۷- زه بې له شکه په دغه تعهد باندې عمل کوم، ځکه دغه ماته حیاتی او مسلکی سعادت بخښی او عمل نه کول پر هغه باندې واضح ده چې معکوسه نتیجه به ور کړی.

د هیپوکرات په سوګند نامو کې ځینی هېوادونو کې نوری ټکې هم ور زیات شوی دی لکه د طبیب سره کینه نکول او د پرسونل خطاوی په عام محضر توضیح او تشریح نه کول او د طبیب او محصل څخه فیس نه اخیستل.

په ۹ پیړۍ کې د هیپوکرات څخه وروسته په اسلامی نړۍ کې ځینی پوهانو آثار لیکلی دی چې په هغو کې داسی راغلی دي:

طبیب باید عفیف، سپیڅلی او وفادار وی، د بې خدایانو سره رابطه و نه لری او سرو کاریی د علم و فن د اهل سره وی، د بخښنی استعداد ولری، دقیق او صلح خوښوونکی وی، د ناروغ په سوالونو بې حوصلی نه شی، د ناروغانو سره یو ډول کار وکړی، وخت وپیژنی، د فیس مقابل کې مجادله و نه کړی، حاملی ښځې ته د سقط درمل ور نکړی، د ښځو مقابل کې د عفت څخه کار واخلی، د ښځو په معاینه کې دریم ګړی هم حاضر وی، یو طبیب باید پوه شی چې څومره دغه اوصاف لری او په هغو سنبال وی.

## د افغانستان سوګند نامی

په کال ۱۳۱۶هـ.ش د لیندی د میاشتی په ۲۹ مه نیټه د طب پوهنځی او درمل جوړولو لومړۍ دوری فارغانو ته د دیپلومونو او برى لیکونو د توزیع کیدلو په وخت کې لاندې سوګند نامی هم د محصلینو له خوا لوستلی شوی دي:

### طبی سوګند نامه:

دا چې د خدای ج په فضل می د افغانستان د طب په پوهنځی کې تحصیل کړی دی او نن د دیپلوم پراخستلو باندې مشرف کیږم، که څوک د درملنې لپاره ما وغواړی فقیر وی او که غنی، د هر ملت څخه چې وی د مسلک د آدابو سره سم او په پاک نفسۍ سره د ناروغ سرته حاضریږم او دهغه په تشخیص او درملنه کې دقت کوم. په غیر د ضرورت څخه چې د مسلک له رویه د هلاکت موجب ګرځی د سقط لپاره درمل نه ورکوم او هم مداخله نه کوم.

د تشخیص په وخت کې که اشتباه او تردد ما سره موجود وی د طبی مشاوری څخه سر نه غړوم. که څوک روغ یا ناروغ وی داسی درمل نه ورکوم چې د هغه ژوند په خطر کې اچوی. د عملیاتو په وخت کې له احتیاط څخه کار اخلم. د ساری ناروغیو ناروغانو د خدمت څخه ډډه نه کوم.

د سمی درملو تحریر کې له امانت داری او احتیاط څخه سرغړونه نه کوم. د صنعت اسرار د مسلک په ارتباط نه افشا کوم.

هغه شیان چې د سرکار له خوا ما ته سپارل شوی دی د حق او عدل څخه نه وځم. په پای کې خپل حکومت ته بی قید و شرطه مطیع یم او په لنډه توګه وایم چې پر پاسنی موادو د ایمانداری پر اساس صادق یم.

**و الله، با الله، تا الله**

### د درمل جوړوونکو سوګند نامه:

دا چې د خدای ج په فضل د درمل جوړولو فنی ښوونځی می چې د طب پوهنځی پوری اړه لری شامل شوی او نن د تحصیل د فراغت سند مې حاصل کړ. په ایمانداری او خپل دیانت باندې توکل کوم او وروسته تر دی د طبیب له هدایت څخه پرته چاته درمل نه ورکوم او د جنین د سقط لپاره پخپل سر درمل نه ورکوم.

سرکاري مالونه په صداقت او امانت داري سره محافظه کوم او د هیچا څخه د درمل د اصلي نرخ څخه زیاتي پیسي نه اخلم.

خپل دولت او حکومت ته تل مطیع اوسم. د خپل د دین او ایمان د امر په اساس پاسني مواد چې زما د ځانګې (مسلک) سره تطابق لري صادق یم.

**و الله، با الله، تا الله**

**هندي سوګند نامه:**

دغه سوګند نامه ۲۸۰۰ کاله مخکې منځ ته راغلی ده.

۱- طبیب نه یوازې نفساني خواهشاتو، قهر، بد بیني، دروغ ویلو، سستي او بد نامي څخه پرهیز کوي بلکې هر هغه عمل چې د طبیب نیک نوم لکه دار کوي هم ځان ژغوري.

۲- په مساعد وخت کې خپل نوکان واخلي (پرې کړي)، سپیڅلي کالي واغوندي، د استادانو احترام ولري او خپل نږدې ناروغانو ته وړیا درمل ورکړي.

۳- طبیب باید لایق ښکاري وي او د ناکسو څخه ځان لیري وساتي.

**د یو مسلمان طبیب سوګند نامه:**

اې لویه خدایه! تا چې زه دې د یو طبیب په توګه غوره کړی یم ما سره مرسته وکړه تر څو خپله دنده په ښه شکل سره اجرا کړم او ما د حرص او حسادت څخه وساته، ما ته قدرت راکړه چې بې له تبعیض څخه ناروغانو ته کار وکړم او په حرمت سره ناروغانو سره ژوند وکړم.

خدایه هرڅه چې ما ته موبخښلي دي قناعت ور باندې وکړم او د طب د علم د ښوونې او روزنې په لاره کې کافي وقت زما په نصیب کړه تر څو په دغه رشته کې خدمت مې کړی وي.

**د نړۍ د طبیبانو نوې سوګند نامه:**

کله چې طبیب شوم ناروغ ته خدمت کوم، د طبابت راز پټ ساتم او د هغه په ساتلو کې هڅه کوم. همدارنګه ناروغ لکه خور او ورور وګڼم، بې له تبعیض څخه کار وکړم او د انسان ژوند سره علاقه ولرم.

**د شوروی د یو طبیب سوګند نامه:**

د یو طبیب پر افتخاره نوم حاصلول او د طبابت شرافتمند کار شروع کولو سره د زړه له کومی سوګند یادوم:

- زه خپله ټوله پوهه او ځواک د ناروغ انسان د روغتیا په ساتنی او ښه کولو کې، د ناروغیو درملنه او وقایه کې مصرف کړی او د پاک وجدان له رویه هر کله چې اجتماعی ګټی ایجاب وکړی کار او مبارزه کوم.
- د مسلکی او طبابت فن د پوهی سطحی لوړ والی په هکله کوښښ کوم، هغه مسلکی قابلیت چې لرم د طبابت علم او پراکتیک ته یې انکشاف ورکوم.
- په عمل کې د مرستی رسولو په هکله هیڅکله سرغړونه نه کوم. د ناروغانو سره دقیق او زړه سوزونکی برخورد کوم او د طبابت رازونه هیڅکله نه افشا کوم.
- کله چې ضرورت وی د ناروغ په ګټه د خپلو ملګرو سره مشوره کوم او زه هم نورو ته د مشوری ورکولو څخه انکار نه کوم.
- تل د خپل وطن د طبابت عنعنی ساتنی او تکامل په هکله کار کوم. خپل ټولو اعمالو کې د هېواد معنوی او عمومی خصوصیات په نظر کې نیسم او تل د شوروی د طبیب لوړ نوم، د شوروی د خلکو او دولت په مقابل کې مسئولیت به په یاد لرم.

د دغی تعهد نامی حقیقت باندې قسم خورم چې په ټول عمر کې هغه عملی کوم.

**د ژنوا مصوبه:**

د اطباو د انجمن په عمومی اسامبله کې (۱۹۴۸ د سپتامبر په میاشت) د ژنو د مصوبی په نامه لاندې متن تصویب شوی دي:

د هغه شیبی څخه چې د طبابت د مسلک عضویت اجازه ما ته راکول کیږی، زه رسماً تعهد کوم چې خپل ټول ژوند د بشریت د خدمت لپاره وقف

کوم، خپلو استادانو ته احترام کوم او د هغو څخه سپاسگذار يم. زه خپل مسلک سره په اگاهانه او شايستگی توگه مشغوليږم.

زما لومړنی هدف او دنده د ناروغ روغتيا وی. هغه اسرار چې پر ما اعتماد شوی دی پټ يی ساتم. ټول هغه امکانات چې زما په لاس کې دی د طبابت مسلک حيثيت او نجيبه سنن حمايه کوم. هم مسلکان زما ورونه دی. زه نه پريږدم چې مذهبی عقايد، ملی، نژادی، سياسی او يا اجتماعی موقف زما د ناروغ او دندی په منځ کې خنډ شی. زه د انسان حيات ته د تشکل له لحظی څخه په ژوره توگه احترام کوم. زه له خپل طبی پوهې څخه حتی د انسانی ضد قوانينو تر تهديد لاندی هم استفاده نه کوم. زه دغه تعهد په آزاده توگه او د خپل وجدان موافق په رسمی توگه منم.

## دویم څپرکی

## په لرغونو پیریو کې د طبابت ځانګړتیاوې

## په لومړنیو ټولنو کې د طبابت د ودې خصوصیتونه

د ناروغیو درملنه د پخوانیو انسانانو د مبرمو اړتیا وو څخه شمیرل کېده، حتیٰ په لومړنیو ټولنو کې د طبابت نطفې څرګندې شویدی. د لومړنی ټولنی لویی لاس ته رواړنی د ناطقی قوی او د تکلم د منځ ته راتګ، د اور د کشفولو او پیداینښت، د کار د لومړنیو افزار ایجاد، د ښکار ظهور، پر مځکه باندې کار، د وحشی ژوو (حیواناتو) د اهلی کولو څخه عبارت دی. د دی کشفیاتو تر تاثیر لاندې د طبابت او درمل جوړولو لومړنی ګامونه چې په هغه وخت کې یو له بله سره بیل نه وو پورته شول.

عمده او اساسی خبره د انسان د پاره د تکلم منځ ته راتګ وو چې هغه یې د نورو د حیواناتو څخه متمایز کړ «د اور کشف د محیط (طبیعت) څخه د انسان وابستګی (تړاو) کمه کړه او د نورو په زیاترو برخو کې یې د هغوی د استوګنی امکانات برابر کړل».[1]

په دې پیرۍ کې تجربوی طبابت چې د هغو اساس تجربی (امپریزم) تشکیلاوه ظهور وکړ او دا پخپل ذات کې د یو مشخص ټولنیز چاپیریال محصول و، چې د انسان د درد او رنځ د سپکولو د پاره هڅه یې، په ډله ایز (کولکتیوي) شکل میسره کړه.

د پورتنیو جملو څخه دا نتیجه ترلاسه کیږی چې یوازې اجتماعی تولید کولای شول چې د انسانی ټولنې د طبابت وده رامنځ ته کړی.

طب د لومړنی ټولنې د ودې او تکامل په ډیرو لیرو مرحلو (لومړنیو) کې ظهور وکړ.

له بوټو څخه د غذا په حیث ګټه اخستنه د زرګونو کلونو په اوږدو کې، د هغی دوری انسان د هغوی سره آشنایی پیدا کړه چې د غذایی خواصو د تشخیص برسیره د نباتاتو د شفایي توب تاثیر یې هم وټاکه. د ګیاه ګانو د زیاتې تنوع په منځ کې، انسان متوجه شو چې د هغوی یوشمیر د کانګو (استفراغ)، د معدې، کولمو د تشوشاتو، د دردونو د تسکین او داسې نورو باعث ګرزی. کوم شفا بخش نباتات چې لومړی ځل د پاره وپیژندل شو د درد د لیرې کولو (انلجزیکونه)، د هضمی سیستم د منبهاتو څخه عبارت وو.

---

۱- ملی نی چینکو، تاراسووا، سیمینووا، فارمسی چارو اورګانزیشن، ماسکو ۱۹۷۲، ۳۲،۷ مخ.

د بوټو د شفا بخښوونکې خواصو روښانه کیدلو په حیواناتو کې د زخمونو د سیر او یا د هغوی د ناروغی مشاهده یې هم مساعده کړې ده.

د سهیلی امریکې په پخوانیو کیسو کې راغلی دی چې د کنینو طبی خواص هغه وخت ولیدل شو چې یو حیوان د کنین د بوټی ریښی وخوړلې او له تبی څخه روغ شو.

د عربو د کیسو له مخې د قهوې تنبه کوونکې قوه د وزو په مرسته کشف شوی ده.

د نباتاتو شفا بخښونکې خواصو مطالعه بالاخره انسان په دې مکلف کړی دی چې د هغوی لومړنی ښوونکی طبیعت دی او د درملی موادو منبع نباتات (بوټي) دی.

د بوټو د طبی خواصو په باره کې معلومات او پوهه ورو ورو پراختیا موندلی او له یو نسل یې بل نسل ته انتقال کړیدی. پدې ډول لومړنی انسانان د خپلو تجسسونو په اساس د مرضونو څخه د ارامتیا او د خپل محیط د چاپیریال د مختلفو موادو له ضرر څخه د ژغورنی په خاطر په تیره بیا بوټی یې د استفادی لاندې نیول. او څرګنده ده چې د بوټو د علاج کوونکو اغیزو څخه استفادی په دی دوره کې د انسانانو د کولکتیفی یا ډله ایزو غیر شعوری لویو تجربو نتیجه ده.

د مور واکی د غوړیدنې په دوره کې دا تجربی د ښځو په تجربو کې ذخیره کیږی، ځکه چې په دی وخت کې د ناروغیو د درملنې وظیفه ښځو په غاړه اخستلی وه. د خوراکی موادو د برابرولو دنده اساساً په لومړنی ټولنه کې د ښځو په واسطه ترسره کیدله، هغوی تر هرڅه د مخه د یو شمیر بوټو په معالجوی خواصو پوهېدل او په مختلفو تداویو کې یی تری ګټه اخستلی ده.

تصادفی خبره نه ده چې په داستانونو او کیسو کې د ماهرو طبیبانو په صفت تر ټولو د مخه ښځې معرفی شویدی چې مشهوری یی په لاندې ډول دي:

بیریګینیا Beregenia د لرغونو سلاویانو په نزد، پولی دمنه Polydamna په لرغونی مصر کې، احمیدا او ارتمیدا Ahmeda & Artmeda په یونان کې، کازا Kaza د چکیانو په نزد، هیرتا Herta په پخوانی جرمنی کې، مارینا Marina په کیف او داسی نورو هېوادونو کې.

په دې ډول د انسانی ټولنې د تکامل په لومړنی مرحله کې یعنی د مور واکی په عصر کې نباتات د علاج کوونکو موادو څخه وو.

په وروستنیو مرحلو کې هغه وخت چې نیزه او لینده راوج شول او ښکار رامنځ ته شو نو د ښځې د سابقې شرایطو هم په ټولنه کې بدلون وموند او د ښکار غوښه د انسانانو همیشنی غذا وګرځیدله او ښکار د نارینه و د کار او زحمت مهمه برخه شوه. نو دا وه چې د خوراکی موادو برابرول د نارینه و په غاړه شول او په ټولنه کې د ښځو ونډې دوهم مقام ونیو. پدې توګه څرګنده ده چې د طبابت رول هم ورو ورو نارینه و ته منتقل شو.

په دې وخت کې دی چې د نباتاتو سره یو ځای چې د هغوئ درملی اغیزی د یوی اوږدی زمانی په پړاو کې لیدل شوی وی نو په تجربوی ډول د حیوانی محصولاتو د

معالجوی (درملی) خواصو څخه ګټه واخستل شوه او د طبابت په مقصد د نباتاتو تر څنګه د حیواناتو له ځیګر، تازه وینی، وازګی او د هډوکو څخه هم استفاده رامنځ ته شوه.

هغه وخت چې انسانانو د ښکار مرحله تیره کړې او د حیواناتو په اهلی کولو شروع کوی د ښکار کسب خپل ځای د حیواناتو اهلی کولو ته پریږدی. د سفالی چاری (کوزه ګری) او له فلزاتو څخه استفاده د تجربوی طبابت په تکامل کې ستر ټوپ پیل کوی او درمل جوړونه هم لوړو انکشافاتو ته ور پورته کیږی.

شپانه د خپلو څارنو او مشاهداتو په اساس پر حیواناتو باندې د نباتاتو د اغیزی تجربی حاصلوی او همدا خبره ده چې تر ټولو د مخه په دی مرحله کې د جراحئ اساس کیښودل کیږی. د دې په خاطر چې شپون مجبور و چې د خپل زیان رسیدلی څاروی جرحه یا زخم وګنډی، ارجاع یا د خلعی رد ترسره کړی، ماتی شوی برخی تثبیت او تداوی کړی، کوم چې د وحشی او داړونکو حیواناتو او نورو عواملو په واسطه مصدوم شوی وو.

د اهلی حیواناتو مشاهده د نباتاتو درملی اغیزی په برخه کې د پوهی پراختیا برابره کړه. «د اهلی حیواناتو د پاره د کمک تطبیق، په ترضیضاتو او جراحاتو کې د جراحی لومړنی اساس یې کیښود، چې دا تجربی په کرار کرار سره په انسانانو باندې تطبیق شوې».[1]

«لومړنی انسانان داسی کسان وو چې د اطرافو نامکمله قطع او د کوپړئ د سوری کولو تجربه به ئی کوله».[2]

د حیواناتو د معالجوی تجربو په اثر بالاخره دا تجربی د انسانانو د تداوئ دپاره هم په کار ولویدلی. د حیواناتو د روزلو وده او تکامل نه یوازی په اقتصاد کې یو ټوپ رامنځ ته کړ بلکې د انسانانو د شعور په وده کې یې هم ارزښتناک نقش ولوباوه. همداشان دی عمل د نارینه و نقش په راتلونکو نسلونو کې برجسته کړ او د کولالئ د چارو رامنځ ته کیدو سره د کولالئ د لوښو ایجادولو لپاره زمینه برابره کړه، چې په دغه لوښو کې نه یوازی انسانانو خوراکی مواد جوشول بلکې هغه مواد چې درمل تری لاس ته راتلای شو هم جوشول.

څرنګه چې انسانان په لومړنیو مراحلو کې د طبیعی حوادثو په مقابل کې کمزوری وو، نو له دی کبله په دغه وخت کې انمیزم وده کوی، یعنی مرضونه لکه جزا او کیفر هغو خلکو ته چې خپلو نیکونو ته بې احترامی او بې ادبی کوی شمیرل کیږی. انسانانو فکر کاوه چې د هغوی د نیکونو اروا د بې ادبو انسانانو په وجود کې ځای نیسی او هغوی ناروغ کوی. د نیکونو پرستش ورو ورو په عقیده بدلیږی او حتی د ډیرو خلکو په نزد د نباتاتو معالجوی خصوصیتونه مافوق قدرت پوری تلقی کیږی، نو په دې وخت کې د تداوئ پروسه د اورا د خوانو په واسطه ایجادیږی.

د عقایدو د ودې پراساس د تدوائ میتودونه لکه دعا، د خبیثه روح ایستل، د خبروکولو او مجلس کولو له لاری، داغول، د وحشت او ویری د ماسکونو استعمالول او طلسم رامنځ ته شول.

---

١- کریکوف، اورګانیزشن و اقتصاد فارمسی طبع ١٩٧٦ ص-٥ .

٢- دوکتور سیاووش، تاریخچه اورتوپیدی افغانستان و جهان ٢٠٠٦ کابل ص-١ .

د بیلګې په ډول د هند او چین بومیانو د ملاریا ناروغی داسې تشریح کاوه چې د شپې له خوانه په ځنګل کې له ونو څخه د دې ناروغی خبیثه اروا پر انسان پریوزي (زمونږ په ګران هېواد کې له ګڼو ونو لاندې ویده کیدل داسې تلقی کیږي چې یوځ بلا په سړي اغیزه کړي او هغه یې ناروغ کړیدی. حالانکې چیر ته چې ګڼې ګڼې ونې موجو دي وي، شپې له خوانه هلته اوکسیجن کمیږي او د تنفس د اخلال سبب کیږي، او داسې فکر کیږي چې پر سړي باندې بلا را پریوتي ده) (مؤمني) انسانانو د اروا د اغیزي طریقې لکه د ژوندیو حیواناتو پلټنه کوله. په همدې توګه د هغې زمانې خلکو له جادوګری او افسونګری، مختلفو استدعا وو، طلسم او نورو څخه پراخه استفاده کوله. له استدعا او عبادت څخه مقصد او غایه د خبیثه اروا څخه د انسان د وجود ساتنه ده چې د ناروغی باعث ګرزي، د دې مطلب لپاره حتی د انسان د قربانی عمل هم تطبیقیدله.

لکه چې د مخه یادونه وشوه، انسانانو د ډارولو له میتودو لکه د وحشتناکو ماسکونو اغوستل، ډول وهلو، په خبیثه اروا باندې د حملو صحنه سازیو او داسې نورو تدابیرو څخه استفاده کوله. د دې خرافاتی خطرناکو میتودونو څخه کار اخستل، د انسان په عضویت باندې لوی زیانونه رامنځ ته کول.

په پراتیک کې د تداوی نور میتودونه هم په کار لویدلی دی لکه په میخانیکې ډول د قیح چوشل (په دې مانا چې په دې کار خبیثه اروا له سړی څخه جلاکیږي) چې د هغه وخت د طبابت له بیلګو څخه قبول شوی وو.

له مساژ څخه هم د خبیثه اروا د ماتولو په خاطر هم کار اخستل شوی دی.

د وجود په بیلا بیلو برخو باندې د تودی او سړی داغ ورکول د کولالی کوزی د ایښودلو په اثر و چې طبی کدوګکونه را پیدا شول. (زمونږ په هېواد کې دغه ډول میتود په هماغه لومړنی شکل په کار اچول کیږي) (مؤمني). د لومړنی ټولنې په راتلونکو پړاونو کې وو چې د اورا د خوانی مرحله را څرګنده شوه چې د بدوی طبابت لومړنی علاماتو له دې څخه رامنځ ته شوی دی. په لومړۍ سرکې دا ډول تداوی د دینی کیش سره هیڅ تړاونه درلود، خو په راتلونکو مرحلو کې د دعا خوانی رول ورسره ګډ شو او دلته وو چې د تداوی میتودونو د پرستش (لمانځنی) په مرسته را څرګند شول او د درملو په غرض مشخصو خدایانو ته رجوع وشوه او د اوراد خوانی فعالیتونو په طبی فعالیتونو کې نفوذ وکړ. دا وه چې کلیسایی او دعا خوانی طبابت ظهور وکړ او د دې ډول تداوی په خوا کې د وګړنیز طبابت د تجاربو غنا هم ادامه وموندله چې دغه تجربوی طبابت حتی د مور واکې په لومړنی مرحلې کې ظهور کړی وو.

د وګړنیز طبابت اهمیت د تجربوی مشاهداتو په یو ځای شویو ذخیرو کې پټ دی. په دې ډول طبابت کې د بلا دونا اتروپا (انګشتک)، یاسمن ګلانو، پسرلنی غرنی ګلونو، پاڼی، د کنین دونی ریښې او یو شمیر زیات نباتات چې په هغه وخت کې له هغوی څخه په پراخه توګه استفاده کیدله شهرت درلود. د دې سره سره د هغه عصر په طبابت کې زیان رسوونکې او غیر معقولې درملنې هم زیات رواج درلود چې د هغې زمانې د ناپوهې او خرافاتو انعکاس ورکوونکې وو.

د دې برخې په نتیجه ګیری کی باید وویل شی چې د علمی طبابت وظیفی په دې کې پرتی دی چې د وګړنیز تجربوی طبابت اسناد او مدارک په دقیق ډول بررسی او وکتل شی او په علمی شکل د مستدلو مدارکو په اعتبار له هغوی څخه ګټه واخستل شی.

په دې توګه طبابت د بشری ټولنی په لومړنیو مرحلو کې د تجربوی طبابت په توګه د ځانګړو اشخاصو د فعالیتونو په نتیجه کې نه بلکې د لومړنی ټولنې د ډله ایزو فعالیتونو په نتیجه کې ظهور کړی دی.

د لومړنی ټولنې انسانانو د طبابت پوهه د چاپیریال او طبیعت سره د مستقیم تماس له لیارې ترلاسه کړی ده.

هغه واقعی علت چې د طبابت په ظهور او وده کې ټاکونکې برخه درلود له د انسانانو د ژوندانه د مادی شرایطو د تغییر څخه عبارت وو چې د تولیدی نیروګانو او تولیدی مناسباتو د ودې او تکامل سره یې نږدی تړاو درلود.

## د طبابت وده د مریي توب په ټولنه کې

د مریي توب په دوره کې د کار ویش فوق العاده پراختیا وموندله، او نوی حرفی رامنځ ته شوی چې یویې هم طبابت و. د هغې زمانی د کلتور د سترو بریاوو څخه د لیک پیدایښت و چې د ده پواسطه د غلامی د ټولنې د معنوی او مادی ژوند په متعلق زمونږ. تروخته پوری یو شمیر پانې راپاتې شویدی چې د دې یو شمیر زیاتو پاڼو په منځ کې د طبابت او فارمسی د پراختیا د وضعې په باره کې زیات معلومات او نظریات هم لیکلي شوی دی.

څرګنده ده چې د ټولنیز جوړښت بدلون په طبابت کې هم بدلون راووړ چې په دې وخت کې د طبابت لومړنی مسلکی مکتبونه رامنځ ته شول او په دی دوره کې تعبدی طبابت پوره رونق پیدا کړ چې معبدونو خپل رول په اعظمی ډول وساته.

په دې مرحله کې تعبدی (خدایي) طبابت تفوق او برتری حاصله کړه چې د هغی پربنسټ بیلا بیل مذهبی آئینونه، دعا خوانی (استدعا او زاری کول) او د خدایانو لمانځنه موجوده وه چې د دی په مرسته هڅه کیدله ترڅو چې مرضونه تداوی کړی.

د هغې زمانی یو شمیر پاڼی اوس هم موجودی دی چې د مریي توب په مرحله کې په لرغونی ختیځ هېوادونو کې د لیک لیکنې په ایجادولو شهادت ورکوی. او په تفسیرونو، رسالو او کتابونو کې د ناروغی او د هغوی د درملنې د میتودونو په اړوند یادونی شوی دی.

همداشان په دې دوره کې د معالجوی تاثیر له نقطه نظره د درملو لومړنی دسته بندی رامنځ ته شوه، او په یو شمیر هېوادونو کې (لکه بابلستان، لرغونی چین او داسی نورو) د مریي توب د ټولنې په لومړنیو مرحلو کې د هغو طبیبانو او دعا خوانانو د معالجوی چارو د پرمخ بیولو د څرنګوالي په اړوند قوانین تدوین کړی وو.

د دې قوانينو څخه د يو قانون په موادو کې چې ۱۸ پيړۍ تر ميلاده د مخه په بابلستان کې تر اجرا لاندې نيول شوی داسې يادونه شويده «هغه طبيب چې د درملنې په اثر ناروغ ته ضرر ورسوی جزايې د لاسونو پريکول دي».[۱]

د غلامۍ په عصر کې د طبابت تړاو د عقايدو سره په حقيقت کې د ناروغيو د حقيقی عواملو پيلامه وه، په دې عصر کې انسانانو فلزی افزار ايجاد کړی وو، د حيواناتو روزنې پراختيا موندلی او کرنه منځ ته راغلی وه، کسبګری هم وده کړې او په دې ډول د پورتنيو ټولنيزو قشرونو ترمنځه د کار ويش رامنځ ته شوی و، او د توليد د طرز بدلون د طبابت په تکامل باندې پوره اغيزه اچولی وه، طب او فارمسی په دې وخت کې د عقيدی سره نږدې ارتباط پيدا کړی او زياتره اوراد خوانان په عين حال کې طبيبان هم وو.

«په دې مرحله کې ټولنيز طبابت د وخت په تيريدلو سره د پروفيشنل په شکل وده وکړه او وتلو طبيبانو لکه هيپوکرات، ګالن او ابن سينا د ناروغيو حقيقی عوامل کشف کړل».[۲]

**طبابت د سومريانو په زمانه کې:**

سومريان لومړنی قوم و چې په بين النهرين، کې د څلور زره او پنځه سوه تر درې زره او پنځه سوه کاله مخکې له ميلاد څخه، په ښار کې ژوند اختيار کړی دی او د سومريانو د تمدن بنسټ يې کيښود. دوی حکومتی نظام درلود چې پاچا د لښکرو په تشکيلولو او د آزوقې په تامينولو کې مصروف و. همدارنګه د سومريانو د عدالت د تامين په نتيجه کې د روغيتا د سلامتيا په ساتنه او د مړينې وخت په تاخير اچولو کې خاص تدابير نيولې وو او زياتې دعا ګانې يې کولې.

هغه څه چې د طب او طبابت روغتيا ساتنې او د انسانانو د سلامتې په برخه کې بحث کيږی هغه دا دی چې د دغې تاريخی دورې څخه وروسته د تغذی له نظره د انسان د سلامتې په تامين کې بل ټولنيز ژوند ته داخليږی چې د هغوی د عمر اوږد والی او روغتيا ساتنې په هکله حدس وهلی شو.

په دغه دوره کې د ژوند مفهوم يوازې د خوړو لاس ته راوړل وو او د غذا د تهيه کولو په موخه په ښکار باندې مصروف ول. او کله چې لس زره کاله مخکې حيوانات يې اهلی کړل زراعت او د تخمونو کرل هم رونق پيدا کړ او د غذا کميت او کيفيت ښه والې وموند او د ښه ژوندانه زمينه برابره شوه.

څرنګه چې سومريانو په بين النهرين کې ژوند کاوه او د سامی قوم د عربستان د ټاټو وزمې څخه بين النهرين ته مهاجرت وکړ چې د اکدی او سومری اقوامو د ترکيب څخه د بابل قومونه منځ ته راغلل چې بابل د هغوی پلا زمينه وګرزيدله او د دولت د تشکيل مقدمات

---

۱- کريکوف، اورګانزيشن او فارمسی اقتصاد طبع ۱۹۷۶ ص - ۵ .
۲- اثر فوق، ص - ۵ .

منځ ته راغلل او په اخیر کې حمورابی دغه دولت یې جوړ کړ. د حمورابی قانون ډېر لرغونی مدنی قانون دی چې په بشری ټولنه کې منځ ته راغلی دی.

د حمورابی قانون د یوې تیږی پر ستن چې دوه متره او پنځه څلویښت سانتی متر ارتفاع لری په منظم او ښایسته ډول لیکل شویدی. په کال ۱۹۰۲م کې د شوش د ښار په ورانیو کې موندلې شوی او د پاریس د لوور په موزیم کې ساتل کیږی.

د دغه قانون متن ۲۸۲ مادی او یوه مقدمه لری. د حمورابی قانون د لاندنیو مسایلو په برخه کې تنظیم شوی دی.

«افترا، په دروغو قسم خوړل، قاضی ته رشوت ورکول، د شاهدانو پیرودل، د قضاتو بی عدالتی، د مالکیت پر ضد جنایت، د رعیت او ارباب روابط، د تجارت حقوق، د کورنی حقوق، ظلم او تعدی پر اشخاصو، د طبیب حق الزحمه، د معمار حق الزحمه، کښتی جوړونی، د کښتیو اجاره، د حیواناتو کرایه او تاوانونه چې لدی بابت څخه حاصلیږی او متقابل حقوق او تکالیف د ارباب، غلام او کنیز په منځ کې».

**طبابت د بابلیانو په منځ کې:**

په بابل کې د درملنې په اړوند مسایل نږدی شپږ زره کاله د مخه یعنی تر څلور زره کلونو څخه زیات له یونان څخه پیل شوی دی. د هغوی د ټولنیز نظام اصلی بڼه په هغه زمانه کې د زیات شمیر خدایانو په موجودیت بنا وه. د دې خدایانو څخه یو شمیر د بندګانو د ګناهونو د جزا له کبله چې مرتکب کیدل هغویی ناروغه کول او بله ډله یی د هغو نیکو اعمالو په بدل کې چې یی ترسره کول شفایی ورکوله.

بابلیانو خپل علمی او تمدنی مطالب د خاورو په لوحو باندې لیکل او وروسته یی هغه په کوره کې پخول. اته سوه لوحی د بابلیانو څخه لاس ته راغلی چې د طب او درملنې د پوهې په برخه کې خبری کوی او دا پخپله د بابل د خلکو پاملرنه د طبابت پوهې ته را ښئی. ویل کیږی چې یونانیانو د ریاضی، نجوم او طب پوهه له بابل څخه یونان ته وړی دی.

لکه چې مخکې لیکل شوی د حمورابی په قانون کې د اطباو د حق الزحمی په مورد کې په زړه پوری لیکل شویدی او همدارنګه د اطباو او قابله ګانو د جریمی په برخه کې په مشخصه توګه یادونه شویده. د مثال په توګه د ناروغ د یو غاښ ماتیدل، مجازات د طبیب محرومیدل له یو غاښ څخه وو. که طبیب یوه سترګه چووله لاس یی باید پری شوی وای او که درملنه یې د مړینی باعث کېده باید بل مریی و پیری او ارباب ته ورکړی او که دایه د مور او پلار بې له اجازی څخه بل ماشوم ته شیدی ورکړی د هغی تې پری کېده.

**د اشوریانو د طبابت څرنګوالی:**

آشوری قوم د سامی اقوامو په جمله کې راځی. هغه وخت چې آشوریانو پر بابلیانو تسلط پیدا کړ او دا حاکمیت یې چې ۱۲۷۰ کاله تر میلاده مخه پیل او په ۵۳۸ق.م کې بشپړ شو د بابلیانو اعتقادات او معلومات ورو ورو د آشوریانو په ټولنه کې نفوذ وکړ او هغوی هم

په دې عقیده شول چې روغتیا او ناروغتیا د خدایانو له طرفه په بندګانو راوستل کیږی. او د دې عقایدو پر بنسټ د ناروغیو دری «الهی» رامنځ ته شوی چې د نری رنځ د ناروغی الهی، د ځیګر ناروغیو (داخله ناروغیو) الهی، د جنینو د سقط، د ماشومانو د مرګ او مړنی د الهی څخه عبارت دی. د دې ناروغیو څخه ژغورنه زیاتره د دعا او جادو په طریقی صورت مونده.

په لنډه توګه ویلای شو چې آشوریانو د طبابت مهم ټکی عبارت دی له:

- له بابلیانو څخه د آشوریانو د طبابت وروسته پاتی توب.
- د هغو کسانو له خوا د پاداشونو او مجازاتو ټاکل چې د طبابت له علمه یې خبر نه درلود او په دې کار یی لاس پوری کړی و.
- د عمومی حفظ الصحی د مفکوری پیداینت و، لکه ښځه وروسته له زیږونی څخه ناپاکه محسوبیدله او په هرڅه چې یې لاس واهه هغه یی هم ناپاکه کول.

همدارنګه هغوی بوټی، د حیواناتو غوړ او نفت اثر یې په درملنه کې مؤثر ګڼل.

هغه کیندنی چې د نینوا په ښار کې شوی دی په میخی خط باندې لیکنی کشف شویدی چې په هغو کې د طب او درملنې یوزر دستورونه شامل دی، او لازمی دعاګانی د ناروغیو په رفع کولو کې ذکر شوی دی. همدارنګه ځنی قوانین یی لرل چې د ساری ناروغیو، زخمونو او سفلیس، جذام او نورو په ټولنه کې د له منځه وړلو په برخه کې وو.

**طبابت په لرغونی چین کې:**

چین د ډیر لرغونی کلتور درلودونکی و. او د خط لیکلو علامی تقریباً څلور زره کاله تر میلاده دمخه په چین کې ایجاد شوی دی. د چین طبابت او فارمسی ډیر په زړه پوری و، چې د چینایانو علمی طبابت تر میلاده زر کاله دمخه منځ ته راغی. حتی په دغه زمانه کې زیاتره هغه درملونه چې له نباتاتو، ونو، دانه لرونکو نباتاتو، مینرالونو او حیواناتو څخه تر لاسه کیدل د پیژندنې وړ ګرزیدل.

چینایانو د درملو په هکله ډیر پخوانی کتابونه یو یی د «نئی څزین» په نوم او بل کتاب یې «د انســـان د داخلی اعضاوو» په هکله لیکلی دی، چې په هغوی کې د نبـــاتی درملو مترادف نومونه، د طبی بوټو فهرست، د راټولونې نیټه، جغرافیوی موقعیت، فارمکولوژیکی اغیزی او له ۹۰۰ ډولو نباتاتو څخه د استفادی طریقی یادې شوی دی.

له میلاده نږدې ۵-۶ پیړۍ د مخه په چین کې نامتو طبیب د بن څیاو په نوم ژوند کاوه. نوموړی د غوږونو او سترګو ناروغی تداوی کولی، د ناروغیو د تشخیص میتودیی د ضربان په طریقه کشف کړی دی. د دعا خوانو او حقه بازانو (شارلټان) پر ضد یې سخته مبارزه کوله او له ده څخه د معالجی علمی میتودونه په میراث پاتی شوی دی.

بن څیاو داسی محاسبه کوله «د ټولو ناروغیو له منځه هغه ناروغی نا امیده کوونکی ده چې خلک په دعا خوانانو عقیده ولری نه په طبیبانو»

تر ميلاده دوه پيړۍ ترمخه د نباتاتو او ريښو په هکله يوه رساله ليکلی شوی وه چې په دې رساله کې د ۳۶۵ طبی بوټو معالجوی خواصو انعکاس موندلی وو.

د ميلادی پيړۍ په لومړنيو کې چينايي طبيبانو د تيفو (محرقه يا وچکۍ) په هکله يوه رساله وليکله چې په هغې کې د مصاب ناروغ د تداوی ميتودونه پيشنهاد شوی وو. همدا شان د نبض په باره کې رساله ليکلی شوی چې په دی کې د تشخيص په برخه کې د نبض د ضربان تحقيقاتی ميتودونو انعکاس موندلی وو. او يوبل کتاب يی د نسخو مجموعه يا کلکسيون چې محتوا يې د زياتو ناروغيو معالجوی مشورو تشکيلوله هم تدوين کړ.

يو بل چينايی طبيب د «خوی تو» يا «خواتو» په نوم (۱۱۲-۲۱۲م) خپل ناروغان د بيهوشۍ په واسطه عمليات کول، چې تر عملياتو د مخه يې مريض ته دوا ورکوله او د هغی په واسطه يی احساس له لاسه ورکاوه.

د پخوانيو زمانو راهيسی په چين کې د تداوی د ستنی، داغ کولو، مساژ او معالجوی ورزشونو په واسطه وو. د تداوی په چارو کې د طبی نباتاتو څخه پراخه ګټه اخستل کيدله، په تيره بيا د «ژن شين» (د حيات ريشه) د بوټو د ريښو څخه د بيلا بيلو ناروغيو لکه کم خونی، نری رنځ (توبرګلوز) او نورو په معالجه کې استفاده کيدله. همدا شان په پراخ ډول د بيلا بيلو ناروغيو د تداوې په خاطر له ليمو، رواش، هندی بنګو، چای، پياز، اوړی، اکونيت، بمبوک (بانس) او داسی نورو څخه ګټه اخستل کيدله، او دهغو درملو څخه چې حيوانی منشأيی درلودله لکه حيوانی مشک، ځيګر، وينی او د ببرد داخلی غړو او نورو څخه استفاده کوله او د مينرالی موادو څخه معمولاً سيماب، پلمب (صرب)، سلفر او اوسپنی څخه په ډيره زياته پيمانه ګټه پورته کيدله.

چينايي طبيبانو ډيره لويه قاعده يعنی «له ناروغی مخنيوی (وقايه) تر درملني ډيره غوره ده» اصل يې د طبابت ډګر ته را وايست. د دې طبيبانو د درملنې ميتودونه پرلويو تجربو باندې ولاړ وو، هغوی د سفليس په تداوی کې د سيمابو، د جلدی ناروغيو (جرب او خارښت ناروغی) په معالجه کې له سلفرو، د ويتامين لرونکو طبی نباتاتو څخه يی د راشيت او داسی نورو ناروغيو په تداوی کې کار اخيست.

په اوسنی وخت کې تر ۵۰ ټوکو زيات هغه آثار چې د لرغونی چين د طبيبانو له خوا د دوايي موادو او د معالجی د ميتودونو په هکله ليکل شوی وو. اوس د بشر په واک کې دی. په کال ۶۵۲م کې «د زرو طلايی ادويو» په نوم کتاب چې د داکتر «سون- سو - مياو» له خوا ليکل شوی و چاپ شو.

په کال ۶۵۹م کې لومړنی رسمی دولتی فارمکوپی (کودکس) په ۵۳ ټوکو کې چاپ شوی چې په هغه کې ۸۴۴ دواګانی په مشرح ډول يادی شوی دی.

په نهمه ميلادی پيړۍ کې د لومړۍ ځل لپاره په چين کې دولتی انستيتوت پرانستل شو چې په هغه کې د بيلا بيلو څانګو طبيبان تربيه کيدل.

په همدې ډول د نړۍ د نورو هېوادونو د متخصصينو څخه د مخه د درملو د برابرولو او خرڅولو او د هغو موسساتو چې د درملتونونو سره يې مطابقت درلود متخصصين رامنځ ته شول. د چينايانو د لاسته راوړنو څخه يو هم د ستنی طبابت دی چې په لرغونی چين کې

رواج درلود. خو د دوهمی عمومی جګړی څخه وروسته په دغه برخه کې ځیرنی وشوی او ګټوری نتیجی یی لرلې.

په اوسنی وخت کې په جاپان کې دیرش زره متخصصین پدی هکله موجود دی چې په لوړو تحصیلی موسسو کې دری کاله تحصیل څخه وروسته د دغه مسلک صلاحیت لاس ته راوړی، او ۲۵۰۰ کسان په هر کال کې د شاملیدلو په موخه نومو نه ثبتوی.

اوس اوس د ستنی طبابت متخصصینو دری موسسی موجودی دی چې څلوینت زره غړی لری. پدی ترتیب د ستنی طبابت یا اکوپنچر په پراخه پیمانه په ځینو هیوادونو خصوصاً چین او جاپان کې د استفادی وړ ګرزیدلی دی.

**طبابت په لرغونی هند کې:**

له ډیرو پخوانیو آثارو څخه چې ۱۵۰۰ق.م کې لیکل شوی او د هند نور لرغونی کتابونه د هغی دوری شاهد دی چې هندوستان دهغه وخت ناروغیو په باره کې پیژندل شوی دی لکه جزام، نری رنځ او داسی نوری.

هغوئ د خپل وطن پر نباتاتو پوهیدل او د یوسل اوه ډوله بوټی چې د ناورغیو په درملنه کې کاروړل کیدل پرستش کاوه. د طاعون او وبا ناروغانو ته یی درمل ورکاوه او هم یې خپل لاسونه د مذاهبو مشرانو ته وړاندې کول او مرسته یی ځینی غوښتل. د مارچیچلو ځای یې چوش کاوه او وروسته به یې هغه ځای سوځاوه. د وبا او طاعون د ناروغیو په سرایت باندې پوهیدل، د اندامونو په قطع کولو، د غوړونو، پوزی، شونډو ناروغیو او د ماشوم را ایستل د مور له نس څخه تجربې لرلی.

په هندوستان کې د اجتماعی ژوندانه په ټولو برخو کې په خدایانو عقیده درلودل. د مثال په توګه وارونا (Warona) د اوبو خدای، رودرا (Rudra) د مړینی، معجزی او حاملګی خدای، او ژوارا (Juara) د ملاریا د تبی خدای په نامه نومول شوی دی.

په همدې ډول په هغه وخت کې د مارانو او نور چیچونکو حشراتو په هکله ارقام هم موجود وو، په دغه کتاب کې د هندوستان د هغو درملو فهرست هم شامل وو چې حیوانی، نباتی او منرالی منشأ یې تشکیله کړئ وه چې د قیمتی احجارو معالجوی خواص هم پکې لیکلی شوی وو لکه سیماب، طلا (باریکی ورقی)، نقره، مس، اوسپنه، صرب او داسی نور فلزات.

د لرغونی هند او د سیمی (افغانستان) طبابت د تاریخ په باره کې د معلوماتو بنسټ له دوو لاندنیو کتابونو څخه عبارت دي:

- ایوروئید (د ژوندانه پوهه).
- دمان یا مانو Mann یا Manu د قوانینو مجموعه.

چې له دې منځه د ایوروئید کتاب ډیر زیات په زړه پوری دی او د داکتر «سوشروتا» له خوا (شپږ پیړۍ د میلاد څخه ترمخه) تألیف شوی دی، چې په هغه کې د ۷۶۰ عنوانو نباتی درملو څخه نومونه اخستل شوی دی.

په هند کې د هغی زمانی درملونه په منبهاتو، سړه ونکو، خارجوونکو او داسی نورو باندې ویشلې شوی دی. د دی درملو د استعمالولو طریقی داسی ښودل شوی دې:

د پودر په شکل، پیلول، عصاری (شیرې)، جوشاندی، مرهم، مښلو، انشاق، چلم (لوګی راکښلو) او داسی نور.

د درمل د تجویز په وخت کې د کال موسم، د هوا وضعه، د ناروغ د حرارت درجه، د هغه عمر او د ناروغی کرکتر په نظر کې نیول کیده.

حتیٰ په میلادی دریمه پیړۍ کې د طبی نباتاتو روزنه رواج درلود.

د هند فارمکوپی د نباتی دوایی په ۸۰۰ موادو مشتمل وو، چې د هغوی یو زیات شمیر په اوسنی وخت کې هم استعمالیږی.

د هندی طبیبانو د پاره د زهریاتو او ضد سموم موادو پیژندنی ډیر اهمیت درلود، په تیره بیا هغه زهریاتو چې د زهر لرونکو مارانو د چیچلو پوری یی اړه درلودله. او دې مسئلی د هندی طبابت په حفظ الصحه کې مهم مقام درلود.

«په هندی پخوانیو ادبیاتو او مذهبی کتابونو کې د مجروحینو د تداوی میتودونه هم ښودل شوی دی. لکه چې په ایوروئید کې یو مبحث د انسان په بدن کې د نیزو د څوکو او د فلزی اجنبی اجسامو تشخیص او له بدن څخه د مقناطیس په واسطه د هغو د ایستلو په باره کې معلومات وړاندی شوی دې». [1]

همداشان په نوموړی کتاب کې د یوه طبیب په باره کې مفصلاً معلومات ورکړل شوی چې په لومړۍ څپرکی کې ورڅخه یادونه شویده.

په هماغو پخوانیو زمانو کې، ځینی نوری اصولنامی هم موجودې وې چې د طبیبانو مسلکی چاری یی تنظیمولی لکه د Mann د قانون له مخی د ناسمی تداوی په صورت کې باید چې طبیب ورځنې جریمه ورکړی.

د هند په تیره بیا د تبت د طبابت د تجربو څخه د آسیا د قاری خلکو استفاده کوله او د لرغونی تبت په طبابت کې کامفر، سپین ګل، زعفران، د خردل ګلانو، پیازو او مختلفو دواګانو چې نباتی منشأ یی درلودله رواج درلود.

د تبت طبابت د ناروغیو په درملنه کې غذایی رژیم ډیر مهم ځای درلود.

په دی ډول د لرغونی چین او هند طبابت او په همدی ډول د نورو آسیایی هیوادونو طبابت زیاته پراختیا موندلی وه، زیاتی تجربې یې راغونډې کړې چې د هغوی زده کړه او تعمیم په اوسنی عصر کې د ډیری دلچسپی وړ موضوعګانی دی.

---

۱- اکادمیسن پروفیسور محمد موسی وردګ – جراحی حرب، اریانا مطبعه کابل ص -۲ .

**طبابت په لرغونی مصر کې:**

د لرغونی مصر طبابت تر میلاده څو پیړۍ دمخه خپل موجودیت ښیئ، چې د نباتاتو زیات شمیر تصویرونه او د هغوی په متعلق یاد دښتونه د معبدونو په دیوالونو او تابوتونو باندې پیدا شوی دی. د هغه محل په مورد کې چې د لومړۍ ځل د پاره هلته درمل استعمال شوی دی. د څیړونکو او لیکوالو په منځ کې سخت اختلاف نظر موجود دی. ځنی یې عقیده لرې چې دا ویاړ د مصریانو په برخه شوی دی ځکه چې هم دوی وو چې په نړۍ کې یې د لومړۍ ځل لپاره د دردونو د درملنې په خاطر له راسن څخه استفاده وکړه او دا هغه لومړنی درمل وو چې د ګټې ورکولو وړ و ګرځیده (د کشف الظنون د دوهم ټوک د ۱۲۶ مخ په حواله).

راسن یوه مصری کلمه ده (ژیړ رنګی ګل دی چې تر یو حده زهرناک هم دی – محسن جاویدان). دی ګیاه ته اروپائیان هلنیوم Helenium وایی.

یوه بله ډله پوهان د افریقا د شمال د نورو برخو نومونه هم اخلی، او وایی چې لومړۍ ځل د پاره د هغوی له خوا نه درمل بشر ته الهام شوی دی. ځینی مورخین دا محل د رودس Rhodes، کنیدوس Cnidos او کس Cos ټاپوګان ګڼی او عقیده لری چې دغه الهام د خوب لیدنې له لارې صورت موندلی دی. او بالاخره یوه بله ډله د جالینوس څخه په پیروی سره عقیده لری چې په دی باندې اګاهی یعنی د درملو په نوم له مادی څخه استفاده لکه قرآنی ایتونه د مستقیمی وحی په ډول دی، ځکه د بشر د پاره هیڅکله د دی امکان موجود نه وو چې خود په خودی په داسی مهم او حیاتی کار باندې پوه شی.[1]

مصریانو دوه زره کاله مخکې له میلاد څخه د یریس Iris فرښته یې د طب د علم بانی او هرمس Hermes فرښته یې د طبی دستوراتو لارښوونکی په توګه پیژندل او ټول دستورونه په دوه څلویښتو کتابونو کې په معابدو کې مذهبی مشرانو ته سپارل شوی وو.

مصریانو پر اناتومی ښه پوهیدل، ځکه د هر مړی نس به یې خلاصول او ګیډه به یې په معطرو او خوشبویو موادو ډکول او بیا هغه به یې مومیایی کول. هغوی د خوک او میږی غوښه ناروا ګڼله.

مصریانو ښایستوب ته ډیر ارزښت ور کاوه، عطر او د پوستکی د نرمولو په موخه ملهم یی استعمالول او بدن به یی په غوړو مساژ ورکول. پدی توګه د غذایی رژیم او کسمتیک (آرایش) نسخی هم لیدل شوی دی.

د لرغونی مصریانو فکر کاوه چې زیاتره ناروغی له پرخورۍ څخه پیدا شوی او توصیه یې کوله چې په منظم ډول د هرې میاشتې په دریمه ورځ باید جولاب استعمال کړی، ترڅو معده او کولمی یې پاکی شی او د کثیفی وینی د ایستلو په خاطر به خپل رګ واهه.

---

۱- دکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ۱۹۷۱ تهران.

هغه ارزښتناک آثار چې د لرغونی مصر په اثاروکه شهادت ورکوی هماغه د مصر پاپیروسونه دی چې یویی ۲۰/۲۳ متره اوږدوالی او ۳۰ سانتی متر ارتفاع لری. او د میلاد څخه دمخه د ۱۵۷۰ کال پوری تعلق لری. دا پاپیروسونه د المانی پروفیسور ایبرس Ibers په نوم- له خوا په کال ۱۸۷۲م کې لیدلی شوی دی او د پاپیروس ایبرس نوم یی ځان ته غوره کړی دی.


د لرغونی مصر د پاپیروسونو یوه برخه

پاپیروس د یو کتاب نوم دی (د وجود د ټولو غړو د پاره درمل اعمال او برابرول) چې په مشرح ډول ۸۰۰ درملی نسخی پکې لیکل شوی دی. دا رساله ۱۱۰ مخونه لری چې په هغو کې د معالجوی ادویه جاتو نسخی، تنفسی، غوږ، ستونی، پوزی، سوختګی، د سترګو ناروغی او د پوستکی د درملنې طریقی پکې لیکل شوی دی.

دا نسخې معمولاً د زیاتو اجزاوو (تر ۳۷ قلمو) درلودونکی وی چې اساساً نباتی منشأوې لرلی. په دی نسخو کې د حیوانی او منرالی موادو څخه ډیره کمه استفاده شوی ده.

په هغه زمانه کې ټول درملونه د هغوی د فارمکولوژیکی خواصو له نقطه نظره، مسهلاتو، کانګی راوړونکو او داسی نورو تصنیف او تقسیم بندی کیدل.

شات د سترګو د تداوی د پاره اغیزمنه ماده پیژندل شوی وه.

د هغو موادو ترڅنګه چې نباتی منشأیی درلودله له مینرالی موادو لکه سلفر، رانجه، دوده (د څراخ لوګی او هغه ایره چې د لوګی څخه لاس ته راځی مؤلف)، خټه، ښوره او همداسی هغه مواد چې حیوانی منشأ یی درلودله هم استفاده کوله.

بل د اسمیت پاپیروس چې ډیر لرغونی طبی مهم سند دی چې په هغه کې د لرغونی کتابونو او مراجعو څخه استفاده شوی ده. دغه پاپیروس ۴/۵ متره طول او ۴۶۹ سطرونه لری. په دغه پاپیروس کې د طب او طبابت په هکله ښه اطلاعات له ۱۶۰۰م مخکی له میلاده څخه راټول شوی دی. په دغه طومار کې د سر د جراحی ۴۸حالتونه چې د سر د کسر څخه نیولی تر نخاع شوکی (شمزی) جراحی پوری پکې ذکر شوی دی.

بل پاپیروس د خانون په نامه یادیږی چې په ۱۸۹۵ کال کې د یو انګلیسی باستان شناس چې فلیندرس پتری نومیږی د خانون په قصر کې کشف شوی دی. دغه مدرک د ۱۸۰۰ تر ۱۸۵۰ مخکی له میلاد څخه اړه لری او طبی ډول ډول اطلاعات پکې ذکر شوی دی. د خانون پاپیروس د طبابت او وترنری ډیر لرغونی اثر دی چې د هیروغلیف په خط لیکل شوی دی.

د پاپیروسونو له مندرجاتو څخه جوتیږی چې د لرغونی مصر طبابت پوهه د نن ورځی څخه ۳۰۰۰ تر ۴۰۰۰ کاله دمخه خپلی لوړی ځوکی ته رسیدلی وه. پدې رسالو کې د انسان د جسم د جوړښت، د ناروغیو د علایمو او داسی نور طبی اطلاعاتو څخه یادونه شوی ده. د ناروغ په معایناتو کې د مشاهدی، لمسولو او استماع څخه استفاده کوله.

نوری لیکنی چې د مصر د طبابت تاریخ یی غنی کړی دی دوه زره کاله مخکې له میلاد څخه ځو کتابونه دی چې د هغو له جملې څخه د (سینوهه Sinouhe چې د مصر د فرعون مخصوص طبیب وو) کتاب په دوو ټوکو کې دی او ۱۳۵۰ کاله مخکی له میلاد څخه پخپله د سینوهه له خوا لیکل شوی دی.

نژدی ۳۰۰۰ کاله تر میلاده دمخه د مصر په یو شمیر ښارونو کې من فیس، سایس او داسی نور د طبیبانو د روزنی په خاطر مکتبونه جوړ شوی وو.

چا چې غوښتل مدرسه کې شامل شی دری کاله مقدماتی درسونه یی د امون معبد (آمون د مصریانو خداي) کې لوستل او وروسته د طب مدرسه کې شاملیدل.

د طب مدرسه د طبس په ښار کې واقع وه چې د دارالحیات په نامه یادیدله. چې ډیره لویه مدرسه په نړۍ کې شمیرل کیدله هغه ناروغان چې شدیده ناروغی یی لرله او نور طبیبان د هغه علاج نشو کولای دی مدرسی ته به یې استول. د دې مدرسی ځینی درمل یی د تجربی په شکل پر روغانو (بی وزلو) تطبیقول. د دی مدرسی استادان سلطنتی طبیبان وو چې د فرعون له مقام څخه خاص القاب او درجات یی لرل او د بدای او سترو دولتی خلکو درملنه به یې کوله. سینوهه د خپل پلار د دوست په مرسته چې د سلطنتی سر (کوپړۍ) سوری کوونکې وو د دارالحیات په مدرسه کې شامل شو او تحصیل یی سرته ورساوه.

سینوهه لیکلی: کله چې طبیبانو غوښتل جراحی عمل اجرا کړی او یا د سرکوپړۍ سوری کړی د بیهوشۍ له درمل څخه یی استفاده نه کوله دا ځکه چې دغه درمل ډیر ګران وو، چې بې وزله کسانو د هغه د اخستلو توان نه درلود او په دې سبب کله چې انسان دارالحیات ته داخلیده نو دلخراشه چیغی او فریادونه یې اوریدل، خوبدایو خلکو ته به یې د تریاکو عصاره په عروقو کې داخلوله ترڅو ناروغ بیهوشه شی او وروسته به یې عملیات اجرا کاوه.

د پورتنی مطلب څخه داسی جوتیږی چې د دارالحیات په مدرسه کې ۱۵۰۰ کاله مخکی له میلاد څخه د ګیډی په خلاصولو (عملیات) اقدام کیده چې د تاریخ له نظره ډیر زیات قدامت لری.

په دارالحیات کې د تحصیل دوره اوږده وه دا ځکه چې محصلین باید برسیره د طب پر علم د سر او د ګیډی سوری کول او د سږو، ځیګر، بډوډو، مثانی او د ښځو ناروغیو او

ولادت باندې پوه وی او لازم وو چې د ټولو درملو تاثیر باندې هم پوه وی او باید پوه وی چې د بوټو څخه ځرنګه درمل لاس ته را تلای شی او څه وخت دغه بوټی باید ټول او په څه ترتیب باید وچ شی، محصل باید پوه وی چې دغسی بوټی چیرته موجود دی، په کوم فصل کې ټولیږی او باید چه خپله ګیاه او وچ شوی یی وپیژنی. سینوهه وایي: د مثال په توګه دیرش ډوله د بوټو ریښی به یی ګډی کړی او بیا به یی محصل ته ویل چې دغه ریښی سره بیلی کړی.

په دارالحیات کې د ګوتو په ذریعه د ناروغی تشخیص وو چې په دی ټوګه ویلای شو چې د ناروغ جس د ګوتو په واسطه صورت نیوه چې دغه میتود تر اوسه پوری هم په تشخیص کې د ارزښت وړ دی.

په دارالحیات کې دوه ډوله ناروغی یعنی جسمی او روحی ناروغی ترځیړنی لاندې نیول کیدی. جسمی ناروغی د پخی شوی (سره کړی غذا) غذا او زړښت څخه پیدا کیږی او روحی ناروغی ده یعنی روح د ناروغی مولد دی. په دارالحیات کې تر ټولو دمخه محصل باید د نظافت او پاکوالی په شرایطو پوه وی او دغه شرایط باید مراعات کړی. او د تعقیم شرایط د هغو په مغزو کې باید نغښتی وی ځکه ترڅو چې چاړه یاتیږه (د تیری تیږی په وسیله عملیاتونه اجرا کیدل) یی په اور کې نه وی ایښی هغو څخه هیڅکله کار وانخلی. پدې توګه ویلای شو چې په هغه زمانه یعنی ځلور زره کاله مخکې له نن څخه اطباوو د طبی سامان آلاتو پر تعقیم باندې عقیده درلوده. او هغه وسایل او مالزمی چې په اور کې نه ایښودل کیدلی په اوبو کې چې ښوره اچول شوی وه ایشول کیدلی.

ځینی ناروغان چې پر سریی ضربه وارده شوی وه او خبری یی نشوی کولای (یعنی د کوما په حالت کې وو) یا عقلی مشکلات یی لرل د سر کوپړی به یی سوری کوله وینه او نور شیان یی له ماغزو څخه ایستل، په هغه زمانه کې مصریانو صرعه، مرګی (Epilepsie) پیژندله او هغو ته به یی مالش ور کاوه او په خوله کې به یی لرګی یا زړوکی ایښوده ترڅو ژبه یی قطع نشی.

په مصر کې وروسته تر عملیاتو راپور د پاپیروس پر کاغذ باندې لیکل کیده.

په دارالحیات کې څوارلس تخصصی رشتی موجودی وی او د اجسادو مومیایی یې په طبابت پوری نه تاړه. سینوهه پخپل کتاب کې لیکلی چې مصنوعی غاښ د فیل د عاج څخه جوړاوه خو سینوهه د نورو مادو څخه استفاده کوله، او د غاښونو په پوښ کې له طلا څخه ګټه اخستله.

مصریانو په زرګونو کلونو مخکې ساری ناروغی پیژندلی لکه طاعون، وبا، کوی او داسی نور، د تانسلونو ایستل هم د سینوهه له خوا اجرا کیدل، او د لوړ فشار په وخت کې به یی رګ واهه او د ناروغ وینه به یی ایستله.

جلدی ناروغان به یی د سلفرو د اوبو په ذریعه تداوی کول. په درملنه کې د کوپړی سوری کولو په براخه توګه رواج درلود، چې مثبته نتیجه به یې ډیره لږه وه. دغه دود وروسته هم رواج درلود. ځرنګه چې اسکندر دری پیړی مخکې له میلاد څخه مصر ته لاړ هلته ناروغ شو. کله چې طبیبان د هغه پر سر حاضر شول وی ویل د هغه کوپړی باید

سوری شی ترڅو بخار دهغه څخه خارج شي. د اسکندر منشی سترابون د خپل سفرنامې کتاب کې لیکي: «ما پرې نښودل چې د هغه کوپړۍ سوری کړی ځکه پوهیدم چې د هغه د مړینې سبب کیږي. او د اسکندر درملنه وشوه، دا چې په مصر کې يې درملنه شوی ده د شکرانې په توګه د مصر لوی خدای امون يې خپل پلار وګاڼه. پدې توګه اسکندر د دوه پلرونو څښتن شو چې یویې (زنوس) د یونان د خدایانو څخه او بل (آمون) د مصر لوی خدای». [۱]

یوبل اثر چې د مصر زرکاله له میلاد څخه مخکې د ناروغانو د درملنې په هکله رڼا اچوی د «فرزند نیل» په نامه یادیږي چې مؤلف یې هوارد فاوست دی. دغه کتاب په حقیقت کې د موسی[ع] پیغمبر پر ژوندانه لیکل شوی دی.

هوارد فاوست لیکلی چې موسيٰ پیغمبر د هغو روشونو څخه چې په مصر کې رواج درلود د سترګو او جلدی ناروغیو درملنه کوله. د سترګو په درملنه کې یی په اوبو کې د زیتون څو پاڼې اچولې او هغه ته به يې جوش ورکاوه چې وروسته د سړېدو څخه ناروغ باید خپلې سترګې وربانديٰ ومنیځی او یا د خپلوانو په سترګو کې وڅڅوی.

موسی[ع] پوهیده چې د سترګو ناروغی د دښتې له غبار او مچانو څخه پیدا کیږي، او مچان د انسان او حیوان له غایطه موادو څخه مینځ ته راځی او دستور یې ورکړ چې د هر نر، ښځې او هلک په ملاکې وړوکې میتی (کلنګ) زوړند وی ترڅو وروسته د قضای حاجت څخه ځمکه وکنې او مدفوع خاوری لاندې کړی ترڅو مچان پیدا نشی.

په لرغونی مصر کې د مدفوعاتو لپاره ځاه موجوده نه وه، خو د فضلاتو لپاره لاره موجوده وه چې د نیل سیند ته رسیدله، څرنګه چې خلک د نیل د اوبو څخه ګټه اخستله اکثراً به ساری ناروغیو د اپیدیمیک په شکل ډیر خلک له منځه وړل.

د دې کتاب د لیکنې پر اساس موسيٰ پیغمبر د میدیان خلک چې د مصر د شاوخوا یوه برخه وه د اوبو، ایرې او پستې شګې پواسطه تداوی کول، او خلکو ته به یې ویل چې اوبه له ځاه څخه وباسی لمر مخې ته یې کیږدی ترڅو ګرمی شی او ایره او نرمه شګه په اوبو کې مخلوط کړی او ځان پرې ومینځې چې په دې توګه ناروغی تکلیف تخفیف پیدا کاوه.

هوارد فاوست پخپل کتاب کې لیکې جشر د صفورا پلار چې د موسيٰ پیغمبر ښځه وه یو کاهن وو او د مار د چیچلو په درملنه کې خاص میتود یې پکار ووړ چې نن دری زره کاله وروسته هم د استفادی وړګرځی. هغه روش داو چې که کوم غړی مار چیچلی وی پاسنی برخه یې کلک وتړلو ترڅو د مار زهر پورته لاړ نشی او بیا د مار چیچلو نقطه یی سوری کاوه ترڅو وینه جاری او وروسته یې چش کاوه ترڅو زهر خارج شی. چې دغه روش تراوسه پوری رواج لری. همدارنګه موسيٰ پیغمبر د نقرص په درملنه کې د سورنجان (کولشسین) ځوښ کړی عصاره توصیه کاوه. فرعون هم دغې عصاری څخه څو ځلې استفاده کړی او درد یې لړ شو.

---

۱- پوهندوی دوکتور محمد انور ترابی، طب در گسترده تاریخ، شاهمامه، هالند ۱۳۸۵ ص- ۶۴ .

مصر په لرغونی طبابت کې ډیر لوی مرکز و چې د مړی سپړلو، او توپسی او اناتومی کې استاد وو خو د درملو په پیژندلو کې نورو هېوادونو ته نه رسیدل. د بابل هغی زمانی خلکو د طبی بوټو په پیژندلو کې ډیر زیات مهارت درلود.

ځینی پوهان په دې عقیده دی چې لرغونی مصریان د وینی لمف جریان او اپاندکس یې پیژندل کله چې به اپاندسیت ناروغی تشخیص شو نو مخکې له عملیات څخه د جراحی ټول سامان به یې په اور کې ایښودل او کله چې به سوړ شول ورڅخه کار اخستل کېده.

مصری طبیبان پوهیدل چې کومه ګیاه د بدن د عضلو د خوساکیدو مخه نیسی، ځکه چې جسدونه یې مومیایی کول خو پدی نه پوهیدل چه کومه ګیاه د سردرد ښه کوی. له همدې کبله کوپړۍ یې سوری کاوه. د دی علت داو چې مصری طبیبان زیاتره جراحان و او د هرې ناروغی درملنه یې د جراحی څخه غوښتل، خو په بابل او ختیځ کې جراحی رواج نه درلود او طبیبان یې د درملو یعنی د بوټو د عصارو څخه کار اخیست، او په دې لاره کې دومره مخ په وړاندې لاړل چې د ډیرو بوټو طبی خاصیت باندې پوهیدل. اوس هم هغه درملونه چې نباتی منشأ لری د تائید وړ دی. نن ورځ هغه درملونه چې نباتی منشأ لری، شاید له لسوزرو څخه هم زیات وی.

هغه تثبیتیه جهاز چې په مومیایی شوو اشخاصو کې میندل شوی دی دا ښیئ دغه سپلینتونه Splints د بانکس، دروی، لرګی یادونی له پوستکو څخه جوړ شوی دی او د کتان پارچو پواسطه تړل شوی دی. شواهد دا ښیئ چې په هغه زمانه د تخرګ لاندې لرګی څخه استفاده شویده «وروستی معلومات چې زمونږ په لاس کې دی د تخرګ لاندې لرګی تقریباً ۲۸۳۰ کاله مخکې له میلاد څخه د هیرکوف مقبره کې کشف شوی دي».[۱]

### طبابت په لرغونی یونان کې:

د لرغونی یونان طبابت چې د لرغونی مصر له طبابت څخه اقتباس شوی دی، پخپل وار سره یې د لویدیزی اروپا هېوادونو د طبابت په وده او پراختیا کې هم خپلی اغیزی په ځای پرایښی دی. د معلوماتو له مخی د یونان پخوانی طبابت د میلاد څخه دولس پیړۍ دمخه زمانی سره تعلق لری، چې په دې زمانه کې طبابت یو آزاد شغل و چې په میراثی ډول د طبابت پوهی د یو نسل څخه بل نسل ته انتقال مونده.

د لرغونی یونان طبابت هم د تعبدی طبابت په شکل پراختیا ومونده. له دی ځایه په دې شکل سره د لرغونی یونان طبابت د دین او مذهب سره نږدی تړاو درلود. د یوه روایت له مخی فیسالی اسکولیپ (اسکولاپ) Esculape چې ۱۱۴۳ کاله مخکې له میلاد څخه یې ژوند کاوه، د یونان ډیر مشهور طبیب و. هغه ته د اپولون Apollon زوی چې د رڼایی او هنر خدای وو پیژاندل، نوموړی چې د یونان پاچا هم و د درملنې یو فوق العاده صنعت ته شهرت ورکړ چې په هغه کې یې خدای د اصلی معالجه کوونکې په حیث اعلان کړ.

---

۱- دوکتور سیاووش، تاریخچه اورتوپیدی در افغانستان و جهان، ۲۰۰۶ ص- ۲ .



اسکولاپ ۱۱۴۳ق.م کې ژوند کاوه

د اومی پیړۍ مخکې له میلادنه را وروسته تعبدی طبابت په کلیسایی شکل په یونان کې رامنځ ته شو چې د هغه په اساس د اسکولیپ آئین پیدا شوی دی.

په همدغه زمانه کې د یونان په ښارونو کې د اسکولیپ په ویاړ معبدونه ودان شول چې په هغوی کې اوراد خوانانو د معالجه کوونکی په توګه میدان ته راووتل. دغو اورا دیانو نه یوازې د اسکولیپ په ویاړ دوعاګانی لوستلی بلکې ناروغان یې هم له هر پلوه تداوی کول.

تعبدی طبابت د تلقین په اساس بنا شوی و. د مثال په توګه ناروغ د خپل لوازم سره د شپی تیرولو په خاطر په یو (کوټه) محل کې ځای په ځای کېده. هغه خوب چې په دې شپه ناروغ وینی له پاسه ورته داسی تلقین کیری چې دعاخوان ته یې د خدایانو د ارادی د توضیحولو او د تداوی د طریقو په مقصد تکان ورکاوه.

اسکولیپ په ډیرو قوی خبرو سره ناروغان معالجه کول، هغه د عصبی ناروغانو لپاره ورزش، تفریحی کارونه او موسیقی توصیه کوله، څرنګه چې هغه پر تناسخ عقیده درلوده، نو د غوښی خوړل یې منع کړل. د هغه شاګردانو پماد او مرهم یې په کاروړل او کله به یې زخم ته داغ ورکاوه، اماله او د کانګی درمل یی استعمالاوه، وینه یی اخستله، او شیدو او ماستو خوړل یی سالم فکر کاوه. مزمن امراض به یې پر ورزش او حمام تداوی کول، مات شوی هډوکی به یې پر ځای کول او د کیډی اوبه یې ایستلی. ویل کیږی چې اسکولیپ دوی لوڼی درلودلی چې د هغوی شغل طبابت و.

لومړنی لوریی چې هیجیایا هوګیایا یاهی ژیایا نومیدله وقایوی مشوری به یې ورکولی او د حفظ الصحی د پوهې او د روغتیا حامی او ملاتړ کوونکی وه. نو ځکه هغه یی د روغتیا ساتنی او تندرستی الهی په نوم یادوله چې د روغتیا ساتنی – حفظ الصحی (Hygiene) اصطلاح تراوسه د هغی د نامه سره پیوند لری.

هیجیا داسی تمثیلیږی چې پیاله (جام) یې په کیڼ لاس کې نیولی او مار له پیالی څخه ګرد چاپیر راتاو شوی اوله هغی پیالی څخه یې څښی، همدغه تمثیل له هماغه وروسته یعنی پیالی د مار سره د طبابت سمبول یا نشان وګرزید، او په بل مأخذ کې داسی راغلی دي:

«اسکولیپ هم ځان ته د خدایي مقام ورکړی و او د هغه لپاره معابد او د پرستش ځایونه جوړ کړی وو. د اسکولیپ مجسمه چې د روم په موزیم کې محفوظه ده، د هغه د امسا په شاوخوا کې مار تاو شوی دی. مار په پخوانی زمانه کې د عقل او ادراک نښان او د پرستش وړ و. او ویل کیده چې د مار د غوښې خوړل د عقل د زیاتوالی سبب ګرزی. له همدې کبله دی چې مار د طبابت د سمبول په توګه پیژندل شوی دی».[1]

د اسکولیپ دویمه لورپاناځې د درملو په واسطه د معالجې حامی او پشتیبانه وه، یعنی د معالجې او تداوی چارې یې د درملو په واسطه پرمخ بیولی.

په لرغونی یونان کې د تداوی او کلیسایی (تعبدي) معالجې د میتودونو ترڅنګه، ګډ (اجتماعي) روغتونونه هم موجود وو، چې په هغوی کې طبیبانو د ناروغانو سره لازمې مرستې ترسره کولې. د دې روغتونونو په یوه برخه کې د درملی موادو د ساتنې د پاره یو محل مشخص کېده چې د (Apotheke په نوم چې د Appo لاتینی کلمی (د – از)، theke (صندوق) څخه مشتق شوی وه، یادیده.

دا اصطلاح د نړۍ په زیاترو هېوادونو کې رواج شوه او د دوایی موادو د تیارولو، اعمال، او خرڅلاو د پاره د یوه مشخص محل مفهوم یې غوره کړ، چې اوس زمونږ هېواد کې ورته درملتون ویل کیږی.

په یوشمیر سترو روغتونونو کې د طبیبانو کورنی ښوونځی، او په اجتماعی، ملکی او معبدونو کې ښوونځی جوړ شوی وو چې په هغوی کې طبیبان او اوار د خوانان روزل کیدل. په یو شمیر ښارونو کې ټولنیز طبیبان موجود وو، چې فقیر او نیستمن خلک یې په وړیا ډول تداوی کول.

داکتر سریل الکود په خپل کتاب «تاریخ پزشکی ایران راجع به پیدایش و رشد طبابت در یونان» خپل نظریات په لاندې ډول ښودلی دی. «تر میلاده دمخه ۷۰۰ کلونو په شاوخوا کې موږ په یونان کې د غوره فرهنګ د یو نمونی په ډول برخورد نه کوو. خو ناڅاپه ۲۰۰ کاله وروسته یعنی ۵۰۰ کلونه تر میلاده دمخه ګورو چې د طبابت علم هسته هسی پرمختیا پیدا کړی ده چې سقراط وکولای شو چې مشهوری طبی رسالی ولیکی. او د طب د پلار په لقب معروف شی.

په ډیر زحمت سره باور کیدای شی چې یونانیان په دې بریالی شوی دی چې د دوو پیریو په اوږدو کې په یوازی ډول او پرته د نورو د مرستې یو داسی د یادونی وړ پرمختګ وکړی او د یو داسی سیستم ایجادونکی ګرزیدلی دی چې نن ورځ د سقراطی سیستم په نوم یادیږی.

د سقراط میتود یوه بیخی نوې طریقه ده چې په یونان کې یی په مخکینو کلونو کې بیلګې نه لیدل کیږی. د سقراط په دی لیکنو د انسان د بدن د زیاترو برخو نومونه په هندو اروپایی نومونو لیکل شوی او نور پاتی نومونه یی بې کم وکاسته په بابلی ژبه دی.[2]

---

۱- دوکتور محمد انور ترابی، طب در گسترده تاریخ، طبع شاهمامه هالیند، سال ۱۳۸۵ ص-۷۸ .
۲- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ۱۹۷۱ تهران ص-۴۲ .

دموکريت Democrite : مادی فيلسوف و چې په ۴۶۰- ۳۶۰ مخکی له ميلاد څخه يې ژوند کاوه نوموړی د اتم فرضيې بنسټ کيښود. او هم جسم د وړو زراتو د اتوم په نامه چې تقسيم کيدونکې نه دی او تل حرکت کوی، پوهېده. د موکريت د نبض، پړسوب، او هاری (ليونی سپی ناروغی) په هکله هم ليکنی کړی دی.

اپيکور Epicure فيثاغورث (Pythagore) چې ۶۰۰ کاله مخکې له ميلاده يې ژوند کاوه. او افلاطون (Platon) چې ۴۰۰ کاله مخکې له ميلاده يې ژوند کاوه. هغوی عقيده درلوده چې روغتيا او ناروغتيا هم خدايان تعيينوی.

دموکدس- دموسدس (Democedes): وايي د هغو عواملو څخه چې په ختيزو خاورو کې يی د يونان طبابت ته نفوذ ورکړ يويی هم د موسدس د کرتورا Crotora له اوسيدونکو څخه و، چې داريوش يې تداوی کړی وو (داريوش د ښکار په وخت کې له خپل آس څخه پر ځمکه وغورځيد او د پښی بجلک يې خلع شو. په دی وخت کې داريوش د يو مصری طبيب تداوی لاندې ونيو خو روغوالی يی حاصل نه کړ او پاچا اوه شپی او ورځی له ډير درد څخه ويده نه شو ترڅو چې په اتمه ورځ د موسدس چې د بنديانو په ډله کې و ورته راوست، نوموړی اول د مصری طبيب د تداوی نيمګړتياوی رفع کړی او بيايی پاچا تر درملنې لاندې ونيو او جوړشو. همدارنګه د کوروش لور (اتوسا) او ښځه يی چې پرسينی يی غدې وې او له هغوی څخه رنځيدلې، هم تداوی کړې.

ارسطو (Aristo) ستر يونانی فيلسوف او طبيب په کال ۳۳۱ تر ميلاد دمخه چې سکندر ايران او بيا افغانستان ته مخه وکړه د اکارنانينا (Acarananinaa) له اهالی څخه د ده د ناروغی دوست فليپ چې تل يی په طبابت کې د نايابو درملو څخه استفاده کوله ملګری و. د پلوتارک د ليکنو له مخی سکندر د ځوانی په وخت کې د درملو د تهيې طرز له ارسطو څخه زده کړی و. نو دا وه چې هغه ګياوی پيژندلی کومی چې د ځينو ناروغيو تداوې او حتی د مسموميتونو د پاره مفيدی وی.



داسی تصور کيږی چې سکندر خپل ژوند د ارسطو د زيرکی او ذکاوت مرهون ګڼی. ارسطو سکندر ته ليکونه ليکل چې په هغوی کې يې سکندر ته توصيه کړی وه چې د خپلی سلامتی ډير زيات خيال وساتی.

په دې ليکونو کې ارسطو د سمی موادو د ناآګاهانه څښلو څخه سکندر ته خبرداری ورکړی و.

ارسطو، سکندر ته نصحيت کړی و چې هيڅکله د يوه طبيب د درملو څخه استفاده ونه کړی، بلکې هميشه د طبيبانو څخه يوه شورا جوړه کړی او د دوی په ګډ دستور عمل وکړی. په دغو زمانو کې داسی عقيده موجوده وه چې

يوه نجلۍ په زهرو هغو مره تغذيه کيدای شی چې وروسته په يوه خطرناک سمی موجود بدله شی، چې د هغی ښکلول او يا ورسره ويده کيدل د مړينی سبب کيږی. ابن سينا د يوی نجلۍ څخه کيسه کوی: «چې هغه هغو مره له زهرو اشباع شوی وه چې که زهری حشراتو به هم چيچله پخپله حشرات به له مينځه تلل».[1]

جرجانی هم وايي «پادشاهانو هم عادت درلود چې د دښمنانو له لاسه د ژغورنی د پاره، يوه ښکلی وينځه چې کلونه به دسمی ګياوو په واسطه تغذيه شوی وه هغوی ته وربخښلی».[2]

د غزنوی (ابوالحسن غزنوی – کشف المحجوب) په ليکنو کې هم د يو شمير مطالبو سره مخامخ کيږو چې وايي: د هندوستان له عجايبو څخه يوه هم د «البيش» په نوم يوه ګياه يادولای شو، چې يوازی په هغه هېواد کې موندل کيږی چې زهرناکه او وژونکی ده. ماته وويل شو هغه وخت چې د هند پاچا د يو حاکم مرګ ضروری وبولی، نو يوه نوې زيږيدلې نجلۍ انتخابوی. او د دی تر زانګو لاندې د دی ګياه څخه يوه اندازه غورځوی. او بيا د هغې څو پاڼې ورته دوشک لاندې ږدی، او وروسته يې د جامو د لاندې ورته ږدی. بيا وروسته هغه ګياه ورته په شيدوکې ګډوی، ترڅو چې نوموړې نجلۍ په تدريج سره غټه شی او پرته له کوم ضرره د هغې ګياه څخه يو څه و خوړلای شی، نو بيا دغه وخت نجلۍ د يو زيات شمير سوغاتونو سره مورد نظر حاکم ته واستوی او هغه حاکم د دی نجلۍ سره د هم خوابه کيدلو سره سم مری.

وايی چې سکندر يو هندی راجا څخه څلور تحفی ترلاسه کړی:

يوه نجلۍ - يو فيلسوف - يو جادويی جام او يو طبيب.

څرنګه چې ارسطو، سکندر يې د ښکلی نجونو له نږدی والی څخه ډارولی و اوله هغې څخه حتی د يوی مچی، يا د بدن د خولو په واسطه وژل کيدای شو. نو نجلۍ يې قبوله نه کړه.

بايد وويل شی چې يونانی فرهنګ، علم او ژبه په آسيايی هېوادونو کې ترويج شوه، په تيره بيا تر ډيره وخته پوری آسيايی پوهانو خپل کتابونه په يونانی ژبه ليکلی دی.

کله چې مقدونی سکندر ختيځ او مصر ته د يونان تمدن ته هلته توسعه ورکړه د اسکندريی ښار د يو علمی او تجارتی مرکز په توګه منځ ته راغی چې د ۳۰۰- ۴۰۰ مخکی له ميلاده يې ډير ښه تمدن درلود.

پوهان لکه اقليدس (Euclide) رياضی پوه، ارشميدس (Archimed) فزيک پوه په دې ښار کې سررا پورته کړل. د اسکندر يې کتابتون اوه سوه زره ټوکه کتابونه لرل. د طب علم په خاصه توګه تشريح او جراحی په دې ښار کې ډير پرمختګ وکړ.

---

۱- قانون کتاب، څلورم کتاب، شپږم فصل.
۲- الحاوی، نهم کتاب ... ص-۲ .

هروفيل (Herophile) او ارازيسترات (Erasistrate) چې دوه سوه کاله مخکې له ميلاده يې ژوند کاوه د اسکندرۍ د مکتب معروف طبيبان وو، چې د اوتوپسي يا مړينې سپړنې له رويه د تشريح علم ډير ښه اساس او پايه کيښودله.

کله چې په اسکندريه کې ګناهکاران په اعدام محکوميدل وروسته له اعدام څخه به يې د طبيبانو په اختيار کې کيښودل او د هغوی پر جسد باندې به يې اوتوپسي کاوه او د تشريح او اناتومۍ علم ته يې رونق ورکړ.

ارازيسترا د حرکي او حسي اعصابو په منځ کې اختلاف کشف کړ مغزيې د فکر، حس او روح مرکز وګڼل، ځکه تر هغې زمانې دغه مرکزونه يې په زړه کې تصور کاوه.

**د هومر طب او درملنه:**

د ميلاد ترمخه معروف شاعر دی چې طبي اطلاعاتو او معلوماتو د ده په اشعارو کې ښه انعکاس موندلی دی. هغوی د جنګ زياتي تجربې او د زخمونو تړلو او درملنه کې زياتې تجربې لرلې. هغه خلک پوهيدل چې څرنګه خپلو اندامونو باند غوړو مبنی. ځنی کسان وو چې انحصاري کار يې طبابت وو او خلکو د هغو قدر کاوه. د طبابت عمده کار عبارت له جراحي څخه و، خو داخلي امراضو باندې لاس رسی درلودل. يو لږ ښځې د طبابت په برخه کې معلومات درلودل او د پرستارۍ، د طبي بوټو تهييه کول او همدارنګه خوب راوړونکې او مخدر مواد و تهيه کول د دوی په غاړه و.

د هومر منظومه پر اشعارو کې يوسل او پنځوس کلمې يواځې اناتومۍ پورې اړه لري او د هومري فزيولوژۍ يوه برخه اوس هم زمونږ په ژبه کې شته، دوی د حيات جوهر حجاب حاجز ګڼل.

د هومر په اشعارو کې نورو اعضاو لکه زړه او شاوخوا شيان د عقل مرکز ګڼل کېده. پخواني يونانيانو لکه چې اوس مونږ زړه استعمالوو هغوی هم د زړه (Phren) کلمه کاروله.

**د الکمــايون طب:**

نوموړی د حسي اعضاو خاصتاً پر سترګو تحقيقات کړی دی. او که د (خلکيديوس) خبرې باندې باور وکړو، الکمايون لومړنی سړی دی چې د سترګو عمليات يی کړی دی. هغه داسې ادعـا کوله چې د سر ماغزه د ټولو حواسو مرکز دی او خاصی لارې او مجراوې د مغز او حسي اعضاوو ترمنځ موجودی دی. که دغه لارې قطع شي (د مثال په توګه د زخم له امله رابطه د مغز او حسي اعضاو ترمنځ قطع شي) حواس له کاره لويږی. دغه د تفکر طرز د روان شناسی تجربی لومړنی زړی ايښودونکی دی. د الکمايون د طبي بهترينه نظريه دا ده چې تندرستي په بدن کې د دوو قواوو تعادل بولي، که يو د دغو قواوو غالب شي تعادل له منځه ځي او د مستبده حکومت حالت ايجادېږی او انسان ناروغ کيږی.

**هيپوکرات Hippocrates** (۴۶۰- ۳۳۷ق.م):

بقراط په ۳۳۷ مخکی له ميلاده د طبيبانو په زادګاه د کوس ښار کې زيږيدلی دی او د خپل پلار هيراکليدس (Heraclides) او هيروديکوس (Herodicus) څخه د طبابت حرفه زده کړی دی. نوموړی د طبابت په وده او تکامل کې ډير لوی رول لوبولی دی، چې د يونان د طبابت پلار نوم ورکول يی حق دی. نوموړی د لومړی ځل د پاره د طبابت په تاريخ کې زيار وايست ترڅو د طبابت او مشاهدی پوهې ته تعميم ورکړی. هغوی يې په يو واحد سيستم کې شامل کړل، او فلسفی استدلالات يی ورته ورکړل. همدا وو چې طبابت يی د مذهب او مذهبی عقايدو له تاثيراتو څخه آزاد کړ. د نوموړی فردی درملنه د تجربو له طريقه ډير زيات اهميت لری د شکسته بندی طرز او د مفاصلو د خلعو ردول يی تکميل کړ. هغه د صرعی يا ميرګی ناروغی يې مغز پوری ارتباط ورکاوه.



د هيپوکرات د تأليفاتو مجموعه ۶۰ ټوکو کتابونو ته رسيږی چې د ناروغيو او د هغو د معالجی په برخه کې دی. هيپوکرات د انسان صحت ته د محيط او چاپيريال سره ارتباط ورکاوه، د خوراکی موادو، هوا، اوبو او داسی نورو فکتورونو اغيزې يې د انسان پر اورګانيزم څيړلی، ده د يو طبيب اساسی فعاليت د ناروغ په مشاهدی او په هغه باندې د درملو اغيزی ګڼلی. په نړۍ کې د لومړې ځل د پاره هيپوکرات د ناروغيو د تداوی د ميتودونو د منځ ته راتللو د عواملو لوحه لاس ته راوړله. د هيپوکرات زده کړی د ناروغيو د ظهور د عواملو او د تداوی ميتودونو په ارتباط – پر فلسفی نړۍ ليد د انسان په عضويت کې د څلورو اساسی مايعاتو د تعادل په باره کې ولاړی دی چې دغه څلور اساسی مايع د وينی، مخاط، بلغم، ژيړی او توری صفرا څخه دی، خپل تاثير بخښی.

کله چې يو انسان روغ رمټ وی دا مايعات په يوه ټاکلی تعادل سره په عضويت کې قرار لری او بيا کله چې دغه تعادل ګډو ډکيږی ناروغتيا ظهور کوی. د هيپوکرات په عقيده د يوه طبيب اساسی وظيفه هغه ده چې د انسان په عضويت کې د دی مايعاتو تعادل برقرار کړی.

په اورګانيزم کې د مايعاتو متقابل تاثير په ارتباط هيپوکرات ټول انسانان په لاندنيو ټيپونو باندې ويشلی دي:

- سنګوينيکونه (د وينی زياتښت)

- هلوریکونه (د پانقراص د عصاری د زیات مقدار سره)
- فلیگمانتونه (د مخاط د زیات مقدار سره)
- میلانکولیتونه (د توری صفرا زیات مقدار په ارگانیزم کې)

د طبابت مشخصه هیپوکرات داسی تعیین کړه چې «طبابت د طبعیت د گټور تاثیر تقلیدی صنعت دي»[1] نوموړی داسی حساب کاوه چې نباتی درملونه ښایی داسی استعمال شی لکه طبعیت د هغوی په واک کې ورکړی دی.

د هیپوکرات دا نظریه څو پیړی تر اجرا لاندې وه، ده په خپلو لیکونو کې ویل چې د ناروغیو عوامل طبیعی دی او هر ناروغ خپل طبیعی عامل لری.

هیپوکرات د معالجی او تداوی د شیوو او طریقو پلټنه پخپله د انسان د قدرت څخه د استفادی په برخه کې د انسان عضویت ته د طبیب خاصه پاملرنه راگرزولی او وایي باید د اورگانیزم سره مرسته وشی ترڅو په ناروغی او رنځوری بریالیتوب ترلاسه شی.

نوموړی په همدې ډول دوایی موادو ته زیات ارزښت قایل وو، ده د درملو مغلق شکل نه پیژانده او لیکی: «درمل او د هغه ساده خاصیتونه ښایی په ذهن کې وساتی، د دې له منځه باید په هغو پوه شی چې د عمومی رنځونو پوری تړاو لری او په دې هم پوه شی چې دغه درملونه څومره او په کومه طریقه په مشخصو ناروغیو باندې اغیزناک دی، د دی گردو په باره کې باید لازم معلومات ولري».[2]

هیپوکرات او د هغه شاگردانو شخصاً په خپله درملونه برابرول، په عین وخت کې یو طبیب درمل جوړونکی هم و. په هغه وخت کې په پراخه توگه د جلابو، شیدو، شاتو، د خوړو د مالگی او داسی نورو څخه گټه اخستل کیده، همدا شان د خولی راوړونکو موادو په حیث د تودو نوشابو او په توده بستر کې د ناروغ د ویده کولو څخه پوره استفاده کیدله.

د کانگی راوړونکی په توگه له سرکی، تودو اوبو او داسی نورو څخه استفاده کیدله.

د مدرر په حیث له پیازو او د نرکوتیکو موادو په توگه د کوکنارو پاڼو او د تخمونو او داسی نورو موادو څخه گټه اخستل کیدله.

د دوایي موادو ښه او سمه ساتنه او محافظت او په دقیق ډول د هغوی تهیه کول د هیپوکرات په نزد خاص ارزښت درلود.

د هیپوکرات د دوایي موادو په مجموعه کې تر ۲۵۰ زیاتو نباتی موادو او له ۵۰ حیوانی موادو څخه یادونه شویده.

په همدې ډول له هیپوکرات او د هغه له شاگردانو څخه لوی لوی آثار راپاتی شوی دی چې د یونان د طبابت د علمی څیړنو بنسټ تشکیلوی او زیاته موده د نړۍ طبیبانو پخپلو فعالیتونو کې د هیپوکرات له پراتیک او ایدیه گانو څخه استفاده کوله. د دی عالم او حکیم څخه د طبیبانو مسلکی روزنې، ټولنیزی او انسانی تربیی په لاره کې گټور آثار باقی پاتی دی

---

۱- کریکوف، اورگانزیشن او فارمسی اقتصاد، ۱۹۷۶ لیننگراد، ص-۱۳ .
۲- اثر فوق، ص -۱۴ .

چې تراوسه پوری د هغوی ساری (نظیر) نه دی لیدل شوی. چې په لومړئ څپرکی کې ورته اشاره شوی ده.

«د هیپوکرات او ګالن د هغو کټورو او د یادونی خدمتونو له مخی چې د طبابت او درمل جوړولو په برخه کې کړیدی. هیپوکرات د طبابت پلار او ګالن (جالینوس) ته د فارمسی پلار ویل کیدای شي».[1]

د هیپوکرات نظریات د عظامو او مفاصلو کسورو په مورد کې، د قحف جروحات او د فقراتو د ابتدایی پتالوژی تقسیمات د نن ورځی د طبابت د حرکی اتکا سیستم اساس او بنسټ تشکیلوی. د عضد خلعی ارجاع دا وړی په مفصل کې د هیپوکرات په میتود حتیٰ نن ورځی هم د تطبیق وړ دی.

نوموړی د اورتوپیدی بوټانو څخه استفاده کاوه چې د سؤ اشکال د اصلاح کولو لپاره د هغه څخه یادونه شوی ده. حمام او لمر د هغی زمانی د فزیوتراپی میتودونه وو.

نوموړی د ترکشن یا مستقیم او معکوس کشش په هکله پوهېده.

د هیپوکرات په مجموعه کې د اورتوپیدی په ارتباط ډیر بخشونه موجود دی لکه د اوږی د مفصل خلع او د ارجـــاع مختلف میتودونه یی، د Acromioclavicular, Temporomandibular، زنګون، څنګل مفصلونو د خلعو ارجاع تشریح شوی دی.

د لرغونی یونان د طبابت په هکله که هر څومره زیات ولیکل شی بیا هم لږ دی. دا دی دلته دا موضوع داردو د مجلی په اقتباس داسی ادامه پیدا کولای شی چې د «مختصری به تحقیقات یک طبیب یونانی» تر عنوان لاندې راغلی دي:

یونانی طبیب «اساماتیدیس» په ۱۹۴ میلادی کې وپوهېده چې ځینی ناروغان چې د وینی د فشار په زیاتښت اخته دی او د مزاج د سټریا په نسبت پخپله ورځنی غذا کې د زیتون (ښوونې) د غوړو یوه اندازه ورزیاتوی چې دوینی فشاریی ورو ورو کمښت مومی. نوموړی طبیب له هغی راهیسی څیړنی ترسره کړی او د ښوونې پانی یی جوش کړی د هیپرتانسیون مصاب شوو ته یی د تجربی او مطالعی لاندې ونیولی. په لومړی سرکی یی د ښوونې ۶۵-۷۰ پانی په ۱۲۰۰-۱۳۰۰ ملی لیترو اوبو کې تر هغی وجوشولی چې اندازه یی نیمایی ته راټیټه شوه، تر سرېښت وروسته یې مخکی ترخوړو د ښوروا خوری یوه یوه کاشوغه نوموړی ناروغانو ته ورکړه.

تر ده وروسته د دوو نورو پوهانو نونو (NONO) او کاپرتی (Caparty) په نوموړی موضوع کار وکړ او په زړه پوری نتایج یې لاسه ته راوړل.[2]

---

۱- دوکتور محمود رفیع زاده، داروهای جالینوس، ۱۳۴۰ تهران، ص-۲ .
۲- ریاست نشرات اردو، مجله اردو – شماره دلو ۱۳۳۵ مطبعه اردو، ص-۸۹ .

**طبابت په لرغونی روم کې:**

د لرغونی یونان تر سقوط وروسته د نړیوال کلتور مرکز روم ته انتقال شو چې طبابت دلته د یونان په نسبت زیاته وده او پراختیا وموندله.

د پخوانی روم د طبیبانو په منځ کې یو زیات شمیر وتلی طبیبان موجود وو چې د هغوی له منځه اسکلیپیاد، سلز، سوران ایفسکی، دیوسکورید، لوکرس، ګالن او داسی نور نومونه یادولای شو.

**لوکرس Luerecc (۹۶-۵۵ق.م):**

ډیر مشهور شاعر وو چې پخپل اشعارو کې داسی ویلی دي: «ټول ځایونو کې ذرات موجود دی چې د ناروغی او مړینی سبب ګرځی. دغه ذرات د انسانانو خواته پرواز کوی، هوا مسموموی، په ډوډۍ، اوبو او د انسان په غذا کې داخلیږی. د صحرا ګیاوی آلوده کوی او سړوته لاره پیدا کوی او په دغه طریقه ده چې ساری ناروغی شیوع پیدا کوي».[1]

**اسکلیپیاد:**

د روم مشهور طبیب وو چې د لوکرس سره په یوه زمانه کې ژوند کاوه د اپیکور اتمی فرضیه او د لوکرس ویناوی قبول کړیدی چې د انسان بدن د اتم د متحرکو ذراتو ترکیب دی چې پخپل منځ کې سوری او خلاوی لری او کله چې دغه سوری وتړل شی، د اتم ذرات خپل حرکات له لاسه ورکوی او مرض تأثیر کوی.

له همدې کبله دی چې نوموړی حفظ الصحی (روغتیا ساتنی)، استحمام، ورزش او فزیکی معالجو ته ډیر اهمیت ورکاوه.

همدرانګه د لرغونی روم نامتو طبیب او ګیاه پیژندونکی د یو سکورید دی چې په لومړنی میلادی پیړۍ کې یی ژوند کاوه. نوموړی د خپل عصر او د طبابت د تـــاریخ د پخوانیو زمانو د درملی موادو په باره کې یی اساسی او مهم تالیفات کړیدی چې د Materiamedica په نوم یادیږی. په دی اثر کې د زیات شمیر نباتاتو او د هغوی خصوصیاتو په متعلق ډیر څه لیکلی دی، او دا تصنیف د اروپا په ډیرو ژبو ژباړل شوی او د ۱۵ پیړیو په اوږدو کې څو کرته نوی نوی چاپ شوی دی.

**کلاودی ګالین یا جالینوس (۱۳۱-۲۰۱م):**

د میلادی پیړۍ په اوایلو کې په غرب کې د طبابت د علمی څیړنو مرکز پخوانی روم و. په دی وخت کې د طبابت او فارمسی په تکامل چې ډیره ستره سرمایه رامنځ ته کړه هغه پخوانی روم وتلی او نامتو فیلسوف ګالن څخه عبارت دی.

---

۱- دوکتور محمد انور ترابی، طب در گسترده تاریخ، شاهمامه هالیند ۱۳۸۵ – ص-۸۲ .


ګالن يا جالينوس ( ۱۳۱- ۲۰۱ م)

جالينوس د نړۍ بيلوبيلو هېوادونو او ښارونو ته مسافرت وکړ او په عملی طبابت باندې بوخت و. د ده له ۴۰۰ عنوانونو اثارو چې يې ليکلی دی نيمايی يې د طب او فارمسی په باره کې دی چې د انسان د اناتومی او فزيولوژی په برخو کې يې زيات کار کړی دی.

نوموړی شپږ کاله د ګليادياتور په مکتب کې د پراتيکی زده کړی په شکل تير کړی دی، او د مړو د جسدونو د تسليخ، (د مړی پرانستل) او مطالعی توان يې درلود.

د ناروغيو او د هغو د تداوۍ په مسايلو کې ګالن د هيپوکرات په نسبت لاوړاندی ګامونه اخستلی او هغه يې بشپړ کړی او پراختيايي ورکړۍ ده.

ګالن وايي «ناروغی هغه وضعه ده چې په هغې کې د عضويت د مايعاتو اساسی عنصرونو درست او صحيح مخلوط مختل کيږی. د ناروغيو د تداوی د پاره بايد غذايی درست رژيم او د دوايی مواد چې متقابلی اغيزی لری (وچوالی لمده بل وژنی او تودو ښه سړښت) تطبيق شي».

په همدې ډول ګالن عقيده درلودله چې معالجه د اناتومی او فزيولوژی د پوهې په اساس ده او بايد چې په دی ساحه کې زيات کار ترسره شی. نوموړی په دی برخه کې پر حيواناتو باندې زياتې تجربې وکړۍ او زياريې وويست چې د اورګانيزم ساختمان او د هغه په متقابل تاثير باندې پوه شی داځکه چې په دغه زمانه کې د انسان پر کالبوت دغسی کار (اتوپسی) منع وو.

د ګالن له خوا وينی ته زيات ارزښت ورکول کيده، د ده په عقيده وينه د څلورو واړو عنصرونو چې د نړۍ تشکيلوونکی دی (هوا، اوبه، اور او خاروه) انتقالوونکی ګڼل کيږی. خو نور مايعات لکه مخاط، زيړه او توره صفرا د يوه عنصر په توګه شميرل کيږی.

په لويديز کې د لومړۍ ځل د پاره د ګالن په واسطه ضربان د تشخيص پر ابينودلو په مقصد عملی کړ او د لومړۍ ځل د پاره يې د عصبی سيستم فزيولوژی د زياتو تجربو له لاری تر کتنی لاندې ونيو او پر ناروغ يې مشاهده رامنځ ته کړه.

ګالن حساب کاوه چې د ناروغانو په تداوۍ کې د طبيب اساسی دنده هغه ده چې د اورګانيزم دفاعی قدرت خوندی وساتی، چې هغوی په خپله کوښښ کوی ترڅو په اورګانيزم کې د ګرمی، سردۍ، لوند والی او وچوالی بنسټيزو خصوصيتونه تعادل ټينګ کړی او درملی مواد د دی خصوصيتونو انتقالونکی دی.

کله چې په عضويت کې وچوالی زياتيږی په کار دی چې درمل تجويز شی چې د هغه انتقالونکی ضد يعنی لوند والی دی.

د هيپوکرات د نظريی په تفاوت سره ګالن عقيده درلودله چې په نباتی درملی موادو کې دوه منشأ يا پيل موجود دی «لومړنی تاثير کوونکی» معالجوی اغيزه اچوی او هغه بل «منشأ- پيل» بې ګټی او يا د عضويت د پاره زيانمن وی.

ګالن په دې اساس درمل د دم ورکولو په طریقه لاس ته راوړل او د استفادې وړ یې ګرزول، یعنی د منشأ یا پیل د پاره یی د طبیعی موادو څخه استفاده کوله. نوموړی د دی میتود په مرسته غوښتل درمل له بلاست (سرباری) څخه آزاد کړی، ښه او پاک درمل ناروغ ته ورکړی.

د ګالن په عقیده په نباتاتو او حیواناتو کې ګټور مواد شته دی چې ښایی له هغوی څخه ګټه واخستل شی او همدارنګه په هغوی کې زیان رسوونکی مواد شته دی چې باید لیری وغورځول شی. په دی ارتباط نوموړی د درملی موادو د لاس ته راوړلو په خاطر په پراتیک کې له طبیعی موادو څخه یوه پیچلی تکنالوژی پرمخ بیایی.

ګالن هم د لومړنیو موادو او د درملو د تهیه کولو د ساتنی او ذخیری د پاره په روغتون کې یو مخصوص ځای تجهیز (تیار) کړ چې د درملتون په نوم یادیږی.

د جالینوس نسخې معمولاً د ترکیب له مخی پیچلې وې چې تر لسو برخو زیات یې رانیول، نوموړی د درملو څوشکلو ته لکه پودرونه، پیلولونه، مرهمونه، عصارې، جوشاندې، محلولات، مایعات، مکسچرونه، نباتی نوشابی، ایتری او شحمی روغنیات، کسمتیک (آرایشی) مرهمونه او داسی نور چې له شلو فورمونو او شکلونو څخه زیات به یې رانیول او تهیه کول.

په همدې ډول پلسترونه او نور درملونه چې په خپل ترکیب کې نباتی، حیوانی او مینرالی مواد یې درلود اعمال او تهیه کول.

ګالن د درمل په جوړولو کې د وزنی او حجمی میتود او د هغه سره متناسب له عصارو، جوشاندو، او داسی نورو څخه استفاده کوله. د دې ډول درملونو اعمال اوله نباتاتو څخه د ګټورو موادو را ایستل د اروپا د ټولو طبیبانو په منځ کې عمومیت پیدا کړ، چې په ۱۶ مه پیړۍ کې د ګالن د نظریاتو مخالفان هغه د «کلینکی مرکباتو» په نوم یادول چې د انوم تراوسه پوری د درمل جوړولو په اصطلاحاتو کې د خپل پخوانی برم څخه برخوردار دی.

ګالن مخکی له دې چې روم ته سفر وکړی د ګلادیاتور پهلوانانو جراح وو.

ګالن د سپورت د طبابت پلار پیژندل کیږی. نوموړی یوه مجموعه د اسکلیت او عضلو په مورد کې چې هغو ته حرکت ورکوی، لری. په خاصه توګه د دماغ څخه ارسال شوی سیالی او دهغو حرکت محیط ته معلومات ورکړی دی. نوموړی لومړنی یوه وو چې د رقبی اضلاعو Cervical Ribs په برخه کې توضیحات ورکړ. هغه په اوستیو میالیت کې د عظامو د تخریب او تجزیی په برخه کې دستورونه توصیه کړی دی. او همدارنګه په ځینو حالاتو کې د هغو Resection یې پیشنهاد کړی دی.

ګالن لومړنی سړی وو چې د Kyphosis, Lordosis & Scoliosis لغات چې د هیپوکرات په مجموعه کې توضیح شوی وو د استفادی وړ وګرځاوه او هغه یی شرح کړل. همدارنګه هغه د سؤ شکل اصلاح مختلف میتودونه پیشنهاد کړی وو.

په دې عصر کې تلاش کیده چې مصنوعی اعضاوی د استفادی وړ وګرځی. څرنګه چې شواهد لاس ته راغلی د لرګیو پښی، فلزی لاسونه په هغه عصر کې د تائید وړ دی.

ويل کيږی چې انتيلوس په دريمه پيړۍ کې د مفاصلو د اطراف تضييقات ازادول د Tenotomy څخه استفاده کوله، هغه دوه ډوله د کتګوت او کتانی تارونو څخه په دی پروسه کې پکار وړل. د برمو، اری، اسکنی مختلف ډولونه د دی زمانی د ابداع څخه دی چې د هغی زمانی په طبابت کې د استفادی وړ ګرزيدلی دی. د روم د امپراطوری په زمانه کې طبيبانو معاينه خانی لرلی چې ناروغان يې هلته منل درملنه او جراحی به يې کوله.

برسيره پر هغه د لرغونو پيړيو له طبيبانو څخه کولای شو د ايم هوتپ (Imhotep) نه چې دری زره کاله مخکی له ميلاده په مصر کې ژوند کاوه نوم واخلو چې په يو پاپيروس کې د هغه جراحی فعاليتونه ياد شوی دی.

هوانګ تی په لرغونی چين کې په ۲۶۰۰ مخکې له ميلاده ژوند کړی او يو کتاب يی د طب په باره کې ليکلی دی چې د ده نوم ته ارتباط ورکړ شوی دی.

د فرعون د دربار يو بل کوپړی سوری کوونکی پاتور دی چې سينوهه له هغه څخه يادونه کړی ده.

دغابښونو يو طبيب د اترومکی په نوم ياد شويدی چې پنځه پيړۍ مخکې له ميلاد څخه ژوند کړی او طلايی پروتزيی اجرا کړی دی. د نوموړی قبر د روم د ښار په ۳۳ کيلو متری کې پروت دی.

**شاناق (Chanaky):**

د هندی نوميالی طبيب او د چندرا ګوپتا طبيب وو. چې د دريمی پيړۍ په وروستيو او د ميلاد څخه ترمخه د څلورمی پيړۍ په لومړيو کې ژوند کړی دی. د هغه يو کتاب چې د سمومو په برخه کې دی چې د هارون الرشيد په زمانه کې د هندی څخه په فارسی ژبه د يحی بن خالد برمکی لپاره ترجمه شوی دی.

هيروفيل د اسکندريی ډير نامتو په تشريح کې وو چې د ارازيسترا سره په يو وخت کې ژوند کاوه.

د روم د امپراطوری په زمانه کې په اروپا کې د طبابت او درملنې مختلفی شيوۍ موجودۍ وۍ. د مثال په توګه د فنيقيانو، کارتاژيانو، اتروسکها، سلتها او نورو قومونو کې معالجوی شيوۍ موجودۍ وۍ.

همدارنګه د اروپايی يهوديانو طبابت هم د مجربو او نوميالیو طبيبانو له خوا پرمخ بيول کېده چې تر ډيری زمانی دوام درلود.

## دریم څپرکی

## په منځنیو پیړیو کې د طبابت پرمختګ

په اروپا کې د مریي توب او فیوډالیزم ترمنځه تاریخی پولی د لویدیز روم د سقوط (۴۷۶م) سره منلی شوی دی.

په بیلا بیلو هېوادونو کې د فیوډالیسم جوړښت په مختلفو زمـــانو کې منځ ته راغلی دی، لکه چې په چین کې (په ۲ق.م) په لویدیزه اروپا کې (۵ او ۶ پیړی) په روسیه کې (۹ میلادی پیړۍ) کې دې عصر په زینو پښه ایښودلی ده.

دی پیړۍ له ۱۲-۱۳ پیړیو پوری دوام کړی دی.

کیمیا په منځنی پیړۍ کې وزیږیدله، کیمیا پوهانو عقیده درلودله چې د طبعیت اسرار د پیژندلو وړ دی او هغه رهبری او اداره کیدلای شی، دا پلټنی او تفحصات حقیقی وو خو په ګمراه کوونکو اشتباهاتو او پدیدو باندې پیل شول پرته له دی چې د حوادثو (پدیدو) او جریاناتو ماهیت وپیژندل شی. الشمیکانو زیاتی تجربی تر سره کولی «څه رنګه چې عالمانو د هر شی تجربه په تجربی سرته رسوله نو په حقیقت کې کیمیاګری د زمانی ستره زیږنده ده، کیمیاګران یا د اروپائیانو په قول» الشمیستانو (Alchemists) فلزات مرکب اجسام فکر کاوه او عقیده یې درلودله چې دوی کولای شی هغه یو پر بل تبدیل کړي».[1]

د الشمیکانو اساسی مقصد دا و چې غیر قیمتی فلزات په طلا تبدیل کړی، هغوی په ټول توان هڅه کوله چې یو عمومی ګودر پیدا کړی ترڅو وکړای شی یو شی په بل شی تبدیل کړی، د ګودر دا ډول اسرار «د فلسفی تیږو» نوم ځان ته غوره کړه.

---

۱- داکتر محمود رفیع زاده، دواهای جالینوس سال طبع ۱۳۴۰ ص- ۲ .

هغوی فکر کاوه ممکنه ده داسی شيان ترلاسه شی چې ناروغان په صحت مندانو او بوډايان په ځوانانو بدل کړی. دفعاليتونو په جريان کې چې د تجربو له لياری پرمخ تلل د کيميا د علم لومړنی عناصر يی کشف کړل. هغوی ډير ګټور شيان ومومندل چې څو پيړی وروسته د انسان په خدمت کې په کار واچول شول.

د نهمی پيړۍ تر پنځلسمی پيړۍ پوری اروپايی الشميک يوشمير څيړونکې رامنځ ته کړل چې د منځنيو پيړيو په تاريخ کې يی ډير مهم مقام نيولی دی لکه دايمون لوليا (۱۲۳۵-۱۳۱۵م)، ارنـالدو دی ويلانوف (۱۲۵۰-۱۳۱۳م) د سمومو په هکله د يو کتاب مؤلف، البريک وليک (۱۱۹۳- ۱۲۸۰م) د فلزاتو او منرالونو په باره کې د رسالی ليکوال، فرابوناوينتور (۱۲۱۴-۱۲۷۴م) د دې واقعيت تثبيتوونکی دی چې نقره په اسيد نتريک کې، طلا په سلطانی تيزابو کې د انحلال قابليت لری.

د درملو د توليد د تکنالوژی پيچلتيا، د درملو د قلمونو زياتښت او د طبابت وروستی انکشاف د درملتونو د منځ ته راتلو شرايط مساعد کړل. چې په ۷۵۴م کې لومړنی درملتون په بغداد کې تأسيس شو او په اروپا کې لومړنی درملتون په ۱۱ او ۱۲ پيړيو کې د سولرنو او توليد و په ښارونو کې پرانستل شول. په ۱۳ او ۱۴ پيړيو کې شخصی درملتونونه د فرانسی، انګلستان او هاليند په ښارونو کې پرانستل شول.

په منځنيو پيړيو کې د لويديز د طبابت د انديشو مرکز هغه مکتب وو چې په سالرنو کې واقع وو په ۱۱۴۰م کې لومړی کودکس چې نوم يی (انتی دوتاري) ؤ جوړ کړ.

همداشان په دې پيړۍ کې دولتی تکس هم راووت.

په منځنيو پيړيو کې د طبابت چارو د تنظيم په غرض يو شمير قوانين او فرمانونه رامنځ ته شول او په عين وخت کې داسی طبيبان هم موجود وو چې د طبيبانو او دواسازانو اعمال او کرداريی توصيفاوه او د هغوی د دندو په باره کې لکه د هيپوکرات غوندی مقررات وضع کول.

د دې پيړيو د طبيبانو له جملی څخه تيوفراست پاراتيزس يا پاراسلز (۱۴۹۳-۱۵۴۱م) ښی لارښوونی کړی چې په لومړۍ څپرکی کې توضيح شويدی.

پاراسلز د ياتروشيمی بنسټ اينودونکی د شپاړسمی پيړۍ د متبحر عالم څخه عبارت دی.

د ده په عقیده د انسان اورګانیزم د کیمیاوی موادو د مجموعی، د انسان ناروغتیا په اورګانیزم کې د کیمیاوی تعادل ګډو ډیدلو، او تداوی په اورګانیزم کې د کیمیاوی موادو د تطبیق څخه عبارت دی، چې دا کیمیاوی مواد د انسان په وجود کې د کیمیاوی تعادل شرایط منځ ته راوړی.

نوموړی به ویل «ناروغ انسان ته د اورګانیزم د پاره ټول ضروری مواد باید دلته د هغه په چاپیریال کې قرار ولري»[۱].

پاراسلز په تداوی کې د منرالی شیانو، د هغو کیمیاوی مختلفو مشتقاتو چې د هغو په مینځ کې د سموم او شدیده سموم زیاته اندازه شامله وه پراخه استفاده کوله. ده به ویل «ټول مواد سمی دی هیڅ شی نشته دی چې سم نه وی، ټول کار او فعالیت د دوز پوری تعلق لری او صحیح دوز سمی مواد غیر سمی باندې تبدیلوي»[۲].

د پاراسلز اشتباه په دې کې وه چې نوی درملونه یې په حیواناتو باندې نه تجربه کول او له همدې بابته وو چې په ۱۵۶۶م کې د هغه درملونو زیات مسمومیتونه مینځ ته راوړل چې د پاریس د پارلمان له خوا د هغو استعمال منع کړی شو.

پدې توګه ویلای شو چې په منځنیو پیړیو کې یعنی د میلادی پیړۍ په پیل کیدو سره طب او طبابت په هکله د کوچنی آسیا او اروپا خلکو کې بل تفکر پیدا شو، په خاصه توګه د عیسی (ع) د معجزاتو څخه وروسته او د هغه د پیروانو عملکرد په وروستیو پیړیو او منځنیو پیړیو کې طبابت د کلیسا تر تاثیر لاندې خپل ژوند ته ادامه ورکړه.

د جذامی شخص روغیدل د عیسی (ع) په لاس چې په لوقا انجیل کې ذکر شویدی او ویل کیږی چې لوقا طبیب و او برسیره پر هغه تاریخ لیکونکی هم و. د عیسی مسیح کارونه ورځ په ورځ د خلکو ژبو ته لویده او ډلی ډلی خلک به دهغه پیغام اوریدلو لپاره راتلل ترڅو د هغه پیغام واوری او د ناروغیو څخه شفا پیدا کړی. پدی توګه ډیر خلک د دوی د تبلیغاتو تر تاثیر لاندې راغلل او په مرور زمان سره د کاتولیک کلیسا او د هغه قدرت ورځ په ورځ زیاتوالی په اثر د ژوند ټولی برخی طب او طبابت هم د هغه تر تاثیر لاندې راغلل.

---

۱- ملی نی چینکو او سیمینووا، تاراسووا، اورګانزیشن امور فارمسی، ۱۹۷۲ مسکو، ص- ۷-۳۲ .

۲- کریکوف، اورګانزیش اقتصاد فارمسی، ۱۹۷۶ مسکو، ص- ۱۵ .

په منځنیو پیړیو کې په خاصه توګه په څوارلسمه او پنځلسمه پیړیو کې ساری ناروغی لکه طاعون، وچکی، کوې، جذام او سفلیس په اروپا کې شیوع وموندله چې د ملیونونو انسانانو ژوند یی واخیست.

په ۱۳۴۶ او ۱۳۵۲ میلادی کلونو کې طاعون په اروپا کې شیوع پیدا کړه چې یو پر څلورم د اروپا جمعیت له منځه لاړ. په ۱۴۹۴ او ۱۴۹۵ میلادی کې د ناپل د ښار په محاصره کې چې د فرانسوی نظامیانو له خوا صورت نیولی و د سفلیس ناروغی د اپیدیمیک په ډول یې ظهور وکړ په همدی سبب و چې فرانسویانو د ناپل ښار یې په دې ناروغی ونوماوه.

د ساری ناروغیو او طاعون د مخنیوی لپاره د لومړی ځل له پاره په څوارلسمه پیړۍ کې د «ونیز» او «ژن» دوو ښارونو کې قرانتین برقرار شو. د کښتیو مسافرین به معاینه کیدل او څوک چې به په ناروغی مشکوک وو د څلویښتو ورځو لپاره په قرانتین کې ساتل کیدل.

د قرانتین کلمه د ایتالیایی کلمی «کرانتا» څخه مشتق شوی چې ۴۰ مانا ورکوی، ځکه په منځنیو پیړیو کې کله چې په کښتیو کې یی د طاعون په ناروغی مصاب وو د څلویښت ورځو لپاره قرانتین لاندې نیول کیدل او مسافرین یی د ښار تللو څخه منع کول. وروسته دغه تشکیلات په لندن، پاریس اوتورنبورګ کې هم تاسیس شول.

برسیره پردې نور تدابیر هم ونیول شول د مثال په توګه په هغه ځایونو کې چې د طاعون، جذام، سفلیس او نوری ناروغۍ منځ ته راتلی د هغه محل څخه به یې دیوال تاواوه. د مړو کوټه او د هغه ټول اثاثی ته یې اور آچاوه، فلزی شیان لکه سکی او نور به یې په سرکه کې ایښودل، او اخته شوی کسان به یې «لازارت» یعنی د تجرید ځای او روغتون ته انتقالول.

د دیو هوټل (Hotel Dieu) یا د خدای میلمستون لومړنی روغتون و چې په شپږمه پیړۍ کې په پاریس کې تاسیس شو، او وروسته نورو ښارونو کې د لازارت په نامه ایجاد شول.

د جذام، سفلیس او نورو ناروغانو دنده لرله ترڅو په تګ په او راتګ کې په خپل غاړه کې زنګ زوړند کړی، ترڅو خلک ورڅخه څنډې ته شی او تماس ورسره پیدا نشی. څوک چې ښارته ننوتل هغوی به یې په دروازو کې معاینه کول او ناروغان به یې د ښار ننوتلو څخه منع کول. طبیبانو به په طاعون اخته ناروغانو معاینی په وخت کې پرمخ او سر باندې ماسک اښودل او مخصوصی جامی به یې اغوستلې.

د نوی جراحی بنسټ ایښودونکی امبروازپاره (Ambroisepare) دی چې په ۱۵۱۰-۱۵۹۰ کلونو کې ژوند کاوه، فرانسوی جراح و چې د لاسونو او پښو په قطع کولو کې تکمیلی اصلاحات منځ ته راوړل. د پری شوی شریان د سو ځولو پر ځای تړل او غوټې اچول یی رواج کړل، نوموړی پوهیده چې اور لرونکی ګولۍ عفونت نه لری نو پر زخمونو باندې د جوش کړی غوړی چې په هغه وخت کې مروج وو پر ټپ باندې اچول یې منع کړل شو. او ټپ به یی د چرګی د هګی ژیړی برخی، د سره ګل غوړی او تربانتین سره پوښل او زړو کې یا کتانی پارچې باندې تړل.

د طب لومړنۍ مدرسه د پوهنځی په توګه په نهمه میلادی پیړۍ کې په بیزانس کې تاسیس شوه، وروسته په یوولسمه پیړۍ کې په سالرنو (سالرن) او دیارلسمه پیړۍ کې د طب پوهنځی او پوهنتونونه په بولونی، مونت پلیه، پاریس، پادوا او اکسفورد کې پرانستل شول.

د طبابت زده کړه ایجاباوه ترڅو د طبیبانو تعداد زیات شی، چې دغه کار د سالرنو او پادوا پوهنځیو ترسره کړل چې دلته یوازی د سالرنو پوهنځی په هکله لنډ معلومات وړاندی کیږی. څرنګه چې په آسیا کې پوهنتون ډیره سابقه لری او ګندیشاپور یا چندی شاپور پوهنتون د میلادی په دریمه پیړۍ کې فعالیت درلود، او په اروپا کې شپږ سوه کاله وروسته لومړنۍ د طب پوهنځی په سالرنو (Salerno) کې چې ایتالیا کې موجود دی تاسیس شو.

د سالرنو طبی مدرسه د تحصیل، تدریس او تحقیق یواځنی پایګاه وه چې په هغه کې یونانی، لاتینی، مسلمانان او یهودیانو په تحصیل او تدریس باندې مشغول وو.

پروګرامونه یی ډیر پرمختللی او بریالی وو چې وروسته د اروپا نورو پوهنځیو د ده پروګرامونه یی تر اجرا لاندې ونیول، برسیره پر نرانو ښځو هم په دې مدرسه کې د طبابت علوم او د قابلګی فن یې زده کاوه او همدارنګه ښځو د پرستارۍ علوم هم په دې مدرسه کې زده کول.

د دې پوهنځی ډیر مشهور اثر د قابلګۍ په هکله چې د دولسمی پیړۍ په لومړیو کې لیکل شوی وه چې عنوان یې «د تروتولا رایی د ښځو د ناروغیو په درملنه کې» وو. څیړونکی په دې عقیده دی چې «تروتولا» یوه ښځه وه چې د قابلګۍ په فن کې مهارت درلودله او هغی د سالرنو په مدرسه کې تحصیل کړی، ځکه دغه رساله د ده په نوم منتشره شویده.

که د تاریخ له نظره د روغتونونو موجودیت او خصوصیت باندې نظر واچوو ګورو چې ډیره زیاته سابقه نلری. او کیدای شی د ناروغیو د درملنې، د ناروغانو ساتنه، جنبی خدمتونو لکه د طبابت زده کړه او د علمی، څیړنو له نظره تیر کړو.

ویل کیږی چې د شلمی پیړۍ په لومړیو پوری روغتون په ټوله نړۍ کې په لومړۍ قدم کې یوه خیریه ټولنه وه او همدارنګه د بیوزلو، زړو خلکو، دربه دره خلکو، معلولینو او ورته انسانانو د ساتلو مرکز هم و.

خو د اوسنی زمانی د روغتون سره ډیر زیات تفاوت لری. په لومړیو کې روغتون په فرانسه کې د خدای میلمستون (Hotel Dieu) ګڼل کیده او دغه کلمه چې نن د انګلیسی په ژبه کې (Hospital) او په فرانسوی کې (Hopital) ورته ویل کیږی د میلمه پالنی څخه نیول شوی دی.

په منځنیو پیړیو کې روغتون یا د روانی ناروغانو مراقبت لپاره یو محل د مسلمانانو له خوا تاسیس شو چې د روانی ناروغانو مراقبت او درملنی ته اختصاص درلود.

په اروپا کې لومړنی روغتون د اسپانیا په یو ښار کې په کال ۱۴۰۹م کې تاسیس شو. په ختیځ کې مخکې له اسلام څخه ډیر پخوانی روغتون جندیشاپور پوهنتون ګڼی چې د ساسانی لومړۍ شاپور (۲۳۸ میلادی) زمانی پوری تړی چې دغه روغتون وروسته د اسلامی طب مرکز وګرزید. او د هجری د دریمی پیړۍ تر وروستیو خپل فعالیت ته دوام ورکړ.

ویل کیږی چې خسرو د ساسانیانو لومړۍ پاچا د یونان څخه استادان د جندی شاپور مدرسۍ او روغتون ته غوښتی وو. وروسته تر دی چې په بغداد کې روغتون تاسیس شو خپل اهمیت یې له لاسه ورکړ.

## طبابت په منځنۍ اسیا کې

کله چې د روم امپراطورۍ په کال ۳۹۵م کې په ختیځ او لویدیز وویشله شوه، د شرقی روم امپراطوری چې د بیزانس په نامه یادیږی تر ۱۴۵۳م پوری دوام درلود چې د یو زر کالو په موده کې ډیری لاس ته راوړنی لرلی چې د هغی زمانی طبابت هم ښه رونق پیدا کړی و چې د بیزانس ډیر غښتلی طبیب «الکساندر دوترال» و چې په شپږمه میلادی کې د دولسو ټوکو کتابونو خاوند وو.

همدارنګه په منځنی آسیا او نورو ځایونو کې علمی مرکزونه منځ ته راغلی چې د بخارا او خوارزم علمی مرکزونه یادولای شو. په دې وخت کې طبابت د طبیبانو او اوراد خوانانو په غاړه و. په همدې شان عطارانو هم درملونه خرڅول. باید زیاته شی چې د لسمی پیړۍ طبی خطی نسخی په ارمنستان کې موجودی دی چې د هغو په برخه کې لاندې معلومات ورکړل شویدی.

په هغه آرشیف کې چې د ماتی نادران په نوم د ارمنستان په مرکز ایروان کې موقعیت لری تر ۲۵۰۰ زیاتی د طبی آثارو خطی نسخی موجودی دی چې د هغو زیاتره برخه د لسمی میلادی پیړۍ پوری تړاو لری او د اناتومی، فزیولوژی او پتالوژی په باره کې لیکلی شوی دي[1].

په منځنیو پیړیو کې خاص مقام عربی طبابت احتوا کاوه «د اسلامی خلفاوو د تسلط د زمانی څخه د تجربی دوران پیل کیږی، د منصور په زمانه کې یو علمی تحقیقی مرکز یا اکادمی په بغداد کې تاسیس شوه، او په هغه زمانه کې د منځنی آسیا څخه پوهان (افغانستان، ایران او ماورالنهر) څخه را څرګند شول چې د دوی له منځه د ذکریای رازی او ابن سینا نوم اخستلای شو»[2].

په همدې شان په ۷۵۴م کې لومړنۍ عربی درملتون چې د نړۍ لومړنی درملتون بلل کیږی په بغداد کې پرانستل کیږی. عربو د لومړۍ ځل لپاره درمل په حیواناتو تجربه کړی دی.

د کیمیا او فارمسی په وده او تکامل کې د عربو نامتو پوهانو لکه جابر ابن خیام (۷۲۱-۸۱۵) او ابو منصور معافون لوی تاثیر درلود، چې

---

۱- مجله سباوون شماره اول حمل ۱۳۶۱ کابل.
۲- دکتر محمود رفیع زاده، دارو های جالینوسی، سال ۱۳۴۰ ص-۱ .

هغوی د مایعاتو د تقطیر طریقی لیکلی دی او یوه اندازه تیزابونه یی لاس ته راوړی دی.

د سلفر، کاربن، ارسنک، پلمب، سرب، زنک او نورو فلزاتو خواص لیکلی دی. په همدې شان ارجن نیترات، کامفر، الکول او یو شمیر نورشیان یی هم لاس ته راوړی دی.

د ساسانیانو په دوره کې د هغوی سلاطینو په خاصه توګه خسرو او انوشیروان ایرانی طب ته یې ښه رونق ورکړ او څرنګه چې برزویه د هغی زمانی ډیر مشهور طبیب و د جندی شاپور ښوونځی یې د انوشیروان په زمانه کې تأسیس کړ. دغه ښوونځی د ایرانی او یونانی طبیبانو او پوهانو د تجمع محل وګرزید.

په خاصه توګه کله چې د شپږمی میلادی پیړئ د نیمیایی په لومړیو کې د بیزانس امپراطور (ژوستی نین) عیسوی مذهب ته واوښت ډیر پوهان له دغه هېواد څخه وتښتیدل او د جندی شاپور په روغتون کې د ناروغانو په درملنه یی پیل وکړ.

ویل کیږی چې برزویه د یوئ پلاوی په مشرئ هندوستان ته سفر کوی، طبی او اخلاقی کتابونه د ساسانیانو دربار ته راوړی. لیکونکی لیکی چې برزویه خپل ژوند لیک پخپله لیکلی او د کلیله او د منه د کتاب په مقدمه کې ذکر شویدی.

رازی هم پخپلو لیکونو کې پر برزویه اشاره کړی ده. برزویه د خپلو مشاهداتو نتیجه چې په هندوستان کې یی لاس ته راوړی دی په یو کتاب کې لیکلی چې وروسته په عربی ژبه او بیا په ۱۰۷۰م کې په یونانی ترجمه شویدی. ویل کیږی چې برزویه شطرنج له هندوستان څخه ایران ته راوړی او بیا لویدیز ته تللی دی.

داسی جوتیږی چې مخکی د اسلام څخه د منځنی آسیا طبابت نه یوازی د یونانی او رومی طبابت تر تاثیر لاندې وو بلکې د هندی، لرغونی چین طبابت هم خپله اغیزه لرله. او زرتشتی، بودایی او برهمنی مذاهبو موجودیت په دغه منطقه کې طبابت هم د پورتنیو مذاهبو تر تاثیر لاندې و.

## طبابت په اروپا او افریقا کې

اروپا ته د اسلامی علومو د ورننوتلو لاره هغو سیمو کې پرانستیل شوه چې د مسلمانانو تر تسلط او نفوذ لاندې وه. دا سیمی یوه اسپانیه او بله یې د سیسیلی ټاپو و چې البته اسپانیی زیاتره اهمیت درلود.

په سیسلی کې لوی ګامونه د دوهم فریدریک د حکومت په زمانه کې واخستل شو. دې پاچا د پاپ سره ښی اړیکی نه درلودلی. هغه پوهان او عالمان چې پاپ له خپل هېواد څخه تبعید کړی وو هغویی خپل دربارته راوبلل، چې له دې ډلی څخه یې ډیر مشهور میخائیل سکات Michelscot دی، چې (۱۱۷۵-۱۲۳۲م) کلونو تر منځه یې ژوند کاوه. نوموړی د یهودی اندریوی په مرسته د ابن سینا کتابونه په لاتین وژباړل.

د سیسیلی وروستنی ډیر لوی ژباړن فراغوت Farraguth نومیده چې په ۱۲۸۵م کې مړ شو. نوموړی نه یوازی د رازی کتاب په لاتین ترجمه کړ بلکې د «ابن جزلا» کتاب یې چې د جراحی په باره کې او د جالینوس د کتابونو له جملې څخه و او عربی حنین هغه ژباړلی و هم په لاتین وژباړه.

په لسمی میلادی پیړۍ کې چې د هجری څلورمی پیړۍ سره برابره ده په قرطبه کې عربی ډیر لوی جراح ابوالقاسم الزهروی چې د منځنیو پیړیو خلکو Abulcasis یا Albucasis په نوم پیژانده چې د اسپانیا د طبیبانو او جراحانو څخه و او د هغه وخت یو زیات شمیر د جراحی سامان الات شخصاً ده اختراع کړی وو او په طب کې د نوموړی مشهور کتاب «التعریف لمن عجزان لیف» دی چې په دیرشو مقالو مشتمل وو. دا طبیب د درباری طبیب ابن جلجل سره معاصرو، څوک چې د هشام بن حکیم بن عبدالرحمن د اندلس اموی خلیفه مخصوص طبیب و، د «زندګانی پزشکان و حکما» کتاب د ده د هستوونو څخه دی چې متاسفانه ورک شوی دی.

ابن الجزار د تونس د قیروان له خلکو څخه و چې د خپل شغل څخه ستړی شوی او په سمندری غل مشهور و، د خپلی زمانی د مشهور و او حاذقو طبیبانو څخه و، او یوشمیر کتابونه یی د طب او تاریخ په باره کې لیکلی او د یاقوت په قول د مصر المعز الدین الله د فاطمی خلیفه له معاصرینو څخه و.

ابن رشد قرطبی چې د ده فلسفی شهرت پر طبابت یی څرخیده په دولسمه پیړۍ کې یې ژوند کاوه، او پخپله زمانه کې ډیر بلند اوازه سړی و. د فلسفی مسایلو په تحلیل کې ډیر غښتلی و او ډیر کتابونه یی تألیف کړی

دی. د ده آثار د اروپا په علمی نهضت کې ډېر اغیزمن واقع شول، نوموړی د اشبیلیه د ښار قاضی او د قرطبه په ښار کې یې هم دا شغل درلود.

بل طبیب ابن الزهر نومیده او د هغو سترو طبیبانو څخه و چې په مصر کې اوسیده، بیا وروسته اندلس ته راستون شو. دا شخص د خپلی زمانی د طبیبانو په نسبت پیاوړی او نامتو و. په همدې توګه د ده زوی، لمسی او نور پوهان د ده له کورنۍ څخه د طبابت په فن کې خپل اوج ته ورسیدل.

یو بل لوی عالم چې د دیارلسمی پیړۍ پوری یې تعلق درلود اونه شوکولای چې له پام څخه وغورځول شی لوی ګیاه پیژندونکی ابن البیطار مالقی دی. نوموړی زیات مسافرتونه وکړل، یونان، کوچنی آسیا او مصر ته یې د طبی ګیاهو د ترلاسه کولو د پاره سیاحت وکړ. د ده آثارو په اروپا کې د دارویی موادو په هکله د سونتایمر او لکرک د هڅو په اثر شهرت وموند.

نوموړی دوه مشهور کتابونه لری چې یویی د مفرده درملو په باره کې جامع کتاب دی چې د ابن بیطار په مفرداتو مشهور او بل کتاب یې په طب کې «کتاب المغني» دی. ابن بیطار په ۶۴۴هـ کې په دمشق کې مړ شوی دی.

(مالقی د مالقه Malaga ښارته چې د اسپانیا په جنوب کې پروت دی منسوب دي).

اروپا، اسپانیا او د افریقا شمال ته د اسلامی طب د اصولو په انتقال کې لکه چې څرګنده وه د طلیطله (تولیدو) پوهانو اساسی نقش لوبولی دی. او په همدې ځاي کې ژرارد کرمون، میشل اسکات هم د علم زده کړه کړی ده. او مسیحی اروپایانو هم د ده د پوهې څخه برخه اخستلی ده.

د تولیدو د ډیرو نامتو ژباړونکو څخه یو ژرارد کرمانویی دی چې د (۱۱۰۷-۱۱۸۷م) کلونو په منځ کې ژوند کړی دی د ابن سینا د قانون کتاب یې په لاتین ترجمه کړ. نوموړی د عربی ژبو د یوشمیر اشخاصو په مرسته او همکاری وکولای شو چې د خپل عمر په موده کې زیاتی ژباړنی سرته ورسوی.

لکرک «د عربو د طب تاریخ» تر عنوان لاندې په خپل کتاب کې د ژرارد کرمانایی د کارونو فهرست راوړی دی، چې په هغه کې د ذکریای رازی د آثارو ژباړه (کتاب طب المنصوری) او د ابن سینا او د لویدیزی خاوری د پوهانو لکه سرابیون او نورو د آثارو ترجمې لیدل کیږی.

د قانون د کتاب ترجمه يې دومره په دقيق ډول سرته رسولې ده چې د هغه کسانو د ټول کار د پاره يوه ښه مبنا ګرزيدلې.

تر قانون وروسته د ابن سينا ډير کتابونه او کوچنی رسالې هم په لاتين ژباړل شوي او هغو پوهانو چې دا کتابونه ترجمه کړي دي لکه ګوندي ساولوس Gundisavlus، ارمنګود Armengaud، ارنولد او ويلانووا Arnold of Villanova او اورس Averroes زيات شهرت وګاټه او د دوی نوم په تذکرو کې د هميشه د پاره ثبت شو.

تر هغې وروسته د اروپا ډير لوی پوهنځی په تيره بيا د دې دوو يوازی د رازی او ابن سينا له کتابونو څخه د طب په پوهنتون کې د تدريس په چارو کې استفاده کوله او اصولاً په اروپا کې د طب د پوهنتونو د اهميت په باره کې د سنجش او قضاوت معيار دا و چې ترکومی اندازی پوری د دوو پوهانو په تيره بيا د ابن سينا آثار تدريس کيږی.

دا دواړه پوهنتونونه د مونتپولير Montpollier پوهنتون او بل يې د بلونيا Bologna پوهنتون وو.

خو د ابن سينا او رازی آثار په خپل ډول کې هغومره بې رقيبه او د نورو ټولو کتابونو په سر کې قرار درلود چې مونت پولير د طب په علمی مرکز کې تر ۱۵۵۸م او د بروکسل د طب په علمی مرکز کې حتی تر ۱۹۰۹م پوری تدريس کيدل.

د عربی نړی نورو هيوادونو ته د شرق (منځنی آسيا) د طبابت د انتقال په باره کې بايد زياته شی چې منصور عباسی خليفه په خپل ټول عمر کې د خپلی بدی هاضمی له ناروغی څخه رنځيده او د ده ځانګړی طبيب ابن الاحلاج ونه شو کړای چې د ده تداوی وکړی. بالاخره خليفه د ده د درملنی نه نوميده شو نورو طبيبانو ته يی مخ واړاوه ترڅو يې (جرجيس بن بختيشوع) يې مرستی ته راورسيد چې د جندی شاپور له اهالی څخه او د هغه ښار په پوهنتون کې تحصيل کړی و، او د اسلام په سراسر عالم کې شهرت درلود، کله چې بختيشوع د خلافت مقرته احضار کيده د جندی شاپور د پوهنتون رياست يی په غاړه درلود. نوموړی د هغه رياست خپل زوی ته پريښود او د خپلو دوو تنو تکړه شاګردانو (ابراهيم او عيسی بن سهل آسا) سره بغداد ته لاړ. جرجيس (جورجيس) خليفه ته ډاډ ورکړ چې د ده ناخوښی د درملنی وړ ده او د خليفه درملنه د بشپړ بری سره مخامخ شوه او په نتيجه کې ده ته پيشنهاد وشو چې په بغداد کې د خلافت د دربار د طبيب په عنوان

پاتې شي او په دې دول د منځنۍ آسیا د تداوي علمي شیوې عربي نړۍ ته لاره ومونداله.

ډېر پخوانی اثر چې د طبابت په هکله د خارجي ژبې څخه په عربي ژبه ژباړل شوی دی د «کناش» په نوم دی چې د هغه لیکونکی «اهرن قس اسکندراني» او ژباړونکی یې «ماسرجویه» دی، نوموړی د اسلام د ظهور په وخت کې په سوریه کې اوسیده او د کناش د کتاب ژباړه یوازنی اثر دی چې له دې څخه پاتې شوی دی. د دې کتاب ژباړه په ډېر چټکتیا سره د غیر بدوي عربانو په منځ کې رواج وموند.

داکتر سریل الکود لیکي: تر کومه ځایه چې زه خبریم لومړنی کتاب د سترګو طبابت پوری لیکل شوی دی د ابو روح محمد بن منصور جرجاني مشهور په «زرین دست» (د زرو لاس) په واسطه لیکل شوی دی. د ده کتاب نورالعین نومیږي چې په ۱۰۸۸م کې لیکل شوی او یوازې دوه نسخې یې موجودې دي چې یوه یې په اکسفورد او بله یې په کلکته کې ساتل کیږي[1].

که چیر ته طبابت له ختیز څخه عربو او نورو هېوادونو ته انتقال موندلی دی د منځنۍ آسیا د روغتونونو ساختمانونه، تجهیزاتو او مفروشاتو د جوړښت شکل هم هلته رواج موندلی دی. لکه چې په مراکش کې د اسلامي له بهترینو روغتونونو څخه یې قرار درلود چې د ۱۲۰۰م کلونو په شاوخوا کې جوړشو.

عبدالواحد المراکشي د دې روغتون په باره کې لکیلي دی «... دا هغه روغتون دی چې تصور کوم چې ساری یې په نړۍ کې نشته دی».

هر روغتون یو افتخاري رئیس درلود چې د غیر طبي اشخاصو څخه و او د هماغه ښارونو یا سیمې د آمرانو د کورنۍ پورې مربوط و. خو واقعي رئیس یې خامخا د هغه روغتون د طبیبانو له جملې څخه و چې د «متولي» په نوم یادیده.

لکه چې پخپله رازي هم د «ری» د روغتون متولي او بیا هم د زوړ بغداد د روغتون متولي و، او جرجاني هم دا مقام د خوارزم په روغتون کې درلود.

---

۱- دوکتور سریل الکود تاریخ پزشکی ایران طبع ۱۹۷۱ ص- ۱۸۷ .

د روغتون رئيس دوه مرستيالان درلودل چې هغوی ته مشير او قوام ويل کيدل[۱].

## د منځنيو پيړيو نامتو طبيبان

### ابانوپيترو (Abanopietroo):

يو ايطالوی فيلسوف او طبيب دی چې د پتروس او اپونو په نوم هم يادېږی. دا سړی د اومی هجری (۱۳م) پيړۍ له ډيرو نوميالیو طبيبانو څخه دی. نوموړی په پاريس کې يی د فلسفی او طب په تحصيل پيل کړی دی. نوموړی د خپلو ليکنو په ډول (سبک) کې د ابن الرشد او نورو عربی ليکوالو د ليکنو په لاره ډير زيات تللی دی.

### ارليانس (سيليوس) Aurelianus (Caelius):

نوموړی له سيکا له طبيبانو څخه دی چې سيکا په مديا کې واقع دی. دې غالباً په پنځمه ميلادی پيړۍ کې ژوند کړی دی. دې د سورانس دوه کتابونه چې د حادو او مزمنو ناروغيو په هکله ليکل شوی وو ترجمه کړی دی چې هغه ترجمې لاتر اوسه موجودی دی. برسيره پر دې د يو بل کتاب پارچی هم شته چې د صحت او د داخلی ناروغيو د پتالوژی په شاوخوا کې يې ليکلی دی.

### ارنالدوس دوولا نوا Arnaldus Devilla- Nova (۱۲۳۵-۱۳۱۳م):

يو کيمياګر، منجم او طبيب دی چې اصلاً اسپانوی او د عربو فلسفه يې مطالعه کړې ده.

د ده کليات په ۱۵۰۴ او ۱۵۳۲م کې په ليون او په ۱۵۸۵م کال په با سل او په ۱۶۰۲م کال په فرانکفورت کې او آخر بيا په ۱۶۸۶ کې بيرته په ليون کې چاپ او نشر شو. دې د طبی کتابونو په تأليف کې هم شهرت لری.

### ارنو (انتو) Arnault Anntion (۱۶۱۲-۱۶۶۴م):

په وی آرنو سره مشهور طبيب او د فرانس د الهياتو عالم ؤ. نوموړی يو کتاب د فرکات کامينون په نامه تأليف کړی دی.

---

۱- اثر فوق ص- ۲۶۴ .

**اريتا ئيوس Aretaeus:**

يو يونانی طبيب دی چې د دويمی ميلادی پيړۍ په دويمه نيمايی کې يی په روم کې ژوند کاوه. له ده څخه دوه طبی رسالی پاتی دی چې په ايونی لهجه دی او هره يوه يې څلور کتابونه دی. يوه رساله يې د حادو او مزمنو ناروغيو په اسبابو او علامو کې او بله يې د هغو د درملنی په باره کې بحث کوی چې په اختياری مدرسی پوری ارتباط لری. نوموړی د پنوماتيک Pneumatic له نظريو څخه (چې زړه د روح او د حيات مرکز کڼی) هم واقف و. او احتمال لری هغه سړی چې عرب ورته آرثائيوس وايي همدا سړی وی.

**اندرو ماخس:**

د ترن د مشهور طبيب نوم دی چې د ۵۴-۶۸م کلونو ترمنځ يې په روم کې ژوند کاوه. دغه طبيب زيات شهرت درلود او مشهور ترياق چې عوام يې فاروقی ترياق بولی ده ته منسوب دی.

**اق شمس الدين:**

شيخ محمد د حمزه زوی د محمد بن شهاب الدين د کورنی له علما او مشايخو څخه دی چې په کال ۷۹۲هـ په دمشق کې زيږيدلی دی.

سلطان محمد فاتح د نوموړی علمی او معنوی کمالاتو او هداياتو څخه استفاده کړی ده. په کال ۸۶۴هـ کې وفات شويدی. د نورو کتابونو په جمله کې د طب په رابطه يې هم يو کتاب تأليف کړی دی.

**ابراهيم** (۲۹۷-۳۳۵م):

ابو الاسحاق بن سنان بن ثابت بن قرة الصابی الحرانی نوميږی. نوموړی د طب، حکمت او د هندسی د علم پوه او فيلسوف و.

**ابراهيم بن موسي:**

په ابراهيم بن رئيس هم مشهور دی. د اسلام له منورو طبيبانونه دی او په مصر کې څرګند شو. او رئيس الاطبای ملک کامل بن ابی بکر مقرر شو او د قاهری په روغتون کې يې خدمت کاوه. په ۶۳۲هـ کې مړ شو. ابن ابی اصيبعه د عيون الا بنافی طبقات الاطبأ په کتاب کې دی يو پوه او خورا خوږ ژبی طبيب معرفی کړی دی.

**ابراهيم بن ايوب ايرش:**

د عباسی خليفی معتز بالله سرطبيب و. او د اسلام مشهور طبيب و، پلار يې ايوب ايرش نوميالی طبيب و. ډير يونانی ژبی کتابونه يې په عربی او سريانی ترجمه کړی دی.

**ابراهيم بن بکس:**

د مشهورو اطباو څخه دی چې د عباسيانو په اوله دوره کې ظهور کړی دی. د طب په علومو کې بر لاسی و او ډير کتابونه يې د طب په برخه کې تأليف او ترجمه کړی دی. څرنګه چې د سترګو بينايی له لاسه ورکړی خو دغه صنعت يی له لاسه ورنکړ او د عضدی په روغتون کې په تدريس مصروف و. د طب په برخه کې يی زيات کتابونه ليکلی او د قرا بادين په کتاب کې الحاقيه ليکلی دی.

**ابن ابی ربيعه:**

عبداله اميه بن ابی صلت نوميده او په طبابت او شعر کې يی هم معلومات درلودل. د اسلام تر ظهوره پوری لاژوندی و، خو ايمان يې رانه وړ، او رسول اکرمﷺ د ده په نسبت دا ډول فرمايلی دی (آمن شعره و کفر قلبه) يعنی د ده اشعارو ايمان راوړی دی او زړه يی کافر دی.

**ابن ابی رمثه:**

يو جراح طبيب و چې د رسول اللهﷺ په زمانه کې يی له رسول اکرمﷺ سره مجلس کړی دی، او په هغه وخت کې ده غوښتل چې د رسول اکرمﷺ اسلحه له شاڅخه ښکته کړی خو ده ته يې اجازه ورنکړه او په اخبار الحکما کې قفطی د ده د حال شرح همدومره ليکلی ده.

**سعيد ابن بطريق:**

د مصر د قسطاط څخه دی او خورالوی او حاذق طبيب و. نوموړی په ۲۶۳هـ کې د ذی الحجی په ۲۷ زيږيدلی دی. دې په اسکندريه کې د بطريقی رئيس مقرر شو. په اتوشپوس باندې مسمیٰ شو او شپيته کاله عمر يې تير کړ. اوه کاله يی د رياست منصب درلود. ابن بطريق د طبابت په فن کې خورا ډير مهارت درلود. او په پای کې په ۳۲۸هـ د رجب په مياشت کې وفات شو.

د عملی او علمی طب کتاب، يوه رساله، کتاب الجدل او کتاب النظم الجوهر د ده تاليفاتو څخه دی.

### ابن بغونش:

ابو عثمان سعید بن محمد د اندلس د اطبا او فلاسفه و ځخه و. په ۳۶۹هـ په طلیطله کې زیږیدلی دی. نوموړی د ظاهر اسمٰعیل ابن مطرف د طلیطله باچا ته ډیر مقرب و. په ۴۴۴هـ کې وفات شوی دی.

### ابن بطلاوش:

د اندلس له علماو ځخه و. په دین کې یهود و. خورا پوه طبیب و. په تیره په مفرده درملو کې یی ډیر معلومات درلودل. المجدولته فی الادویة المفرده. د ده د مشهورو تالیفاتو ځخه دی. ده په بنی هواد کې خورا لوړ مقام درلود او پنځمه پیړۍ کې یی استوګنه کاوه.

### ابن البناء:

ابو العباس احمد بن محمد بن عثمان له دی ځخه و او د مراکش عالم و او په ۶۳۹ یا ۶۴۹ یا ۶۵۶هـ کې په مراکش کې زیږیدلی دی. د هئیت او ریاضیاتو په علومو کې او په طب او فقیه علومو کې یی خورا تخصص پیدا کړ. نوموړی په ۷۲۱ یا ۷۲۳هـ په مراکش کې وفات شوی دی. ابن البنا ته یی د ۷۴ کتابونو نسبت کړی دی چې له دې جملی ځخه د تلخیص اعمال الحساب خورا مشهور کتاب دی.

### ابن تلمیذ:

امین الدوله ابو الحسن هبت اله بن ابی الغنایم په (۴۶۶-۵۵۶هـ) ژوند کړی او په عربو کې یو مشهور طبیب و. د طبابت او ناروغیو د تشخیص او د تداوی په فن کې یی خورا مهارت درلود. په بغداد کې د عضدی د روغتون سرطبیب او مدیر ؤ. او د ژوند تر پایه پوری په دغه خدمت بوخت او اخته و. ده ډیر تالیفات کړی دی چې لس یی ډیر مهم دی.

### ابن الجزار:

ابو جعفر احمد بن ابراهیم د هجری په ځلورمه پیړۍ کې د اسلام له مشهورو طبیبانو ځخه و. په قیروان کې زیږیدلی دی. تره او پلار یې هم له اطباو ځخه وو. په طبابت کې یی خورا ښه معلومات درلودل. د ناروغانو په درملنی او د ناروغیو په تشخیص کې یی خورا مهارت درلود، او د طبابت د فنی انواعو په باره کې یی خورا ډیر مختلف کتابونه لیکلی دی. د ده کتابونه او آثار د ۲۵ ځخه زیات ښودل شوی دی. نوموړی له ۸۰ کلونو زیات عمر درلود.

**ابن جلجل:**

ابو داود سليمان ابن حسان الاندلسی له ښو طبيبانو څخه و. د مفرده درملو په خواصو کې يی ښه بصير ت درلود. د معالجی د انواعو په باره کې يی ښه خبرتيا او معلومات درلودل، او په خپل صنعت کې به يی ډير ښه تصرف کاوه.

نوموړی وايی ما هم د يو مرکب درمل د تصحيح کولو له آمله خورا حرص او هڅه درلودله، ترڅو می د خاوند تعالی په فضل هغه درمل وپيژندل.

د درملو د نومونو تفسير د ديسقوريدس له کتاب څخه د ابن جلجل له تاليفاتو څخه دی، چې هغه يې د قرطبې په ښار کې په ۳۷۲هـ کال کې ليکلی دی. نوموړی يوه مقاله او يوه رساله هم لری.

**ابن جميع:**

شيخ موفق شمس الرياسته هبته الله بن زين بن جميع اسرائيلی له مشهورو اطباو څخه وو. د طب په صنعت کې يې خورا زيات کوشش او اجتهاد کړی دی. ډير ښه علاج به يې کاوه. په طب کې ده باندې سلطان ډير اعتماد او باور درلود. ښه کتابونه او مقالی لری.

**ابن خلدون:**

ابو مسلم عمر بن احمد حضرمی له اندلس د اشبيليه د مشهورو علماو څخه او د ابن خلدون د مشهور مورخ له کورنۍ څخه دی. په فلسفه، نجوم، هندسه او طب کې يې مهارت درلود. يو فيلسوف عالم و. په ۴۴۹هـ کال په اشبيليه کې مړ شوی دی.

**ابن خياط:**

ابوبکر عيسی بن احمد د اندلس له مشهورو علماو څخه دی او په حساب او هندسه، طب خصوصاً د هئيت په علم کې يې پوره لاس درلود. د سليمان بن حکم او نورو پاچاهانو په حضور کې يې خدمت کړی دی. په ۴۴۷هـ کال په طليطله کې مړ شوی دی.

**ابن رشد (ابن الرشد):**

ابو محمد عبداله بن ابی وليد د حکيم او فيلسوف (ابن رشد) زوی دی. ده هم په طبابت کې پوره مهارت حاصل کړی او د پلار د مرګ نه وروسته

د هغه ځای یی اشغال کړ او د ناصر بن منصور سرطبیب وو. دی یو اثر لری چې مقاله فی حیلة البره په نامه مسمیٰ دی.

**ابن رشد:**

ابو الولید محمد بن احمد ابن رشد یا ابن الرشد د پورتنی ابن رشد پلار دی. په ۵۲۰ کال په قرطبه کې زیږیدلی دی.

ابن اصیبعه لیکلی چې ابن الرشد لومړې په اشبیلیه کې او بیا په قرطبه کې د قضاوت په وظیفه شروع وکړ.

شمس الدین شهرورزی د تاریخ الحکماو په کتاب کې لیکلی دی چې ابن الرشد په مختلفو علومو کې لکه فقه، اصول، طب، منطق، فلسفه او داسی نور تر ۷۰ عنوانونه زیات کتابونه تالیف کړی دی چې زیاتره یی په لاتین یا عبری ژبه ترجمه شوی دی او اصل عربی یې له منځه تللی دی. خو یو لږ کتابونه یې هم اوس موجود دی.

**ابن رضوان:**

ابو الحسن علی د اسلام د لویو طبیبانو څخه یو طبیب و. د څلورمی هجری پیړیَ په اواخرو کې د مصر په جیزه نامی کلی کې زیږیدلی دی او په قاهره کې د علم په تحصیل یې شروع وکړ.

په ۴۵۳هـ کال کې مړ شوی دی. په طبابت کې یې پوره صداقت درلود او د فاطمیه پادشاهانو څخه د حاکم بامر الله سرطبیب و. د خپلو معاصرو طبیبانو سره به یې معارضی کولی او د خپلو اسلافو آثار به یې د اعتراضاتو د محک څخه ایستل.

نوموړی ۵۶ کتابونه، رسالې او مقالې لیکلی دی. د افلاطون، ارسطو، بقراط، جالینوس، فرفوریوس پر ځینو کتابونو او د یونانی حکماو پر مختلفو تالیفاتو یې مفید تعلیقات لیکلی دی.

**ابن رومیه** (۵۶۱-۶۳۷هـ.ق):

ابو العباس احمد بن محمد بن مفرج النباتی چې په ابن رومیه باندې مشهور دی او د اشبیلیه له خلکو څخه دی. او د دی ځای د لویو علماو څخه شمیرل کیږی. نوموړی په دینداری کې مصوف او طبابت کې محقق و.

د نباتاتو علم او د درملو د خصوصیاتو او قواو او منافعو معرفت او د دی درملو د شین کیدو ځای د تباین، او صافو د اختلاف معرفت یې د کمال

درجې ته رسولی دی. د ده تالیفات یې پنځه کتابونه دي چې یو قاموس یې ډېر مهم دی.

**ابن زهر:**

د مسلمانو علماو او پوهانو د یوې داسې کورنۍ کنیه ده چې د لسمې میلادي پېړۍ د لومړنیو نه د ۱۳ پېړۍ تر اوایلو پورې په اندلس کې پیدا شوي دي، دغې کورنۍ د عربستان نه مهاجرت کړی دی او نسب یې عدنان ته رسیږي. لومړۍ د اندلس په مغرب جفن شاطبه کې اوسیدلې دي او وروسته بیا د اسپانیې په نورو برخو کې خواره، تیت او پرک شوي دي. د دې کورنۍ مشهور او معروف کسان دا دي:

۱. د دې کورنۍ لوی نیکه (جدا علی) چې په اندلس کې و په زهر سره ملقب و. په ۸۶ کلنۍ کې په ۴۲۲هـ کال د طلبیرې په ښار کې مړ شو.

۲. مروان عبدالمالک: نوموړی بن محمد بن مروان بن زهر چې مشهورو طبیبانو څخه و. په علم طب او علم فقه دواړو کې ښه پوره معلومات درلودل.

۳. ابو العلا: ابو العلا زهر بن ابی مروان عبدالملک بن محمد بن مروان د مخکې ذکر شوي سړي زوی دی. د ناروغیو په تشخیص کې یې فوق العاده مهارت درلود.

۴. ابو مروان: نوموړی عبدالملک بن ابی العلا زهر د مخکې ذکر شوي ابو العلا زوی دی او معمولاً په ابو مروان بن زهر سره بلل کیږي. دې د اشبیلیه په ښار کې ۴۸۴-۴۸۷هـ کلونو ترمنځ زیږیدلی دی او وروسته تر دې چې فقه او ادبیات او شرعي علوم یې په کامل ډول زده کړل او د طبابت علم یې د خپل پلار نه زده کړ. دغه علم یې په لږه موده کې تر دې اندازې زده کړ چې د خپل استاد درجې ته ورسید او خاص بیا د خپلو ابتکاري تجربو په اثر په قرا با دین کې د تخصص خاوند شو. د ده تالیفاتو څخه یو کتاب (کتاب الاقتصاد فی اصلاح النفس و الا جساد)، بل یې (کتاب التیسیر فی المداداة و التدبیر) نومیږي. نوموړی د خبیث ناروغۍ په اثر په ۵۵۷هـ کال په اشبیلیه کې مړ شو.

۵. ابوبکر: ابوبکر محمد بن عبدالملک بن زهر د دغه ذکر شوي زهر زوی دی چې په حفید سره مشهور دی. په ۵۰۴هـ او په ۵۰۷هـ

کال کې زیږیدلی دی او ۵۹۵هـ کې مړ شوی دی. دې یو ماهر طبیب و خو په عملی برخه کې مشغول و او څه تالیفات یې ندی کړی. خو بیا یی هم د سترګو په طبابت کې یوه رساله د ځان څخه پرایښی ده.

۶. ابو محمد: عبدالله بن الحفید د مخکی ذکر شوی محمد زوی دی. په ۵۷۷هـ کال په اشبیلیه کې زیږیدلی دی. نوموړی د ماهرو طبیبانو څخه و چې د خپل پلار په مدرسه کې یې تحصیل وکړ. په ۲۵ کلنۍ کې هغه وخت چې مراکش ته روان و په ۶۰۲هـ کال په رباط الفتح کې مړ شو. کشر زوی یې ابو العلا د طب سره ډیر شوق درلود او د جالینوس د تالیفاتو څخه یې پوره معلومات درلودل او ښۍ ګټې ورځنی واخستی.

**ابن سحنون:**

ابو عبدالله محمد سحنون ندرومی د اندلس د ادیبانو او طبیبانو څخه و او په ۵۰۸هـ کال په قرطبه کې زیږیدلی دی. وروسته اشبیلیی ته لاړ او د ابن الرشد د شاګردانو په قطار کې داخل شو او د ځینو پادشاهانو طبابت یې هم کاوه.

**ابن سرابیون:**

د عباسیانو په دوره کې د سریانی مشهورو طبیبانو څخه شمیرل کیږی. یو حنا د ده کنیه نوم دی چې دوه کتابونه د الکناش کبیر او الکناش الصغیر په نامه په سریانی ژبه لیکلی دی، چې څو واری په عربی ژبه ترجمه شوی دی.

**ابن سراج (۶۵۵-۷۲۹هـ):**

محمد بن ابراهیم بن عبدالله بن رومین چې په ابن سراج غرناطی شاعر سره مشهور دی. ده په ډیرو فنونو او طب کې پوره مهارت درلود او د ده د تالیفاتو شهرت د دې سبب شو چې سلطان محمد بن محمد دی د خپل ځان مخصوص طبیب وټاکي. ده به د فقیرانو او بې وزلو خلکو علاج وړیا کاوه او د خپلو عوایدو دریمه برخه یې د دوی په غذا او دوا او نورو حوایجو باندې صرفوله. ده د طب په باره کې ډیر کتابونه لیکلی دی.

**ابن سمح:**

ابوالقاسم اصبغ بن محمد د اندلس د مشهورو رياضينو څخه و او په طب کې يې مهارت درلود. ډير ښه او زيات تاليفات لرى چې مهم آثار يې شپږ ښودل شوى دى. په ۴۲۶هـ کال کې مړ شوى دى.

**ابن سمينه:**

يحيٰ بن يحيٰ د اندلس د مشهورو طبيبانو څخه و. او د رياضى، نجوم په علومو او ادبياتو او نورو فنونو کې يى مهارت درلود. په قرطبه کې زيږيدلى او په ۱۳۵۰هـ کال کې مړ شوى دى.

**ابن عبدربه:**

ابو عثمان سعيد بن عبدالرحمان طبيب او شاعر دى. نوموړى اندلس څخه و. په طب، هئيت او نجوم کې يې لوى لاس درلود. د تبى د تداوى په باب يې مخصوص اصول درلودل. نوموړى په طب کې درى کتابونه لرى. د عمر په وروستيو وختونو کې ړوند شو او د ۳۴۵هـ کال په شاوخوا کې مړ شو.

**ابن عذرا:**

يا ابراهيم بن مير ابن عذرا يو يهودى عالم دى چې د اسپانيى په توليدو کې د ۱۰۹۳-۱۰۹۷ په سنو کې زيږيدلى دى او د ۱۱۶۷ د جون په ۲۳ مړ شوى دى. په طب، هئيت او فلسفى کې متبحر و. او يو لوى شاعر هم و. نوموړى ډير آثار ليکلى دى.

**ابن عطار:**

ابو الخير مسيحى د نيلى نصرانى طبيب ابى البقا زوى دى. د عباسى خليفه ناصر په زمانه کې اوسيده او د خليفه مخصوص طبيب و. په ۶۰۸ په بغداد کې مړ شوى دى. قفطى د تاريخ الحكما خاوند په طب کې د ده شاگرد و.

**ابن القفطي:**

ابو الحسن على بن يوسف قفطى چې په جمال الدين ملقب دى په ۱۱۷۲م کې د مصر د صعيد د توابعو د قفط په ښار کې زيږيدلى دى. د ابن قفطى د زياتو تاليفاتونه چې اکثر يې په تاريخ کې وو لکه تاريخ القاهره، تاريخ اليمن، تاريخ المغرب، تاريخ سلاجقه او نور پرته د يو کتاب نه چې

هغه هم د اختصار په ډول دی بل مونږ ته ندی رسیدلی، او داسی احتمال کیږی چې دا کتاب د اخبارالعلما او تاریخ الحکما په کتاب موسوم دی.

خو هغه مختصر چې روزنی له دې کتاب نه لیکلی دی په (الملتقطات من کتاب تاریخ الحکما) موسوم دی چې د ۴۱۴ کسو طبیبانو او ستورو پیژندونکو او حکماو پر شرح دی چې د پخوانیو وختونونه د مؤلف تر زمانی پوری دی. دا کتاب فوق العاده مهم دی ځکه چې یوه داسی سر چشمه ده چې د عربو د فرهنګونو او علومو او د هغوی د اطلاعاتو په باب کې پر یونانی تالیفاتو د ډیرو ښو معلوماتو لرونکی او منبع ده. بر سیره پرهغې د یونانی د آثارو یوه زیاته برخه چې پخوانو کتابو کې ندی ویل شوی مونږ ته ښیئ.

**ابن کرابا:**

ابو سالم یو مشهور طبیب دی چې په اصل د یعقوبیی ملاطیی له طایفی نه دی او د سلجوقی پاچا علاوالدین کیقبا د طبیب او ندیم و.

**ابن کرنیب:**

ابو احمد حسین بن اسحاق بن ابراهیم بن یزید د طبیعینو د یو مشهور سړی کاتب و. ابن اصیبعه د عراق او جزیری په طبیبانو کې راوستی دی.

**ابن ماسویه:**

میخائیل د ماسویه زوی او د یو حنا بن ماسویه ورور ؤ. د طب په ټولو چارو کې د یونانیانو پر لارې تګ کاوه. د خپلی پیړۍ او د مخکنیو د هیڅ یو طبیب سره یې موافقه نه درلود. مامون د ده خورا لمانځنه کوله او هیڅ یو درمل به یې چې د میخائیل له خوا جوړشوی نه و نه یې خوړ. د بغداد ټولو طبیبانو د ده تمجید او احترام کاوه.

**ابن مامون:**

ابو عمران موسی د میمون زوی د عبیدالله طبیب لمسی وو. نوموړی په ۱۱۳۵م یعنی د هجری پنځمی پیړۍ په وروستنی نیمایی په قرطبه کې زیږیدلی و.

نوموړی په طبابت کې ساری نه درلود. او د صلاح الدین ایوبی د خاص طبیب په ډول په شاهی مقام کې شامل شو.

نوموړی حکیم د طبابت په باب تر ۱۸ زیات کتابونه لیکلی دی چې ځینې یې د پخوانیو حکمیانو او طبیبانو څخه لکه بقراط، جالینوس او ابن سینا د کتابو څخه د اقتباس په ډول ترجمه او تخلیص کړی دی او ځینی یې خپل مولفات دی.

**ابن نفیس:**

علاوالدین ابوالحسین علی بن ابی الحزم علاوالدین بن النفیس مصری قریشی دی. نوموړی طب په دمشق کې زده کړ. دی په طب کې د خپلی زمانی په وګړو کې ساری نه درلود. په ۶۸۷ کال مړ شو. ځینو د ده وفات په ۶۹۶ کال کې ګڼی چې اتیا کلن وو. ډیر تالیفات لری او له کتابو څخه یې ډیرۍ نسخۍ پاتی دی. د حاجی خلیفه په وینا دروسوو ټوکو ته رسیدل او د اتیا ټوکو په تالیف بریالی شوی دی.

**ابن النقاش:**

مهذب الدین ابوالحسن علی د عیسيٰ زوی د اسلام د مشهورو طبیبانو څخه و. په بغداد کې زیږیدلی دی. دمشق او مصر ته تللی او په پای کې په دمشق کې میشت شو او د ملک عادل نورالدین محمود بن زنګی د طبابت او کتابت په خدمت بوخت شو او د دمشق روغتون یې اداره کاوه. په ۵۷۴هـ کال مړ شو.

**ابن وافد:**

د ابو المطرف عبدالرحمن بن محمد وزیر (۳۸۷-۴۶۰هـ) او د اندلس د مشهورو طبیبانو او غنیانو څخه و. په طلیطله کې یې هستوګنه درلوده. د ارسطو او جالینوس کتابونه یې ډیر کتلی وو. ډیر ښه آثار لری.

**ابن هود:**

ابو علی حسن د عضدالدوله زوی دی. په حکیمه، طب او د فلسفی په علومو کې یې لوی لاس درلود. په ۶۹۷هـ کال په دمشق کې مړ شوی او په ۶۳۳هـ کال په مرسیه کې زیږیدلی و.

**ابن الهثیم:**

عبدالرحمن د الحق زوی د اندلس د خورا مشهورو طبیبانو څخه و چې په قرطبه کې لوی شوی او زیات تالیفات لری. مهم تالیفات یې څلور دی. نوموړی په ۴۵۵هـ کال مړ شوی دی.

**ابن ابی الاشعث:**

ابو جعفر احمد د احمد زوی او د احمد ابی الاشعث لمسی چې اصلاً ایرانی دی. وروسته موصل ته تللی او زیاته موده یی هلته تیره کړې ده. په ۳۵۹هـ وفات شوی دی. کله چې د ناصرالدوله کوچنی زوی یې معالجه کړ ډېر مشهور شو او د زیات ثروت خاوند شو.

زیرک او با هوشه سړی و چې په فلسفه او طب کې یې ډېر شاګردان تربیه کړی دی.

محمد د ده د زامنو څخه و چې په خپل عصر کې مشهور طبیب و. د طب په برخه کې یې تالیفات ۱۴ ټوکو ته رسیږی.

**ابن ابی اصیبعه:**

موفق الدین ابو العباس د قاسم سعدی خزرجی زوی دی او د مؤلفینو په شرح حال باندې مشهور دی. په کال ۶۰۰هـ ق په دمشق کې زیږیدلی دی. نوموړی په کال ۶۳۴هـ کې د قاهری په روغتون کې کار پیدا کړی او وروسته د امیر عزالدین ایدمی په طبابت کې مقرر شوی او په کال ۶۶۸هـ کې وفات شوی دی.

د عیون الابنافی طبقات الاطبا په اثر کې د حکماو او مشهورو طبیبانو شرح حال یې لیکلی دی. برسیره پر هغه یې دری کتابونه تالیف کړی دی.

**ابن ابی صادق:**

ابوالقاسم عبدالرحمن د علی زوی د احمد لمسی او د ابی صادق نیشاپوری کړوسی دی. ډېر زبردست طبیب او فیلسوف و. په نیشاپور کې زیږیدلی او هلته تربیه شوی دی. نوموړی د دوهم بقراط په نامه پیژنی. خپل ټول عمر یې د جالینوس د کتابونو په تفسیر او تتبع کې تیر کړی دی.

د بقراط د جنین مسایلو شرح، شرح فصول یا فصوص د ده د تصنیفاتو له جملې څخه دی. د پاریس په ملی کتابتون کې د وروستی کتاب یوه نسخه او تقدمه المعرفه کتاب موجود دی.

**ابن باجه:**

ابوبکر محمد ابن یحيٰ بن باجه نجیبی یا بل نوم یی ابن الصایغ د عربانو یو مؤرخ دی چې په ریاضی او طب کې ډیر شهرت لاره. د هجری پنځمی پیړۍ په وروستیو کې سرقسط کې زیږیدلی دی. د عمر په وروستیو کې فارس ته تللی او په ۵۳۳هـ کې چې ځوان و مړ شوی دی. ځینی عربان وایي چې د طبیبانو د کینی او حسد په نسبت نوموړی مسموم شوی چې محرک یې ابن زهر ګڼی. د نوموړی ۲۶ اثرونه د افغانستان په دایرة المعارف کې درج دی.

**ابن بختویه:**

ابوالحسین عبدالله بن عیسيٰ د واسط ښخه دی. د اسلام مشهورو اطباو کې شمیرل کیږی. یو کتاب یې چې کتابه المقدمات چې د کنزالاطبا په نوم شهرت لری او په کال ۱۴۰هـ کې د خپل زوی په نوم تالیف کړی دی. نور معتبر آثاریی الذهد در فن جراحی کتاب، کتاب العضدالی معرفت العضد دی.

**ابن بطلان:**

ابوالحسن مختار بن حسن بن عبدون، بن سمدون ابن بطلان د بغداد د اهالیو ښخه دی. د تقویم الصحه کتاب چې لاتینی ترجمه یې په ۱۵۳۱م کال په استر اسبورګ کې نشر شوی دی. نور آثار یې دری ښودل شوی دی.

**ابن جزله:**

ابو علی یحی بن عیسيٰ طبیبی د بغداد ښخه دی. اروپا هغه د بن جنلا په نامه پیژنی. طبابت یې د سعید بن هبته الله ښخه زده کړی دی. د بغداد په کوی کرخ کې ژوند کړی دی او د کوی کرخ خلک یې مجانی تداوی کول او خوراک به هم هغو ته ورکاوه. نوموړی د شعبان په میاشت کال ۴۳۹هـ کې وفات شوی دی. هغه کتابونه چې له ده ښخه پاتې دی پنځو آثارو ته رسیږی.

**ابن سینا:**

ابو علی حسین بن عبدالله بن حسن بن علی بن سینا چې په شیخ الرئیس، ستر استاد یا د استادانو رئیس، د طبیبانو امیر، حجة الحق، شرف الملک باندې ملقب و. همداشان د معلم الثانی یعنی دویم معلم چې په تحقیق سره تر ارسطو وروسته مقام لری القاب ورکړ شوی دی.

ابن سینا د بلخ د اهالی د یوه تن زوی و، د مور نوم یې ستاره ده چې پلار یې د افشانه په کلی کې چې د بخارا د مربوطاتو د خرمیثن (د لمر

وطن) له کلیو څخه یو کلی و له هغی سره واده کړی، او ابن سینا هم د خرمیثن په کلی کې زیږیدلی دی.

«د ابن سینا پلار د اسمعیلیه له پیروانو او د بلخ له خلکو څخه او مور یې د بخارا د اطرافو د کلیو له اوسیدونکو څخه ده»[۱].




نو ابن سینا (۹۸۰-۱۰۳۷م) زمونږ د ګران هېواد افغانستان د بلخ له اوسیدونکو څخه ؤ چې کورنۍ زده کړی یې تعقیبی کړی او تر ټولو علومونه مخکی یې د طبابت سره علاقمندی درلودله. په هر صورت تر کومه ځایه چې معتبرو اسنادو ته مراجعه شویده، نوموړی د بلخی ابن سینا په نوم پیژندل شوی او حتی تر ډیرو کلونو پوری په لویدیز کې دی د عربو له علماوو څخه شمیره. خو تاریخ داسی قضاوت ونه کړ او نه به یې وکړی.

په شپاړس کلنۍ کې د ابو سهل عیسيٰ بن یحيٰ المسیحی چې د جرجان له طبیبانو څخه و د توصیی په اساس د طب د علم په زده کړه یی پیل وکړ، او د دی منظور د پاره یی ابو منصور حسن بن نوح القمری په استادۍ غوره کړ.

ابن سینا د خپل شرح حال په یوه برخه کې لیکلی«په لومړي سرکې مې ناروغان صرف په دې خاطر معالجه کول چې د طب د علم سره می مینه درلودله او مادی ګټه می له دې بابته په نظر کې نه وه». نوموړی زیاتوی «تر دې وروسته د طبابت د علم سره سخت علاقمند شوم او هغه کتابونه چې می په دې علم کې راټول کړی وو ولوستل، د طبابت علم د سختو علومو څخه نه دی او دا ده چې زه په ډیره کمه موده کې په دغه څانګه هم پیاوړی شوم»[۲].

---

۱- ادوارد براون، طب اسلامی، ص-۷۴
۲- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ص-۲۷۰

لا اتلس کلن شوی نه و چې د ده ښه شهرت یوې هسې درجې ته ورسید چې د نوح بن منصور سامانی پاچا (۹۷۶-۹۹۷م) بستر ته یې احضار کړ. «د ابن سینا د طبابت فعالیت د سامانی نوح بن منصور له تداوۍ څخه پیل شو ځکه کله چې رسمی او درباری طبیبان د ده له تداوۍ څخه پاتی راغلل نو یې ځوان ابن سینا د ده د بستری (بالین) سرته راوغوښت او ده وکړای شو چې نوموړی امیر معالجه کړی، دا وه چې د خاص و عام د پاملرنی وړ وګرځید»[1].

د ابن سینا آثار ډیرې زیاتې او زیاتره یې هم ډیر محجم او قطور دی. د ده ځینی مهم آثار شل جلده هم کیږی.

هغه بشپړ فهرست چې قفطی په لاس راکوی (چاپ لیبرت ص-۴۱۸) ۲۱ لوی یا مفصل آثار او ۲۴ یې کوچنی او مختصر آثار دی. چې د هغو موضوعات د فلسفی، طب، کلام، هندسی، د نجوم د احکامو، د ژبې پیژندنې او داسی نورو پوری مربوط دی.

هغه فهرست چې بروکلمان په خپل اثر چې Geschichte Der Arabischen Litter په نوم (کتاب اساسی عربی) لومړۍ جلد ۴۵۴-۴۵۸ مخونه دی او د ابن سینا په موجوده آثارو مشتمل دی له هغې بیخی زیات مفصل دی چې قفطی نقل کړی دی.او پر ۶۸ کتابونو د کلام او لومړۍ حکمت د علم په باره کې، د نجومی د احکامو، حکمت او طبیعی په باب ۱۱کتابونه، ۱۶ کتابه په طب کې، ۴ کتابه هم په شعری فنونو کې چې مجموعاً ۹۹ کتابونه کیږی.

«د ابن سینا څخه د دوو سوو څخه زیات آثار کتابونه، رسایل او مقالات په میراث پاتی دی چې د هغه عصر متداوله علوم او معرفت لکه فلسفه، طب، منطق، روان شناسي، سیاست، ښوونه او روزنه او ادبیات او نور دی په برکې نیسي»[2].

«د تاریخ پوهانو ۲۲۰ کتابونه او رسالی د شیخ په نامه ضبط کړی دی چې ۱۶ یې طب پوری اړه لری. له دغی جملې څخه ۱۰۰ عنوانه چاپی او خطی یی اوس موجود دي»[3].

---

۱- اثر فوق، ص-۲۷۰

۲- مجله آریانا، شماره ۳۷۶ سال ۱۳۸۱ ص-۶۱

۳- پښتو آریانا دایرة المعارف، لومړی ټوک ۱۳۲۹ چاپ ص-۷۶۵-۷۹۲

ابو الفرج بن عبری وايي «د قانون د کتاب د تنظیم او انشأ څخه دمخه د طب د علم مینانو او د دی رشتی محصلانو چې د علی بن عباس مجوسی اهوازی کامل الضاعه له کتاب څخه استفاده کوله خو د قانون د کتاب تر خپریدو وروسته کامل الصناعه په بشپړه توګه یوې ګوښې ته شو»[1].

دا اثر چې له یوه ملیون کلمو څخه زیاتیږی او د عربی د ګردو کتابونو او آثارو غوندی په مفصله توګه تقسیم بندی شوی په پنځو کتابونو تقسیم شوی دی.

«د ده د طب د علومو د قانون کتاب له پنځو برخو څخه تشکیل شوی دی، چې دیرش کرته چاپ شوی دی، او تر اتلسمی پیړۍ پوری له خاص اهمیت څخه برخورداره دي»[2].

«په منځنیو پیړیو کې د لویدیزی اروپا په هیوادونو کې په دی نسبت چې کاتولیک مذهب د جراحی، اتوپسی او نور عملیاتونه منع کړی و نو جراحی هغو مره پراختیا نه ده موندلی او وروسته پاتی وه او حتیٰ د سیر علمی په وخت کې د زخمیانو سره کومک د مذهب له مخی منع کړی شوی و. په هغو هیوادونو کې چې د کاتولیک مذهب موجود نه و په تیره بیا په منځنی آسیا په سیمو او خراسان کې د جراحی پرمختیا دوام وموند او په دې برخه کې د ابن سینا، رازی او نورو څخه یادونه کولای شو»[3].

«...یوازی یو شمیر زړه ورو او با استعدادو جراحانو په هغه وخت کې وکولای شول چې په جراحی کې طبی خدمتونه ترسره کړی. چې له دې جملې څخه د شرق جراح او طبیب ابو علی ابن سینا بلخی (۹۸۰-۱۰۳۷م) چې په اروپا کې اوس هم د ابن سینا په نوم یادیږی د طب په علم کې په تیره بیا په جراحی کې د قدر وړ خدمتونه ترسره کړل.

...ابن سینا د جراحی د عملیاتو په وخت کې د نرکوز څخه استفاده کوله او په هغه وخت کې د حس د ابطال د پاره یې ناروغ ته تریاک او یا کوکنار ورکول.

دې پیاوړی جراح او د شرق نابغه خبیثه تومورونه په پراخ صورت د نورمال نسج له ساحی څخه قطع کول او د تومور ځای یې د سره کړی او

۱- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ص-۲۸۳
۲- و. دی. کریکوف، اوګانزیشن و اقتصاد فارمسی، سال ۱۹۷۶ ص-۱۶
۳- اکادمیسن پوهاند محمد موسی وردګ، جراحی حرب، سال ۱۳۶۷ ص-۳-۱۷

سپینی په واسطه سوزاوه چې حتی نن ورځ هم رواج لری. ابن سینا په خپل عصر کې حتی د کلیې (بډوډو) تیږې عملیات په ښه توګه اجرا کول او د نرمو کتیترونو څخه چې د حیوان له پوستکی څخه جوړیدل استفاده کوله»[۱].

ډیر غوره نقش د سل، توبرکلوز (نری رنځ) د ناروغی په انکشاف کې، د شرق نابغه او د بلخ ستر عالم یعنی ابو علی سینا درلود. نوموړی د قانون په کتاب کې د سل په باره کې یادونه کړی چې ډیره ارزښتمنده ده. ده په مفصل ډول د ریوی توبرکلوز سریری لوحه، پلوریتونه او میننجیتونه چې غیر وصفی Non-Specific عامل یې درلود لیکلی دي، ده د سل عامل یووړو کې میکرو اورګانیزم په ګوته کړی چې په سترګو نه لیدل کیږی او دا نظر تر ابن سینا څخه ۶۰۰ کاله وروسته چې مکروسکوب د لیوان هوګ له خوا اختراع شوی و څرګند شو.

ابن سینا وایي سل یوه انسانی ناروغی ده چې په نتیجه کې له وړو ژوندی شیانو څخه منځ ته راځی او د ناروغ انسان څخه سالم انسان ته سرایت کوی، «همدارنګه دغه د اروپا د طبابت شهزاده د قانون په کتاب کې د تبو په فصل (طاعون، کوی، شری او نورو) کې وایي چې دغی ناروغی د یو نامرئی موجود څخه منځ ته راځی»[۲].

ابن سینا په خپلو آثارو کې لیکلی دی چې د دی ناروغی د مساعد کولو عوامل آب و هوا، روحی او فزیکی ترضیضاتو له بدلونونو څخه دی. ده ویل چې د سل ناروغی د وجود په ټولو غړو کې خپریږی او له حاد شکل څخه مزمن شکل ته پراختیا مومی.

د سل د ناروغی د تداوۍ لپاره د اقلیمی تداوۍ، د لمر وړانګو په واسط تداوۍ Khiliotherapy د اقلیمی Climatotherapy او د طبی بوټو له خلاصه وو څخه کار آخیست. او د دې ناروغی د وقایې په خاطر د حفظ الصحی رعایت یې توصیه کاوه.

د ابن سینا ډیر ستر کار د طب د علومو قانون دی چې له ۳۰ کرتو زیات چاپ شویدی او د یوه کتاب په حیث تر اتلسمی پیړۍ پوری د طبیبانو او درمل جوړونکو د پاره اساسی لاربښود و. نوموړی د سمی موادو او ضد

---

۱- پوهندوی دوکتور محمد نادر هادی او پوهنوال دوکتور عبدالحمید رحیمی، جراحی عمومی، سال ۱۳۶۴ ص-۳

۲- پوهندوی دوکتور محمد انور ترابی، اندیشمندان و دانشمندان علوم طب، سال ۱۳۸۵ چاپ هرات

سمی موادو په متعلق پراخ کارونه تر سره کړی دی او د خالصو اوبو استحصالول یې کشف کړی دی.

د ستر ابن سینا په هکله زیاتو پوهانو خپلی نظر یې ابراز کړی دی چې په دې اثر کې په لنډ ډول شرح کیږي:

«ابن سینا یو ساده شخص و چې پلار یې د نوح بن منصور په زمانه کې د بلخ څخه بخارا ته ولاړ او دنده یې د مالیاتو راټول و. ابن سینا په ماشوم توب او ځلمیتوب کې د پرمختګ ټولو امکاناتو څخه محروم و، سره د ټولو مشکلاتو او موانعو چې د هغه په مخ کې پراته وو ډیر ژر د علم او پوهې هغه درجې ته ورسید چې نه یواځې د ناحیې حکمران توجه یې ځان ته جلب کړه بلکې هر چیرته چې به لاړ څو ورځی به تیرې نه وې چې د هغه لوړ مقام پادشاهانو او حکمرانانو ته مکشوف شی او د احترام او اکرام وړ وګرځی. د نوموړی عمر سره د دې چې شپیتو کلو ته ونه رسید، خو هغه کتابونه چې ده لیکلی دی ډیر کلونه یې اروپا خپل نفوذ لاندې وساتله»[1].

دانته پخپل کتاب بهشت کې لیکلی چې ابن سینا عالی هوش او ذکاوت درلود او وایي چې نوموړی د سقراط او جالینوس په منځ کې قرار لری.

سکالیجر ابن سینا د جالینوس سره جوخت بللی او په فلسفه کې د جالینوس څخه لوړ ارزیابی کړی دی.

ویلیام هاروی شپږ سوه کاله د هغه له مرګ څخه وروسته خپل دوست او بری ته لیکي: «که غواړی څه شی زده کړی لاړشه د پوهنې د سرچینو څخه ګټه واخله او د ابن سینا، سیسرو او ارسطو کتابونه ولوله»[2].

ابو فرج بن عبری وایي «د قانون د کتاب تنظیم او انشأ څخه مخکې د طب د علومو ټول عاشقان او د دی رشتی زده کوونکی د علی بن عباس مجوسی اهوازی کامل الصناعه کتاب څخه استفاده کوله، خو د قانون د نشر څخه وروسته کامل الصناعه په کلی توګه څنډې ته شو»[3].

داکتر براون لیکی«نن د ابو علی سینا چې په صحیح توګه ووایم ابو علی حسین بن عبدالله بن سینا چې عموماً هغه د شیخ الرئیس په لقب یعنی

---

۱- پوهاند عبدالحی مومنی، تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکاملی آن در افغانستان، ۱۳۸۴ اکادمی علوم، ص-۱۳۹

۲- اثر فوق، ص-۱۳۰

۳- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ۱۹۷۰ ص-۲۸۳

لوی استاد یا د استادانو رئیس یادوی او هم ده ته معلم الثانی یعنی دویم معلم چې وروسته د ارسطو څخه قرار لری صحبت کوم.

د کار مشکل په دې کې دی چې د هغه په وجود کې عربی علم خپل لوړۍ څوکی ته ورسید او ګویا د هغه په جسم کې کاملاً مجسم شو او تجلی یې وکړه. هغه محدود وخت چې په اختیار کې لرم ممکن نه دی چې د هغه آثار په فلسفه او علم کې وشمیرم او یا د هغه د ژوند جزیاتو په برخه کې چې ده پخپله یادداشت کړی او تر یوویشت کلنی پوری چې زمونږ په لاس کې دی او وروسته د هغه دوست او شاګرد ابو عبید جزجانی لیکلی دی، بیان کړم»[۱].

«دا چې ابن سینا څه مقام او فوق العاده د احترام وړ دی د څلورو مقالیو څخه چې په دولسمه میلادی پیړۍ کې تالیف شویدی ... نقل قول کوم ... هر چاته چې د قانون لومړۍ ټوک معلوم وی د طب اصول او د هغه کلیات هیچاته پټ نه پاتی کیږی، ځکه که بقراط او جالینوس ژوندی شی روا ده چې هغه ته د احترام سر ټیټ کړی ...»[۲].

و. ای. کریکوف وایي «ابن سینا د یو سل په حدودو کې علمی آثار منځ ته راوړل چې د بشریت د پوهې ټولی برخی په برکی نیسی. خو د هغه عالی کار د طب او درمل جوړولو کې تمرکز پیدا کړی دی. د قانون کتاب د پنځو برخو څخه تشکیل شوی چې دیرش ځلی چاپ یې تجدید شوی او تر اتلسمی پیړۍ پورې یې خاص اهمیت یې درلود»[۳].

مرحوم غبار لیکی «نوموړی د فلسفی ټولی اجزاوۍ چې دایرة المعارف حکم یې درلود په مختلفو کتابونو کې په ډېر روښانه اسلوب او واضح یې تحقیق لاندې قرار ورکړ.

منطق، طبیعیات، ریاضیات او الهیات چې د یونان څخه مأخذ او اسلامی اصولوته نژدی شوی وو، ټول یې پخپلو کتابونو کې په واضحه توګه تر بحث لاندې ونیول او د مختلفو مسایلو لکه منطق، خلقیات، د آیاتو فلسفی

---

۱- ادوارد براون، طب اسلامی، ۱۳۳۷تهران، ص-۷۴
۲- اثر فوق، ص-۷۹-۸۰
۳- پوهاند عبدالحی مومنی، تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکاملی آن در افغانستان، ۱۳۸۴ اکادمی علوم، ص-۱۳۰

تفسیر او هم عرفانی موضوعات یې ولیکل او همدارنګه د پخوانی یونانی پر کتابونو یې شرحی ولیکلی»[1].

پروفیسور پی. بی وچا هندی یوه لیکی: «... زه دلته هغه توانایی نه لرم چې د هغه سهمګیری د طب او ماوراءالطبیعه په برخه کې ارزیابی کړم هغه څه چې په دې لنډه مقاله کې چې د هغه استعداد او د تعجب وړ ذکاوت بیان او یادآوری کړم.

لومړۍ د یادولو وړ ده چې ابن سینا د پنځو- شپږو نابغو په منځ کې قرار لری چې نړۍ تر اوسه لیدلی دی ... ابن سینا یا اویسینا د ټولو نه ښه په اروپا کې پیژندل شوی دی. په یوه لنډه د ربړونو څخه ډکه دوره کې د منطق، ماوراء الطبیعی، طب، الهیات، ریاضیات او د نجوم په علومو کې تبحر حاصل کړ او هغو ته یې انکشاف ورکړ ...

دویم ټکی د یادولو د هغه د هوش او حیرانوونکی استعداد څخه دی چې د باور وړ نه دی.

وروستی غټ ټکی د ابن سینا د نظر وسعت او د اندیشی آزادی ده. د هغه اندیشه واقعاً عالمانه، استعداد یی منظم، تحقیقات یې حقیقی، موثر، معقول او د جرأت څخه برخمن دی ...

هیڅ تکبر او ځان ستاینه یې نه لرلو، بلکې متواضع، با حیا او مؤدب و»[2].

عبدالله محب حیرت لیکی «ابن سینا په لومړۍ ځل نړۍ کې معدنی مواد یې طبقه بندی کړ»[3].

د شوروی اتحاد د علومو اکادمی غړی یاولفسکی په خپله یوه مقاله کې ابن سینا یې لومړنۍ میکروب پیژندونکی معرفی کړی دی. نوموړی داسی خپل نظر اظهار وی «د میکروب د پیژندلو څخه ځو پیړۍ مخکې بو علی اعلام کړی و چې ناروغی د کوچینیو نه لیدونکو حیواناتو چې په اوبو کې موجود دی اشخاصوته سرایت کوي»[4].

---

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، سال ۱۳۴۶ ص-۱۶۴
۲- ژوندون شنبه ۱۵ سنبله ۱۳۵۹ دسامبر ۱۹۸۰ شماره ۲۳-۲۴ سال ۳۲ ص-۹
۳- اثر فوق، ص-۵۲
٤- اثر فوق، ص-۵۲

د ابن سینا د شاگردانو له جملې څخه ابوعبید د نوموړی په ژوند لیک کې لیکلی دی چې «شیخ په ځوانی کې تر ټولو ډیر ښایسته و. کله چې به د جمعی په ورځی جومات ته روان و، د ښار خلک په کوڅو کې سره راټولیدل او یو د بل څخه مخکې کیدل ترڅو د هغه د ښایستوب ننداره وکړي»[1].

د ابن سینا د زرمی کالیزی په ویاړ د ازبکستان مطبوعات په کال ۱۹۷۹ ځنی مطالب یې د قانون د کتاب تر عنوان لاندې داسی لیکلی دی «ابن سینا په خپل طبی دایرة المعارف کې د منځنیو پیړیو طبابت په کمال سره طرح او د زرونو کلونو لرغونو پیړیو علم ته یی تعمیم ورکړ او هغه د نور سطحې ته ورساوه او د طبابت وروستی لاس ته راوړنی باندې حدس وهلی دي»[2].

د نورو پوهانو سره په مقایسه کې د ابن سینا د یوی ارجوزی په پوښ کې داسی لیکل شوی دي: «طبابت معدوم و او بقراط هغه د عدم څخه منځ ته راوړ، وروسته مړو جالینوس هغه ژوندی کړ، وروسته بیا ړوند شو او حنین بن اسحق هغه بینا کړ، وروسته په ښارونو کې تیت او پراګنده شو او محمد بن ذکریای رازی هغه را ټول کړ».

علامه قطب الدین شیرازی وایي «باید وویل شی چې طبابت ناقص وو او ابن سینا هغه تکمیل کړ».

**ابن صلاح:**

نجم الدین ابو الفتوح احمد بن احمد په حکمیه او طبی علومو کې هوښیار و. نوموړی دوه اثره لری چې یو یې فی الشکل الرابع من اشکال القیاس مقاله او بل یې فی الفوذ الاصغر دی. نوموړی په ۵۴۰هـ کې مړ شوی دی.

**ابن طبیب** (۵۱۵-۶۲۷هـ):

مهذب الدین عبدالرحمن بن علی په دمشق کې د اطباو رئیس و. په طبابت کې ښه وارد و. دوه تالیفونه لری چې یو یې اختصار الحاوی او بله مقاله یې فی الاستفراغ ده.

---

۱- اثر فوق، ص-۵۲
۲- اثر فوق، ص-۵۲

**ابن عین زرمي:**

موفق الدین ابو نصر عدنان بن نصر د عین زربی له خلکو چې د شام نواحیو پوری اړه لری، څخه دی. د الکافی فی الطب کتاب چې په پاریس او اکسفورد کې موجود دی په ۵۱۰هـ کې په قاهره کې د هغه د تالیف څخه فارغ شو. یوه مقاله د سیاست په برخه کی، یو کتاب د منطق په مورد کې او څو طبی کتابونه په طب کې لرل. نوموړی په کال ۵۴۲ هـ ق کې وفات شوی دی.

**ابن اللباد** (۵۵۵-۶۲۹هـ):

موفق الدین عبدالطیف د یوسف زوی دی. په طب کې برلاسی و چې په بغداد کې زیږیدلی او هملته مړ شوی دی. د هغه تالیفات د ۷۵ په حدودو کې دی چې اکثریت رسالی او کتابونه یې د طب په هکله وو.

**ابن اللبودی:**

شمس الدین ابو عبدالله محمد د عبدان زوی چې د اسلام له مشهورو اطباو څخه دی. په طبابت کې ډیر ماهر او پوه و. په ۶۲۱هـ د ۵۱ کلونو په عمر وفات شو. د هغه تالیفات الرایی المعتبر فی معرفت القضاو القدر، د المخلص لابن الخطیب کتاب شرح چې د مفاصلو د خلعی یوه رساله وه، او د المسایل الحنین بن اسحاق کتاب شرح او نور دی.

**ابن اللبودی:**

د پورتنی ابن اللبودی زوی دی. په طب او نورو علومو کې نسبت پلار ته ممتاز و. په حلب کې زیږیدلي او په وړو کتوب کې له خپل پلار سره دمشق ته تللی او د علومو او فنونو طلب یې وکړ. تالیفات یی ۲۱ ته رسیږی چې اکثریت یې طب پوری اړه لری.

**ابن المارستانیه:**

ابوبکر عبدالله د علی زوی پوه طبیب و. د بغداد د عضدی په روغتون کې مدیر او سر طبیب و. د بغداد تاریخ چې ناقص پاتی شوی د دیوان الاسلام الاعظم په نوم یاد شوی او د عضدی روغتون تاریخ یې هم لیکلی دی.

**ابن ماسویه:**

ابو ذکریا یوحنا (یحیٰ) نصرانی طبیب و. پلار یې د جندی شاپور په ښار کې عطاری کوله. په طب کې د نوموړی استاد جبرئیل بن بختیشوع دی چې وروسته د مامون خاص طبیب شو او تر ۲۴۳هـ چې د مړینی کال یې دی په دې مقام کې د مامون د طبیب په توګه و. د هغه له شاګردانو څخه یو هم حنین بن اسحاق دی چې د النوا دارالطبیه کتاب یې د هغه په نوم لیکلی دی.

ابن ماسویه څو نوری رسالې هم لری چې ابن اصیبعه په خپل کتاب کې د هغو څخه یادونه کړې ده. تالیفات یې د ۲۳ عنوانو څخه زیات دی چې یوازی د البرهان کتاب یې ۳۰ ټوکه دی.

د ماسویه زوی میخائیل په طب کې د یونانی لاره تعقیب کړ. مامون د هغه قدردانی کاوه او هغه درمل چې د میخائیل له خوا تهیه شوی نه و، نه یې خوړ.

**ابن المجوس:**

علی بن عباس مجوسی اصلاً ایرانی دی او مشهور طبیب و. یو کتاب یې کامل الصناعه یا کناش ملکی دی چې د فناخسرو او عضد الدوله دیلمی ته یې ولیکه چې د هغه د شهرت باعث وګرځید.

**ابن مسکویه:**

ابو علی احمد د محمد زوی او د یعقوب لمسی دی. نوموړی لومړۍ فلسفه، طب او کیمیا ته متوجه شو او وروسته د تاریخ په باره کې یو کتاب ولیکل چې تجارت الامم نومیږی. ابن قفطی د هغه تالیفات یې په طب کې لیکلی دی.

**ابن المیسحی:**

ابو نصر سعید د ابی الخیر زوی مشهور طبیب و. د عباسی خلیفه ناصر الدین اله په نزد د احترام وړ و. د طب په فن کې دوه کتابونه یعنی الاقتضاب علی طریق المسفله والجواب او انتخاب الاقتضایی لیکلی دی پلار یې ابو الخیر بن عیسیٰ ابن المیسحی د لایقو طبیبانو له جملی څخه و. د ناصر الدین اله په زمانه کې چې سل کلن و په ۶۰۸هـ کې مړ شوی دی.

**ابن ربن طبری:**

ابو الحسن علی بن ربن طبری د هجری دویمی پیړۍ د وروستیو او دریمی پیړۍ په لومړۍ نیمايي کې ډېر عالیقدر او مشهور طبیب و.

د هغه د مهمو آثارو څخه فردوس الحکمه دی. هغه روش چې په دې کتاب په کار وړل شوی ډېر منطقی دی او وروسته ستر پوهان لکه ابن سینا هم د دغه روش څخه ګټه اخستی او په کار یې وړی دی. ابن ربن طبری د طب او درمل جوړولو په برخه کې نور کتابونه هم لیکلی دی چې د هغو له جملی څخه د حفظ الصحی کتاب، الدین و الدوله کتاب ته اشاره کیږی. نوموړی د اسلامی نامتو طبیبانو په ډله کې حسابیږی.

**ابن مطران:**

موفق الدین ابو نصر اسعد بن ابی الفتاح الیاس او د جرجیس لمسی دی. پلار یې نصرانی طبیب و. په دمشق کې زیږیدلی او د مهذب الدین نقاش څخه طب زده کړی دی او د سلطان صلاح الدین ایوبی په خدمت کې قرار درلود. ډېر تالیفات لری چې د هغو له جملې څخه کتاب ادویه مفرده، المقاله النجمیه کتاب دی. د عامی روغتیا (روغتیا، سلامتی) په هکله او بستان الاطبا کتاب د ده له تالیفاتو څخه دی.

**ابن مندویه:**

ابو علی احمد د عبدالرحمن اصفهانی زوی دی. د طب په ساحه کې ډېر کار یی کړی دی. آثار او زیاد کتابونه یې د طب په برخه کې لیکلی دی. چې عبارت دی له کناش، المدخل فی الطب، الجامع المختصر من علم الطب المنبعث، کتاب فی الشراب، کتاب الاطعمه و الاشربه، نهایت الاختصار الاسفی چې القانون الصغیر په نامه هم یادیږی. برسیره پر دې څلویښت نوری رسالی هم لری چې د طبابت مختلف استقامتونه په هغو کې انعکاس موندلی دی.

**ابن هندو:**

ابو الفرج علی بن حسین د اسلام د مشهورو اطباو څخه و. د عضد الدوله منشی و. په ۴۲۰هـ کې په جرجان کې وفات شوی دی. د ده تالیفات دری دی. په فلسفه، طبیعی علومو، شعر، انشأ او کتابت کې لوی لاس درلود

**ابن هیثم:**

ابن هیثم د منځنیو پیړیو لاتینی آثارو کې د اونتان Aventan، اوناتهان Avennathan او زیات په الهازن Alhazen معروف دی او په بصره کې دنیا ته راغلی دی او په فزیک، ریاضی، نجوم او طب خصوصاً د سترګو په طب کې ډیر شهرت درلود.

نوموړی په خپله مقاله (علوم الاوایل) کې خپل آثار ۷۳ رسالې ښودلي دي. چې د هغو له جملې څخه ۴۴ په طبیعیات، طبابت او الهیات، ۲۵ په ریاضیاتو کې او یو اثر د ابتدایه علومو په برخه کې دی.

د هغه علم المناظر کتاب د منځنیو پیړیو د نور پیژندنی په برخه کې ډیر ښه اثر دی.

**ابن طفیل** (۴۹۴-۵۸۱هـ.ق):

ابوبکر محمد ابن طفیل اسپانیایی مسلمان طبیب، فیلسوف او ادیب و چې په مراکش کې مړ شوی دی. هغه د مراکش سلطان ابو یعقوب یوسف ابن عبدالمومن طبیب و. نوموړی د الهی او طبیعی علومو تصنیفونه لری او د ځان پیژندنی په برخه کې رساله یې لیکی ده.

**ابوبکرمحمد بن ذکریای رازی:**




د هغې زمانې د طبیبانو سره یوازی یو شخص د ابن سینا سره مقایسه کیدلای شی چې هغه هم محمد بن ذکریای رازی دی. دا عالم په مختلفو کتابونو کې د ابن ذکریا، ابوبکر رازی په نومونو نومول شویدی. اعرابو ورته الرازی او منځنیو پیړیو لاتینو مولفانو ورته Razes «رازیز» ویلی دی.

رازی چې په جالینوس العرب باندې هم ملقب و، په کال ۸۶۴ م کې په ری کې وزیږید او ځنی مولفان یې د زیږیدنی نیټه د۸۶۵ م د اګست ۲۷ بولی. او وفات یې په ۹۲۵ م کې دی. نوموړی د ۱۱۵ کلونو په شاوخوا کې تر ابن سینا څخه د

مخه دنیا ته راغلی دی. رازی فیلسوف، طبیب، په کیمیا او طبیعی کې یو متبحر عالم او په فلسفه کې د بلخی مشهور فیلسوف ابو زید احمدبن سهل شاګرد و.

د رازی علاقه طب په نسبت هغه وخت جلب شوه چې د ۳۰ کلنۍ د رشد عمر ته رسیدلی و. په دې وخت کې یې بغداد ته یو سفر وکړ او هلته ورته ځنی واقعی ور پیښې شوې چې د ده د ژوندانه مسیرته یی بیخی بدلون ورکړ، پدې ترتیب چې یوه ورځ یوازی د کنجکاوی له مخې د مقتدریه روغتون کتلوته ولاړ او هلته دیو بوډا درمل جوړونکی سره د خبروکولو وروسته د دی علم سره یې سخته مینه پیدا شوه اوهغه یې ډیر په زړه پوری علم وموند. بله ورځ بیا هلته ولاړ او اتفاقاً له یو طبیب سره مخامخ شو چې د دوه سری انسان جنین یې چې هماغه شیبه کې دنیا ته راغلی و، ده ته وښود. د دی جنین لیدنی په هغو مطلبونو ور زیات شو چې تیره ورځ یې د شراب خانی (درملتون) له سپین ږیری څخه اوریدلی و، نویې پریکونی تصمیم ونیو چې د طبابت په مطالعه لاس پوری کړی او داعلم ترهغی چې ورته ممکنه وی زده کړی.

کیدای شی چې رازی تریو وخته پوری په بغدادکی پاتی شوی وی ترڅو خپل تصمیم ته ادامه ورکړی شی. دا ده چې دطبابت څانګه کې یې ډیر لوی مقام ترلاسه کړ. مګر د ققطی عقیده دا ده چې دی د طبابت زده کړه په جدی ډول په ری کې بن سهل څخه کړی.

کله چې رازی د بغداد څخه راستون شو نو په ری ښار کې د روغتون متولی (رئیس) وټاکل شو.

بیا د دوهم ځل لپاره بغداد ته لاړ اوهلته د مقتدریه د روغتون مشر (رئیس) شو. بالاخره رازی د بغداد د ستر روغتون (یعنی مقتدریه روغتون) مسؤل شو. د ده په شرح حال کې راغلی دی چې زیاترۍ شپې به یې د جالینوس او سقراط د آثارو په مطالعه کولو سهار کېدې.

رازی د عملی کیمیا له پلوه یو بریالی عالم نه و، ده ټول عمر یوازی د هغې لارې په لټون تیر کړ چې څنګه مس (فلزات) په سر وزرو بدل کړای شی، مګر هیڅ نتیجه یې ترلاسه نه شوه. خو د دی ترڅنګه رازی دنظری کیمیا په څانګه کې ډیر زیات ارزښتمن اکتشافات او کارونه سرته رسولی دی. چې بیا وروسته هغه خارق العاده څرګند شواو د دې سبب شو چې داوتلی عالم نړیوال او همیشنی شهرت ترلاسه کړی.

د رازی آثار فلسفه، طب، کیمیا څخه عبارت وو او د ارسطو افلاطون پر آثارو يې د شرحی یو کتاب هم لیکلی و او کتاب يې د فیثاغورث د فلسفی په هکله و. د ده د تالیفاتو شمیر له ۱۳۰ ټوکو څخه زیات و چې ډیر مشهور اثر یی د الحاوی منصوری په طب کې او الفصول کتاب دی .

کله چې درازی آثاروته پام وشی دهغو دفهرست سره مخامخ کیږو، چې دا ډیر پخوانی سند دی او په هغه کې ۱۱۳ مفصل اثار - ۲۸ لنډ آثار لیدل کیږی. پردی علاوه دوۍ منظومۍ هم ورته انتسا بوی او دا اثار یې ورک شوی دی.

«د رازی آثار ۲۰۰ تر ۲۷۱ کتابو او رسالو څخه تشکیل شوی چې په هغو کې مختلفی رشتۍ لکه طبابت، ریاضی، شیمی، طبیعیات، ماوراء الطبیعه، الهیات، منطق او فلسفه شاملی دي»[1] .

په همدې ډول رازی د شری او کوی په باب ارزښتناک کارونه ترسره کړی او په دې برخه کې یې یوه رساله لیکلی ده چې په کراتو مراتو په اروپايي ژبو ژباړی شوی او چاپ شوی ده.

د رازی بل یو مفصل اثر د صفرا د تیږی په باب دی. همدارنګه د قولنج، روماتیزم او نقرس په برخه کې لیکنی لری.

رازی پرته د خپلومفصلو رسالو د طبی کلی مباحثو په باره کې هم آثار لیکلی دی چې شمیر یې ۱۰-۱۲ څخه زیات دی. لکه جامع، کافی، مدخل ملوکی او فاخر څخه یادونه کیدایی شی.

همدارنګه ابی اصیبعه په (عیون الابنافی طبقات الاطبا) کې لیکی چې رازی «لوړ فطرت در لود ، تیزهوش وو عبارتونه یی له ښیکنو ډک و، مهارت یې زیات او نظریې د طب په صنعت او دهغه په مباحثو کې پیاوړی و.

د ابوریحان البیرونی په کتاب کې چې د سیدحسن برنی له خوا لیکل شوی د ابوبکر ذکریا رازی په هکله لیکی «چې د اسلامی طبیبانو په جمله کې یو وتلی شخص و او د درمل جوړولو او طبابت په فن کې یې د دوو سوو لویو او وړو کتابونو په شاو خواکی لیکلی دی، چې د هغه څو آثاره تر مونږه هم را رسیدلی دي».

۱- پوهندوی دوکتور محمد انور ترابی، طب در گسترده تاریخ، ۱۳۸۵ – ص-۱۴۰

د دوو پوهانو (رازی، ابن سينا) په هکله بايد وويل شی که چيرته رازی د کار اصالت په عملی طب کې دی، همدا خصوصيت د نظری طب په باره کې د ابن سينا د پاره ربنتونی دی. دا دواړه متبحر عالمان د جادوګرانو مخالف وو .

### ابوعلی ابن مسکويه:

نوموړی په فلسفه، طب، کيميا او اخلاقو کې د آثارو درلووونکی دی. دې هم فيلسوف اوهم مورخ وو په ۹۶۲ کې وفات شوی دی.

مسکويه په علمی مباحثاتو کې د البيرونی پيروو لکه چې ابن خلدون په تاريخ ليکنی کې له البيرونی څخه پيروی کوله.

### ابوريحان البيروني:

ابوريحان محمد بن احمد بيرونی خوارزمی د هجری څلورمی پيړۍ د وروستيو او پنځمی پيړۍ د لومړينو د رياضی سترعالم و چې په ۳۶۲هـ کې په خوارزم کې وزيږيد او په ۴۴۰هـ کې په غزنی کې وفات شو.

نوموړی د علومو په بيلابيلو برخو کې د مختلفو کتابونو درلودونکی دی چې شميريې ۱۱۳ جلدو ته رسيږی چې مختلف مسايل لکه هيئت، طب، کيميا، حکمت، حساب، فزيکی بحثونه او داسی نورو په باره کې ليکنی کړی دی.

د طبابت له پلوه د البيرونی مشهور کتاب د صيدله «صيدنه» په نوم دی چې د هغه يوه نسخه د عليګړ په مدرسه کې شته دی. دا کتاب د طبابت د لغاتو په باره کې دی چې عثمان الکاشانی تر ۶۰۷ هـ (۱۲۱۱م) وروسته هغه په هندوستان کې ژباړلی دی.

ابوريحان وايي «د صيدنه د کتاب په تاليف کې می د خپلو مشکلاتو د حل کولو په خاطر شيخ ابو حامد بن احمد استهشقی ته مراجعه کوله ځکه چې دی د خپلی زمانی د خپل جنس له ابنا وو څخه د طب د لغت په پوهيدلو کې مستثنی وو».

**ابو الحسن احمد طبری:**

ابوالحسن احمد طبری د څلورمی هـ.ق پیړۍ له طبیبانو څخه دی. د هغه مشهور کتاب (المعالجة البقراطیه) موجود دی. دغه کتاب په لسو برخو چې د مختلفو ناروغیو درملنه پکې شامله ده لیکل شوی دی.

**ابو منصور بخاری:**

د څلورمی هـ.ق د لومړیو او ډیر و مشهورو اطبا و څخه دی. دهغه یو کتاب د (غنی و منی) په نوم دی چې دری مقالو کې تنظیم شویدی.

**ابو لحجاج:**

یوسف بن اسرائیل د اسلامی اطباو له جملی څخه و. دوه ډیر ښه آثار لری چې یو یې د فی ترتیب ادویه اللطیفة رساله او بله یې شرح الفصول البقراط دی.

**ابو حرب غزنوی:**

د غزنویانو د پنځمی پیړۍ مشهور طبیب دی. ځینی د ده نوم ابو حارث هم لیکلی دی. ابوحرب د غزنویانو په زمانه کې یو تن له طبیبانو څخه و او هغه وخت چې سلطان مسعود ابن سلطان محمود د مزمنی تبی په ناروغتیا باندې اخته و بیا د دغه پوه او حاذق طبیب له خوا معالجه شو. د ده شهرت خورا ډیر لوړ شو.

د ده په باره کې د مطرح الانظار مولف دا راز لیکی: چې ده د سلطان مسعود غزنوی په نامه حفظ الصحی په باره کې یو کتاب تالیف کړی دی.

**ابو البرکات بن القفاعی:**

یو مشهور طبیب و چې خلیفه الموفق بامرالله ده ته د ابوالبرکات لقب ورکړی دی. ده د سترګو د ناروغیو په علاج کې تخصص درلود او په دې

شق کې د خپلې زمانی د فضلاونه حسابیدلو. ده په مصر کې د ملک عزیز بن ناصر په دربار کې خدمت کړی او په ۵۹۸هـ کال په قاهره کې مړ شو.

**ابوبکر بن البدر:**

د اومی هجری پیړۍ د مشهورو طبیبانو څخه دی. خاص بیا د بیطاری په فن کې یې پوره مهارت درلود. په مصر کې د ملک ناصر په خدمت کې داخل شو او یو کتاب یی د کامل الصناعتین په نامه یې د بیطاری په فن کې دی د دوو فصلونو اولسو مقالونه مرکب دی، ولیکل.

**ابوالحسن بصری:**

محمد بن علی یو تن د اسلامی له مشهورو اطباو او متکلمینو څخه و. په بصره کې زیږ یدلی او په بغداد کې یې استوګنه غوره کړې وه او بیایې په تدریس پیل وکړ اوپه ۴۳۶هـ کال هملته مړ شو. د ده مهم تالیفات څلور دی خو نور تالیفات هم لری.

**ابوالحسن بن هبل:**

علی ابن احمد بن هبل یو تن د بغداد د مشهورو طبیبانو او حکیمانو څخه دی. زیږید نه او نشئت یې په بغداد کې شویدی. د ده اثر په طب کې یو کتاب دی چې څلور ټوکه لری او د المختار په نامه یادیږی. په ۶۱۰هـ کال د ۹۵ کلو په عمر وفات شوی دی.

**ابوالحکم المغربی:**

عبید اله او وایی عبداله بن المظفر بن عبداله بن محمد باهلی مغربی اندلسی عالم او ادیب و. دی پوهاند په طب او هندسه کې هم مهارت درلود .

ده دلته د سلطان محمود په معسکرو لشکرګاه کې یو سیار درملتون پرانیست چې د دغه درملتون سامان به د څلویښتو او ښانو په ذریعه لیږد یدلو او دی یې طبیب و. وروسته له څو مودی دمشق ته راغی او دلته یې د خپل ژوند په اخیر کې د عطاری دوکان پرانیست چې تر مرګه پوری یې په دمشق کې طبابت کاوه .

ابوالحکم په ۵۴۹هـ کال په دمشق کې مړ شو. دی د اندلس په مرسیه کې په ۴۸۶هـ کال زو کړی. ځینې وایي نوموړی په اصل کې مریې و او په یمن کې زو کړی. د معرفت البیت په نامه یوه ارجوزه لري .

**ابوالخیر هبت الله نصراني:**

نوموړی د صاعد بن هبة الله طبیب ورور دی. او هغه دواړه وروڼه په ابن مسیحی مشهور دی. د ده له آثارو څخه الافتضاب دی چې په هغه کې یې دقانون کلیات خلاصه کړی دی. وروسته هغه لامختصر کړی دی او په هغه یې د الافتضاب نوم کیښود. د شپږمې پیړۍ په آخرو وختو کې یې ژوند کاوه.

**ابوسلیمان:**

داود بن ابن المنی د هجری شپږمې پیړۍ یوتن له مشهورو طبیبانو څخه دی. په اصل کې نصرانی مذهب اوځای یې په قدس کې و.

د ده زامن چې ابوسعید، ابوشاکر، ابونصر او ابوالفضل نومیدل هم له مشهورو طبیبانو څخه وو. دوی دا یوبیه پاچایانو په مخ کې ډیر قدر او عزت درلودل.

**ابوالصلت:**

ابولصلت امیه بن عبدالعزیز یو تن د اسلام له حکماو او مشهورو اطباو څخه دی. د اندلس د دانیه په کلی کې زیږ یدلی دی او په اشبیلیه کې یې خپل تحصیلات کمال ته رسولی دی. نوموړی په ۵۲۹هـ کې وفات شوی دی. د ده یو لس آثار ثبت دی چې په طب او نورو علوموکی لیکل شویدی.

**ابوطاهر بن البرحشی:**

موفق الدین احمد بن محمد یوتن د اسلام له مشهورو طبیبانو څخه و او د ابن البرحشی په لقب یې شهرت موندلی دی. نوموړی په اصل کې د واسط دی. او د طب په علمی جنبوکی او همدا راز په حکمیه فنونو کې یې

خورا تام او بشپړ مهارت درلود. د خلیفه مستر شد باالله په زمانه کې یې ژوند کاوه او بیا په ۵۶۰هـ کال کې وفات شویدی.

**ابوالعباس سرخشی:**

احمد بن مروان د هرات له نامتو طبیبانو څخه و او د ادب النفس کتاب یې چې د ده له مولفانو څخه دی دالمعتصد عباسی خلیفه په نامه تالیف کړی دی. په ۲۸۶هـ کال مړ شوی دی.

**ابوعثمان دمشقی:**

سعید بن یعقوب د بغداد له معروفو طبیبانو څخه و. د علی بن عیسیٰ وزیر په خدمت بوخت و. دبغداد په روغتون کې چې دنوموړی وزیر له خوا تاسیس شوی و د مدیر په حیث مقرر شو. همدا شان د بغداد، مکی مکرمی او مدینی منوری ټول روغتونونه د ده تر نظارت لاندې و. په عربی ژبه یې ځنی کتابونه او څه نور آثار ترجمه کړی. د جالینوس له آثارو څخه هغه مادی چې اخلاقو پوری اړه درلودلې راغونډی او کتاب یی تری ترتیب کړ. همدغسی د نفس په باره کې یوبل اثر لری.

**ابوعلی بن زرعه:**

عیسی بن اسحاق یو تن له مشهورو اطبا و څخه و. زیات شمیر د طب کتابونه یې په عربی ترجمه کړی دی. په ۴۴۸هـ کال کې وفات شوی دی. د ده تالیفات شیر بنودل شوی او پرته له دغو تالیفاتو څخه ځنی نورې رسالې او ادبیه مقالې هم لری. نوموړی نصرانی دین درلود.

**ابوالفدا:**

اسماعیل بن علی بن محمود بن عمر شاهنشاه بن ایوب عمادالدین ایوبی د حمات امیر و. په ۶۷۲هـ کال په دمشق کې زیږ یدلی دی او د مصر له ایوبی کهول څخه دی. په فلسفه، طب او د هئیت په علومو کې یې هم خورا ښه معلومات در لود. په طب کې د الکناش او د الموازنی د کتابونو نسبت ده ته شوی دی.

**ابوالفرج ابن طيب:**

عبداله عراقي يو تن له مشهورو حکما و څخه دی. په منطق او حکمت او نورو طبيعيه علومو او طب کې يې ښه مهارت در لود. د افغانستان له فيلسوف ابن سينا سره معاصر و. د ده د طب د کتابونو به ابن سينا حکيم خورا ډير تقدير کاوه په ۴۳۵هـ کال کې وفات شوی دی.

نوموړی د عضدی روغتون له اطبا و څخه و. هلته بر سيره پر طبابت د طب د فن تدريس يې هم کاوه. اوله خپلی تدريس څخه يی مشهور اطبا لکه ابن بطلان غوندی اشخاص را وايستل.

نوموړی د ارسطو، بقراط او جالينوس پر کتابونو باندې مفصلی شرحی ليکلی دی مهم آثار يې ۳۶ ښودل شوی دی.

**ابوالفرج بن القف:**

امين الدوله بن موفق الدين يعقوب يو تن د عربو له مشهورو طبيبانو څخه و. نصرانی دين يې در لود. په ۶۳۰هـ کال په کرک کې زيږ يدلی دی. ده له ابن ابی اصيبعه او نورو مشهورو طبيبانو څخه د طب او نورو علومو تحصيل کړی دی. په دمشق او ځينو نورو ښار ونو کې په طبابت بوخت و. د ده تاليفات ۹ ښودل شوی او په ۶۸۵هـ کې وفات شويدی.

**ابو قريش عيسی:**

د عباسی مهدی خليفه له طبيبانو څخه و. چې د طب او درملو جوړ ولو په فن کې يې خورا ښه مهارت در لود. په لومړيو وختو کې يې په بغداد کې يو درملتون پرانيست او په دغه وسيله يې خپل ژوند تامیناوه. نوموړی د مهدی له خوا د دربار د طبيبانو په ډله کې شامل کړ شو او د دويم طبيب په حيث يې مقرر کړ. او دجرجيس له مرګ څخه وروسته د طبيبانو رئيس مقرر شو. او د ځينو ناروغيو په تداوۍ کې ځينی لوی موفقيتونه له ده څخه نقل شوی دی، او د ده د عجيبو او غريبو معالجو په باره کې خورا ډير حکايتونه نقل کوی.

### ابو المجد ابن ابی الحکم:

افضل الدوله محمد بن عبداله با هلی د مغرب له مشهورو علما و څخه دی او د مغربی ابن الحکم چې له معروفو او مشهورو علما و څخه و زوی دی. په طب، فلسفه، ریاضی او نورو علومو او موسیقی په فن کې په خپله زمانه کې وتلی او یو غوره سړی و. نوموړی د عادل نورالدین محمود بن زنګی رئیس الاطبا په توګه مقرر شویدی. د لوی روغتون ریاست چې نوموړی پاچا له خوا تاسیس شوی و همدغه سړی ته وسپارل شو. د ۶۵۰ کال په دمشق کې مړ شو.

### ابومنصور موفق هیروی:

موفق بن علی هروی د تاریخی له نظره د درمل پیژند لو لومړی کتاب یې لیکلی دی چې هغه یی په ۹۷۵م کې سر ته رسولی دی. دغه کتاب الابنیه عن حقایق الادویه په نامه یاد یږی چې د هیجا یی حروفو په ترتیب یې په فارسی ژبه لیکلی دی.

ابو منصور هغه سلطان منصور بن نوح سامانی پادشاه ته هدیه کړی دی. په دې کتاب کې ۵۸۵ ډوله درملونه توضیح شوی دی چې دا د هندی، ایرانی، سریانی او یونانی درملو یوه مجموعه ده. یوه خطی نسخه یی په، ویانا کې ساتل کیږی او شاعر اسدی په کال ۱۰۵۵م کې هغه بیالیکلی دی.

ابو منصور هند ته هم تللی دی او هندی طب یې په هغه ځای کې زده او تحصیل کړی دی او د هغه یوه عکسی نسخه د ایران د معارف په وزارت کې موجوده ده.

### ابویحیی مروزی:

د بغداد مشهور طبیب دی. ده د ارسطو د لومړی او دویم انالو طیقا کتابونه تفسیر کړی دی.

### ابی فتح هروی:

د عوفی په قول د ده نوم او کنیت ضیأ الدین عبدالرافع ابن ابی فتح هروی دی. ده په علم لغت او طب کې ښه مهارت در لود. د ژوندانه زمانه

یې د خسرو ملک سلطلن غزنوی په دربار کې تیره کړۍ ده او ښه موفقیت یې در لود.

**احمد بن علی:**

ابن ابراهیم ابن الزبیر الفسانی الا سوانی المصری چې په رشید ملقب او کنیه نوم یې ابو الحسین و. د طب په چارو پوه او د نجوم مقنن و.

**اسحاق بن سلیمان اسرائیلی:**

د ډیرو ښو طبیبانو څخه یو شخص او سر بیره په ډیره پوهه چې طب کې یې در لود یو منطقی او بلیغ عالم او د ښو تصنیفونو او لوړ همت خاوند و.

د امام ابو محمد عبیداله مهدی د افریقا د پاچا خدمت یې د طبابت په فن کې په غاړه واخیست. له سلو کالو یی زیات ژوند وکړ او متأهل نشو.

**اسحاق ابن سلیمان اسرائیلی:**

ابو یعقوب اسحاق په ۳۲۰هـ ق کې مړ شوی دی. یهودی فیلسوف او طبیب و چې په مصر کې زیږ یدلی دی. دوه سوه کاله یې عمر کړی او لومړنی سړی و چې یهودیان یې د یونان علم او فلسفی ته جلب کړ. د هغه آثار په مختلفو ژبو ترجمه شوی دی.

**امام فخرالدین رازی:**

امام فخرالدین رازی په (د روژی د میاشتی په ۲۵ د هـ.ق ۵۴۴) کال کې سترګې نړۍ ته بیرته کړی او په ۶۰۶هـ.ق کې یې له جهانه سترګی پټی کړی دی.

نوموړی د مطالعاتو په ترڅ کې د طب علم هم زده کړی دی او په دې ځانګه کې یې پوره شهرت در لود.

د ده یو کتاب چې «د طب مسایل» تر عنوان لاندې دی او دوهم کتاب یې چې ندی تمام شوی «الجامع الکبیرفی الطب» عنوان لری. دریم

کتاب یې چې هغه هم ندی تمام شوی «التشریح من الراس الی الحلق» نومیږی. او بل کتاب یې د نبض په باره کې دی.

نومړی د کیمیا په څانګه کې هم شغل در لوده مګر په دې برخه کې ګټوری نتیجی ته نه دی رسیدلی.

ققطی ویلی دی «پر ده اعتراض شویدی چې ده د کیمیا د کار شوق کړی او په دې کې یې زیاتی پیسی هم لګولی دی خو څه ګټه یې تر لاسه نه کړه»[1].

ابو عبداله محمد فخر الدین رازی په کال ۱۱۴۹م د ری په ښار کې دنیا ته راغلی دی او په ۱۲۰۹ م په شپیته کلنی وفات شویدی.

## اسحاق بن عمران (طبیب):

اسحاق بن عمران یو مشهور طبیب او په بغداد کې زیږیدلی دی. دی ډیر پوه طبیب و او په تشخیص او درملنه کې یې قوی لاس در لود. او نزهة النفس کتاب او دالمالیخولیا، فصد و نبض یې داسی آثار یې تالیف کړ چې سابقه یې نه در لودله. د ده نور مولفات د ادویه مفر ده، کتاب عنصر و التمام فی الطب، په استسقا او د هغو شیانو په توضیح کې چې نورو هغه د ناروغیو د شفا سبب ګڼلی مقالې دی. همدارنګه نور شپږ تالیفات هم لری. دی د دریمی پیړۍ په وروستیو کې وفات شویدی. نوموړی د امیر زیاة اله له خوا بې موجبه په بې رحمۍ سره وینه یی استیل شوی او په دار یې زوړند کړی دی.

## انطاکی داوود بن عمر الضریر:

د عربو د علما و او د طب او ادب د پوهانو څخه یو تن و چې په انطاکیه کې زیږیږیدلی دی. څرنګه چې په سترګو ړوند و نو په ضریر ملقب و. د خپلې زمانې رئیس الاطبا شو.

---

۱- علی محمد حسن العماری، فشرده شرح حال و آثار امام فخرالدین رازی، ۱۳۶۷، ص- ۶۷-۶۰

په پای کې مکې ته لاړ او تقریباً وروسته له یو کال څخه په ۱۰۰۸-۱۰۰۹م کال کې هلته وفات شو. تقریباً د دولسو په حدود و کې مهم تالیفات لری.

**اوحدالزمان:**

ابو البرکات هبة اله بن علی بلدی د عربو نامتو طبیبانو څخه و. په بغداد کې زیږیدلی او عباسی خلیفه مستنجد باله په خدمت کې په طبابت بوخت و. په طبابت کې ښه مهارت در لود او ښې مجربې دواګانې به یې خلکو ته ور کولې. ډیر تالیفات لری چې ډیر مشهور یې شپږ ښودلې شوی دی.

**ایلاقی:**

محمد بن یوسف ایلاقی په شرف الزمان معروف دی. هغه طبیب و چې معروف کتابونه یې دری ښودل شوی دی.

**بختیشوع:**

په سریانی کې بخت عبد ته وایی او یشوع د حضرت عیسيٰ نوم دی. نو د دی کلمی معنی عبدالمسیح دی. بختیشوع د مسیحی کورنۍ نوم دی چې اصلاً شام او جندی یا پور یا کند شاپور (جندی شاپور) کې او سیدل. له دې کورنۍ څخه ډیر طبیبان را ووتل. دا نوم د هغو په واسطه چې ذکر یې په روښانه خط د اسلام د تمدن په تاریخ کې راغلی دی شهرت وموند.

په نهمه ، لسمه او یولسمه پیړۍ کې له دې کورنۍ څخه په طب کې اوه تنه نامتو کسان پیدا شول او ټول دبغداد په دار الخلافه کې مشهور شول. دا اوه تنه عبارت دی له جرجیس بن بختیشوع، بختیشوع بن جرجیس، جبرائیل بن بختیشوع، بختیشوع ابن جبرائیل، عبداله ابن بختیشوع، جبرائیل ابن عبداله او عبیداله بن جبرائیل. د دغه کورنۍ غړي طبابت یې له منځنۍ آسیا (جندی شاپور) څخه اعرابو ته او له هغه ځایه اروپا ته انتقال کړی دی.

**ربیع:**

ربیع ابن احمد اخوینی یا اجوینی بخاری چې د ابوبکر محمد بن ذکریای رازی شاګرد دی نوموړی د (هدایت المتعلمین فی الطب) کتاب مولف دی.

**بدرالدین:**

حکیم بدرالدین مظفر ابن قاضی مجدالدین عبدالرحمن ابن ابراهیم د اومی پیړۍ له طبیبانو څخه دی. دې په دمشق کې لوی شوی او هلته یې د طب فن ته ملاتړلی او دا فن یی له حکیم مهذب الدین عبدالرحیم بن علی څخه زده کړی دی او ژر تر ژره یې عملی او نظری تجربې په طب کې حاصل کړل. خپل وختونه به یې د طبی کتابونو او فلسفی کتابونو په لوست کې تیرول او پر بله پسی دخپل استاد حکیم مهذب الدین ملازم و.

بدرالدین د رقبه په روغتون کې د طبابت په شغل بوخت شو. بدرالدین د ډیر علم خاوند و. له همدی کبله یې څو موده له طبابت څخه لاس واخسیت او د فقی زده کړې ته متوجه شو.

مقالت فی مزاج الرقه، کتاب مفرح النفس او کتاب الملح فی الطب د ده له آثار وو څخه دی.

**ثابت بن قره:**

ثابت ابن سنان ابن ثابت ابن قره صابی حرانی په ابی الحسن باندې مشهور د خپل وخت یو ښه طبیب، مورخ او ادیب و. زیات تالیفات او ترجمې لری چې د ده آثار له سلو ټوکو نه زیات ذکر شوی دی. دهغه تخصص د طب په څانګه کې دی خو په نورو علومو کې زیاتی ترجمې لری.

دهغه ذخیره کتاب ډیر شهرت لری چې قفطی او ابن اصیبعه دهغه معجزی په طبابت کې ډیر مطالب لیکلی دی. دغه کتاب ۳۱ بابونه لری.

د ده یو بل کتاب هم د شام او مصر د خبرونو په باره کې په یو جلد کتاب کې لیکل شوی دی. دمختصر الدول د کتاب مولف وایي چې ثابت په طبابت باندې ډیر ښه پوهیدلو او د بغداد روغتون رئیس و.

داکتر لوکرک د ثابت بن سنان په باره کې وايي چې ده طبی روغتون کې د بقراط او جالینوس د ښوونو په نسبت تدریس کاوه. دهغه یوه لیکنه د یادونی وړ ده چې لیکی.

د زړو انسانانو لپاره تر ټولو مضر د ښه آشپز او ښایسته ملګری لرل دی. ځکه لومړنۍ هغه ډیر خوراک ته هڅوی چې عاقبت ناروغی منځ ته راوړی او دویم انسان عشرت ته را کاږی چې په نتیجه کې زوړ توب منځ ته را ولی. پس پوه شه چې د جسم سلامتی لړه غذا پوری تړلی ده او د روح سلامتی د ګناهونو څخه لری والی پوری ارتباط لری. د زړه ښادی د تشویش څخه په لری والی کې مینځ ته راځی او د ژبی د استراحت د باطلو خبرونه کولو نه مینځ ته راځی.

**ثقفی:**

حارث بن کدة بن عمر بن علاج ثقفی د عربو مشهور طبیب د ثقفی له قبیلی څخه دی. حارث د طبابت د فن د زده کولو لپاره ایران کې واوسید او حاذق طبیب په حیث مشهور او د ډیر مال خاوند شو.

**جبرائیل:**

جبرائیل د بختیشوع زوی، ګندیشاپور اوسیدونکی، د شامی نسطوری مسیحی کورنۍ څخه د عباسی زمانی مشهور طبیب دی.

جبرائیل په ۲۱۳هـ او په ۸۲۸م کال کې وفات شو او په مدائن په دیر سرجیوس کې ښخ شو. د ده تالیفات عبارت دی له: په خوراک او څکاک کې یوه رساله چې هغه یې د مامون دپاره و لیکله، د منطق په صناعت کې المدخل کتاب، په طب او کناشه کې یوه لنډه رساله، د بخورو په صنعت کې یو کتاب چې د مامون په امر یې تالیف کړ.

**جرائیل بن عبداله:**

جبرائیل بن عبداله بن بختیشوع چې یو ماهر طبیب و. نوموړی په یو ځای کې پاتی نشو ځکه د امیرانو او پاچایانو په درملنه کې بوخت و. معهد الدوله هغه یې اسلامی دایرة العارف وباله. نوموړی په ۳۹۶هـ د رجب د میاشتی په اتمه وفات شو.

**جرجانی (سید اسمعیل جرجانی):**

ابوالفتح یا ابو الفضایل زین الدین یا شرف الدین اسمعیل بن حسین بن محمد بن احمد لحسینی الجرجانی د اسلام له مشهورو طبیبانو څخه و. په ۴۳۴هـ کې زیږ یدلی او په ۵۳۰هـ کې مړ شوی دی.

دې په طب کې د بن ابی صادق عبدالرحمن بن علی بن احمد بن ابی صادق نیشاپوری او د مشهور طبیب ابن سینا شاګرد و. جرجانی د علاوالدین خوارزم شاه دربار کې پوره قدر او عزت در لود. ده په طب کې یو کتاب تالیف او هغه یې خوارزم شاه ته اهدا کړی دی.

نو لدی کبله دغه کتاب خوارزم شاهی ذخیره کڼل کیږی. دغه اثر په ۵۰۴هـ کې لیکل شوی دی چې ۱۴۰۳ مخو نه لری او د ښو کتابو څخه تشکیل شوی چې ۵۷ مقالی او ۱۱۰۷ فصلونه لری. د ده یوه قلمی نسخه په ملی آرشیف کې او بله نسخه یې د انګلستان کمبرج پوهنتون کې موجود ده.

داکتر محمود نجم آبادی لیکلی چې له پورتنی تالیف څخه پرته جرجانی دوه نور طبی تالیفونه لری.

همدارنګه جرجانی په فارسی ژبه اعراض طب، یادګار د درملو په باره کې، د حفظ الصحی په باره کې دی.

**جـــرجیس:**

جرجیس بن بختیشوع د عباسیانو د خلافت د دربار یو مشهور طبیب و. په طبابت کې د ده پوهه او مهارت د ده له معالجو څخه ښه څرګند یږی. د عباسیانو خلیفه منصور یې تداوی کړ چې ډیر شهرت یې پیدا کړ. ابن ندیم وایی چې جرجیس له تالیف او ترجمې سره مینه در لود چې د منصور لپاره یې څو کتابونه له یونانی په عربی ترجمه کړل، همدارنګه یو شمیر کتابونه یې په سریانی ژبه هم تالیف کړل چې له هغې جملې څخه الکناش کتاب یې تر ټولو مشهور دی.

**جیش:**

د دمشقی حسن زوی یو مشهور مترجم او طبیب و چې له یونانی او سریانی څخه یې په عربی ترجمه کوله. د جیش له ترجمو څخه یوه هم په عربی سره د بقراط د عهد ترجمه ده او بل د الماء، و ا لهواء د کتاب تفسیر دی. بر سیره پر دی ۳۶ کتابونه او مقالې لری.

**حاجی پاشا ایدنی:**

د سلطان با یزید عثمانی د دربار طبیب و چې د ایدن په ښار کې زیږ یدلی دی. د مصر په روغتون کې مدیر ټاکل شوی دی او بیرته ایدن ته راغلی او د الشفا کتاب یې د محمد بیګ په نامه ولیکل او هم په طب کې په ترکی ژبه د تسهیل په نامه یو کتاب لری چې درې برخې لری.

**حــرانی:**

احمد د یونس زوی د اندلس د نومیالیو او مشهورو طبیبانو څخه و. ځنی داسی شربتونه او معجونونه یې په ډیر ښه ترتیب ترکیب کاوه چې دعوامو د استفادې وړ وګرځیدل حتی لس تنه درمل جوړوونکی یې استخدام کړل اوپه کار یې و اچول. بیوزلان او ضعیفان یې وړیا معالجه کول او د ناروغیو په تشخیص او علاج کې یې خورا ډیر شهرت موند.

**خویی تو:**

چینایی طبیب خوی تو یا خواتو (۱۱۲-۲۱۲م):

ناروغانو ته یې د بیهوشۍ مواد و څخه په عملیاتو کې ګټه اخیستله. د عملیات څخه مخکې ناروغ د دغو مواد و د خوړلو په اثر خپل احساس له لاسه ور کولو.

**سابـور:**

سابور د ابن سهل زوی چې ۲۵۵هـ.ق کې مړ شوی دی. نومړی د جندی شاپور روغتون په سر کې و. د قرابا دین کتاب او الکبیر کتاب او نور کتابونه له هغه څخه پاتې دی. چې مشهور اثر قرابا دین دی.

**ګوهــری:**

سید صدیق د سید عثمان زوی په ۱۳۰۴هـ ق کال په بلخ کې زیږ یدلی او څه موده یې د زیاتې زده کړې د پاره په مزار شریف کې تیره کړی ده. په طب، فلسفه، حکمت او ادبی علومو کې یې ښه لیاقت موند.

**عبدالرافع هیروی:**

ضیأ الدین عبدالرافع ابن الفتح هیروی د افغانستان د شپږمې پیړۍ د وروستیو وختونو کې ژوند کړی، په طب او لغت کې هم استاد و. دې د جلالیه نومی رسالې مولف دی د غزنوی پاچا خسرو ملک ته یې اهدا کړی دی.

### علی بن ربن طبری:

علی بن ربن طبری د خزر د بحیری د جنوبی سواحلو د یوه ولایت اهل دی. القفطی په (۲۳۱ مخ کې) له ده څخه په لنډه توګه یا دونه کوی او وایي چې: دې یهودی و او کله چې د عباسی خلیفه خدمت ته راغلی اسلام یی قبول کر.

نوموړی په ۸۵۰م (۲۳۶هـ) د خپل معروف اثر چې «فردوس الحکمه» نومیده د طب او طبیبانو د بحثونو په باره کې و په تکمیدلو بریالی شو. دا عالم د محمد بن ذکریای رازی استاد دی. فردوس الحکمه ۵۰۰ مخونه لری په اوو نوعو، ۳۰ مقالو او ۳۶۰ فصلونو، باندې ویشل شوی دی. نوموړی هیپوکرات، ارسطو، جالینوس، یوحینابن ما سویه او حنین بن اسحاق ته اشاره کوی او د هغوی آثار د خپل کتاب د مطالبو مراجع او مأخذ بولی.

د دی کتاب اهمیت له دی کبله دی چې د موجوده لرغوني بشپړ طبی آثارو او د عربو د زمانې له باقیمانده څخه دی.

### علی بن العباس:

د ده اثر کتاب الملکی نومیږی چې د «استفان حکیم» له خوا ترجمه شویدی او میشل دو کاپلا Michael do capella پر هغه شرح لیکلی ده او په ۱۲۵۳م کې په لندن کې چاپ شوی دی.

القفطی (۲۳۲مخ) د ده په خصوص کې لیکلی دي: «... دا اثر یو ډیر لوړ او برجسته اثر دی او یوه ګټوره، سفینه ده چې علم او عمل دواړه یکې را ټول شویدی او ښایسته ډول تنظیم شوی دي».

دې اثر خاص شهرت او محبوبیت وموند او همدارنګه د بوعلی سینا د قانون د تالیف تر وخته پوری دعمومو د مراجعی مواد وو. او قانون د دې سبب شو چې «الملکی کتاب» هیر شی. دغه کتاب د عملی طب له مخی پیاوړی دی او قانون د نظری طب له پلوه غښتلی دی. دهغه عربی متن تقریباً څلور سوه زره لغتونو په شاه خوا کې لری.

شل مقالې چې هره مقاله په څو فصلونو مشتمله شوې ده. د دې عالم توصیی په وروستی فصل په روغتون کې داسی راغلی دي: «هغه چارې چې د دې حرفې په محصل فرض او واجب دی. چې دې باید مرتباً روغتون او خسته خانه ته سر ښکاره کړی او د هغو د اوسیدونکو له وضعی، حالاتو څخه کلکله پاملرنه اومرافبت وکړی.

د طبيب دا حضور او څارنه بايد د طب د ډېرو ماهرو استادانو او پوهانو په ملګرتيا تر سره شي. بايد له ناروغانو څخه د هغوی د حالت په اړوند پوښتنې وکړی. او هغه علايمو چې په هغوی کې بروز کوی د وخت له نظره تير کړی. او په پام کې دی ونيسی چې د دې علايمو په باره کې يې څه لوستلی دی اوله هغو څخه کومه يوه يې د مطلوب بدلون نښه او کومه يوه يې د نامطلوب تغيير علامه ده.

که چيرته دا دستورونه په کارو اچوی په خپل فن کې به لوموړۍ او ممتازۍ درجې ته ورسيږی ځکه هغه څوک چې وغواړی بشپړ طبيب شی په کار دی چې دا دستورو نه په بشپړ ډول رعايت او پخپله د هغه څخه ځان بلد کړی چې په پورتنيو دستورونو کې مې ويلی دی او هيڅکله هغه هير نکړی. که چيرته داسی و کړی نو معالجی يې په بری پای ته رسيږی او خلک پرده باور او د ده په نسبت مساعد نظر نيسی، او دې هم د هغوی محبت ځانته را جليبوی او نيک شهرت تر لاسه کوی او د دې په شرح کې د هغوی د ګټی او استفادی څخه څه شی له لاسه نه ورکوی او پاک خدای ډير ښه پوهيږی».

**عزت مزاری:**

نوم ملا عزت اله بن ايشان طوره بن خواجه خان دی او د مزارشريف په ښارکی زيږ يدلی دی. د عالی زده کړی د پاره بخارا ته لاړ. د حکمت او طبابت له زده کړی نه وروسته خپل هيواد ته راستون شو او په تدريس يې پيل وکړ. په کال ۱۳۲۲هـ.ق کې لدی نيمګړۍ دنيا څخه سترګې پټې کړی.

**قسطا بن لوقا البعلبکی:**

د حنين دلسمی پايی مشهور ترجمان او زياتره اختصاص يی د طب په علم کې و. ده د طب او نورو علومو يو شمير کتابونه له يونانی څخه په عربی ترجمه کړی چې پنځه اثره په بر کې نيسی قسطا پخپله هم په مختلفو علومو کې تاليفونه در لودل چې يو کتاب يې د الفرق بين النفس و الروح دی چې اوس هم شته دی.

**محمد حسين (نور بخش):**

محمد حسين ابن مير قوام الدين په هرات کې طب زده کړ، په طب کې د زياتو نظر يو او اطلاعاتو خاوند دی او د يو لړ ناروغيو نومونه يې هم را وړی دی. د خلاصة التجارب په نامه د يو کتاب مولف دی. نوموړی طب

پوه د خونی اسهال له کبله په ۸۸۰هـ کال وفات شوی دی. ده پخپل کتاب د ډول ډول ناروغیو په برخه کې خصوصاً د توری تبوخلی د شیوع په هکله چې دوه ځلی هرات کې شیوع پیدا کړی او تداوی یې هم ده او هم یو هندی طبیب تجویز کړ.

همدارنګه د سفلیس د ناروغی او درملنې په هکله مفصل معلومات ور کړی دی.

**مهذب الدین:**

دمشقی د سترګو داکتر په ۶۲۸هـ کال کې مړ شوی دی. نوموړی په طب، حکمت، ریاضیاتو، کې ښه لاس در لود او په داکتری کې یې لوړ مقام درلود د دمشق په لوی روغتون کې وټاکل شو. دوه تالیفات لری.

**نصیر الدین طوسی:**

ابو جعفر نصیر الدین محمد ابن حسن ابی بکر د ایران خورا نامتو پوه او عالم دی چې په طوس کې زیږ دیلی دی. نوموړی د طب، اخلاقو، ریاضی، او منطق په علومو کې استاد و او په دی برخه کې ډیر تالیفات لری او وایي چې ۱۳۰ کتابونه او رسالې تالیف کړی دی، چې مشهور یې نهه دی. په کال ۲۷۶هـ.ق کال کې وفات شوی دی.

**نظامی عروضی:**

ابوالحسن نظام الدین احمد ابن عمر ابن سمرقندی چې په نظامی عروضی سره مشهور و. د شپږمی هجری قمری پیړۍ له مشهورو شاعرانو او لیکوالو څخه دی. د ده چهار مقاله نومی تالیف د دری ژبی خورا غوره اثر دی.

نومړی په طب او نجوم کې هم تکړه عالم و او د شپږمی پیړۍ په دوهمه نیمایي کې مړ شوی دی.

**نجیب الدین سمرقندی:**

نجیب الدین ډیر پوه طبیب و چې مشهور اثر یې «الا سباب و المالومات» دی. نوموړی د چنګیز په حمله کې (۶۱۰هـ.ق) چې پر هرات یې وکړ هم په قتل ورسید.

## څلورم څپرکی

## په نویو پیړیو کې د طبابت پرمختګ

د منځنیو پیړیو څخه را وروسته پیړیو ته نویو پیړیو په نامه یادوی چې ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹ او ۲۰ پیړی په بر کې نیسی. ۱۹ او ۲۰ پیړیو ته معاصری پیړۍ (مدرنی پیړۍ) ویل کیږی او په نویو پیړیو کې ۱۵ او ۱۶ پیړیو ته د رنسانس دوری پوری تړی.

د نویو پیړیو یا د پانګوالی د صنعت لومړنی نښانی حتی په ۱۴-۱۵ میلادی پیړیو کې د مدیترانې د بحیری د غاړۍ په ښارونو کې رامنځ ته شوی. خو د پانګوالۍ دورې وده په اروپا کې د فیودالی ټولنې په خیټه کې په ۱۶ میلادی پیړۍ کې پیل شوه.

د مولده نیروګانو د پراختیا او تکامل، د ماشینونو او پیچلی میکانیزم رامنځ ته کیدل د مانوفکتورونو پرځای د فابریکو او کارخانو او د صنعتی ورکشاپونو د ایجادیدلو په اثر د کپیتالیزم د جوړښت د منځ ته راتلو باعث شول.

همدارنګه د اندیشې ازادی، د منځنیو پیړیو د دینی مسایلو اصلاح، د انسانی روابطو پراخوالی، د چاپ اختراع او داسی ډیرو عوامل د علمی طبابت د رشد زمینې برابرې کړې.

د ختیځی ملکونو طب او د هغو تجربی د طبابت د علم په رشد کې ډیره زیاته مرسته وکړه. د ابن سینا آثار د اروپا په پوهنتونونو کې د توجه وړ وګرځیدل او د ۱۸۰۰ تر ۱۸۵۰ میلادی کلونو کې د طب علم په اروپا کې شکل ونیو. په لومړیو کې زیاته توجه ښه پیژندنې او د ناروغیو طبقه بندی وه.

د منځینو پیړیو څخه وروسته طبیبانو د مسلکی (حرفه یي) ډلو تشکیل ته شروع وکړه او د علمی طبابت د اساساتو د پرمختګ سره د خلکو

عمومی عقیده طبابت اړخ ته او د دغې حرفې خاوندانو ته زیات شو. دغه تحول هغه وخت منځ ته راغی چې طبی هئیت نظری پوهې سره مجهز شو چې د حرفی د اقتدار اساس منځ ته راغی او د اطباو لاس رسی دغو اطلاعاتو ته، هغو ته په مسلک کې تسلط او د درملنې لپاره د عمل آزادی ور په برخه کړ. او په تدریج سره دغه امکان پیدا شو چې ناروغ وکولای شی طبیب د غیر طبیب سره فرق کړی. نوی طبابت د لرغونی یونان او د منځنیو پیړیو طبابت سره ځنی ځانګړتیاوی لری. نوی طب تجربی علومو باندې اتکا لری او مسلکی اسقلالیت لری.

نوی طبابت یو وګړنیز سازمان دی، چې طبیب ته ثابت نقش ورکوی او کله چې طبیب خپل علم د ناروغ درملنې ته په کار یوسی، د هغه څخه حمایت کوی.

سره د دې چې د طبابت عمومی زده کړه د بقراط، ابن سینا او ډیرو نورو پواسطه شکل ونیو او د خاص هویت څښتن شو، خو هغه واقعی تحول چې د طبابت په نوی عصر کې لکه د میکروب او واکسین کشفیدل او په خاصه توګه د پاستور علمی فعالیتونه او نور بنیادی اکتشافات ایجاد شول. هغه واقعیتونه چې د طبابت لاس ته راوړنې یې بل ډول کړل او ډیر شیان چې واقعیت تصور کیدل باطل شول، د عمر طول زیاد شو او د ناروغانو جسمی او روانی زیاد دردونه التیام وموند.

د X د وړانګې او د اسکنر Scanner د دستګاوو څخه استفاده د انسان د سلامتی لپاره د اطباو او د طبی تخنیک محققینو توانایي او قدرت زیات شو. په دغه دوره کې د پوهې ډیره زیاته برخه چې د علوم او فنونو پیژندلو کې اهمیت درلود د محققانو له خوا د ناروغیو څخه مخنیوی او درملنه په ډیر سرعت سره حاصل شو. لازم و چې د نورو علومو څخه د طبابت په علم کې د استفادی وړ وګرځی، لازم رشد پیدا کړی، دا ځکه بې له هغو څخه د انسان د بدن پتالوژی پیژندنه غیر ممکن و.

د رنسانس د دوری د پیل سره چې دوه نیمې پیړۍ په حدودو کې دوام وکړ په پنځلسمه پیړۍ کې مانوفکتورونو دستګاوی ایجاد شول چې تولید زیات شو او تجارت رونق ونیو. طولانی مسافرتونه نړۍ شاوخوا کې نوی بازارونه څرګند شول او راکړه ورکړه لیری ځایونو ته شروع شو نوی ځمکې کشف شوی چې د دی له برکته د درملو زیرمې لازیاتې شوی. د چین او هند څخه درمل، تریاک، کافور، صمغ او نباتی درملونه اروپا ته وارد

شول. د امریکا د کشف څخه وروسته د ګنه ګنه پوستکۍ، دالش لرګی، د چلپا ریشه، د کوکا میوه او داسی نور د درملو زیرمې زیاتې شوې.

د پنځلسمی پیړۍ په نیمایي کې د چاپ اختراع د لوستلو لپاره د خلکو او زده کوونکو تعداد زیات شو. کله چې بیزانس تسلط د ترکانو له خوا صورت ونیو د روم علماو او پوهانو دسته جمعی مسافرتونه غرب ته پیل کیړی او د لرغونی یونان او ختیځ تمدن اروپا ته انتقالیږی او د رنسانس یعنی د حیات تجدید په اروپا کې شروع کیږی او د کلیسا په مخالفت سره سره پوهانو نوی کشفیاتو باندې بریالی شول.

په نویو پیړیو کې نوی علوم لکه تحلیلی کیمیا، فیتوشیمی، د دوایی موادو عضوی سنتیز، مکروبیولوژی، شیموتراپی او داسی نور منځ ته راغلل چې پر طبابت یې ژوره اغیزه وکړه.

د ۱۸ پیړۍ په وروستیو کې د هافمان په واسطه د تداوی نوې تیوری د خالصو دوایی موادو د کوچني دوز په واسطه منځ ته راغله، په دې ډول یې د هومیو پاتی اساسی پرنسیب ایجاد کړ یعنی ناروغی د درملو په کم دوز سره تداوی کیدل؛ چې لوړو دوزونو په سالمو اشخاصو باندې مشابه تاثیر غورځاوه.

د پانګولۍ په ظهور سره د کیمیا او فارمسی په وده باندې لوی تاثیر پریوت چې د پانګولۍ په لومړنیو مرحلو کې د درملتونونو پوری مربوطو مسایلو په چټکتیا سره پراختیا وموندله. په دې وخت کې د درملتونونو مطلق اکثریت د هغه عصر په مجهزو کیمیاوی لابراتوارونو سنبال شوی وو.

د درملتون کارمند زیاتره د تجربی خاوند و، درمل جوړوونکی او کیمیا پوهان و او زیاترو پوهانو خپل علمی تحقیقات په درملتونونو کې پیل کړل چې دغه درملتونونه په علمی مرکزونو بدل شول لکه په کال ۱۵۸۴م د فلورانس دلاسکای په درملتون کې د دیلاکروسکا Dellacrusca اکادمی او د پاریس د ژافری په درملتون کې د روګال دوسیانس Rogale des sciences د علومو اکاډمی تاسیس شو.

د فیتوشیمی په وده او تکامل کې د سویدنی درملتون مالک کارل ویلهم شیلی Schelle ۱۷۴۲-۱۷۸۶م ستر کارونه سرته رسولی دی او یو شیمر مواد یې له طبی بوټو څخه لاس ته راوړل. نوموړی پنځوس غوره کشفیات سرته رسولی دی.

د شیلی سره په عین وخت کې په انګلستان کې پریستلی هم اوکسیجن کشف کړ. د شیلی فعالیتونو د ځیړنو نوي طریقې رامنځ ته کړې او له نباتاتو څخه یې د ځانګړو موادو استحصال او د هغوی د خواصو په باره کې مساعد شرایط منځ ته راوړل.

مارګراف ۱۷۰۹-۱۷۸۲م د فوسفور د استحصال په لاروچارو کارو کړ، نوموړی د کیمیاوی ځیړنو په پروسه کې بې له مکروسکوپ څخه استفاده وکړه.

«د درملو جوړولو علمی دوران د نولسمی پیړۍ له لومړنیو څخه پیل شو. د لوازیه (لاوازیه) Lavoisier له زماني څخه چې د شیمی بنسټونه یې کیښودل او تردی وروسته د درمل جوړولو علمی سرحد پیل شو»[1].

تردی وروسته یوه داسی مرحله شروع شوه چې مجهولات یو یو له منځه لاړل او د عناصرو د پیژندنی خو اته نوی دروازی بیرته شوې لکه چې د یو درملتون مالک د وکیلن Vauqulin (۷۶۳- ۸۲۹م) په نوم په پاریس کې د درمل جوړولو د ښوونځی مدیر چې په ۱۸۰۳م کې تاسیس شوی و، تر ۲۰۰ زیات کیمیاوی فعالیتونه سرته ورسول.

کورتوا Courtois (۱۷۷۷-۱۸۳۶) یو د یې چې په طبابت کې یې مهم نقش درلود کشف کړ. همدارنګه د یو شمیر کیمیاوی مرکباتو د تولید میتودونه یې وړاندی کړل.

بوسی Bussy مګنزیوم کشف کړ.

په کال ۱۸۰۳م دروسن یا شارل دیرازی Derosre (۱۷۸۰-۱۸۴۶م) په درملتون کې د مورفین او نرکوتین مالګې کشفی کړې او له ګنو (نیشکر) څخه یې د شکری د استحصال په میتود کاروکړ.

سوبیران درمل جوړونکی په کال ۱۸۳۱ کلوروفورم کشف کړ او د هغه خواص یې هم ولیکل.

درمل جوړونکی انتون بوخی (۱۷۲۸-۱۸۰۴م) د الکولو د غلظت د ټاکلو لپاره اریو متر جوړ کړ او د نوشادرو د تولیدولو میتود یې لاس ته راووړ.

---

۱- داکتر محمود رفیع زاده، دارو های جالینوس، ۱۳۴۰ ص-۲

پوځی درمل جوړونکی لوبیر کیمیاوی څیړنی د کنین د بوټو په ریښو پرمخ بوتلی او د لومړۍ ځل د پاره یې په فرانسه کې د سلفوریک اسید د تولید فابریکه تاسیس کړه.

پوځی درمل جوړونکی کوانتو Cavento له ایرو او د روغنیاتو د اضافی موادو څخه د صابون د استحصال میتود میدان ته راویست او درمل جوړونکی پلیت Pilletier سره یې یو ځای د خپل ژوند په وروستیو وختونو کې یوشمیر الکالوئیدونه کشف کړ.

د المانی درملتون مالک سرتیوریز په اوپیوم څیړنې وکړې او په کال ۱۸۱۷ کې یې الکالوئید مورفین له تریاکو (اپین) څخه استحصال یی کړ.

المانی کلاپ روت Klaproth (۱۷۴۳-۱۸۱۷م) یو اثر تالیف کړ چې په هغه کې یې یو لړ عناصر کشف کړی وو.

درمل جوړونکی مور (۱۸۰۶-۱۸۷۹) یو لړ سامان آلات یې د درملو د انالیز لپاره کشف کړ او د کیمیاوی حجمی انالیز هستونکی دی.

درمل جوړونکی سیګوئین د کنین پر پوستکی څیړنې اجرا کړې او د کنین درمل یې کشف کړ.

یوستوس لیبیخ (۱۸۰۳-۱۸۷۳) عضوی انالیز د میتود ایجادګر دی.

د علمی طبابت نوی استقامت ورکوونکی بنسټ ایښودونکی چې د طب په تکامل او د نولسمی پیړۍ په انکشافاتو یی لوی تاثیرو غورځاوه لویي پاستور (۱۸۲۲-۱۸۹۵)، جوزف لیستر (۱۸۲۸- ۱۹۱۲) او پاول ایرلیخ (۱۸۵۴-۱۹۱۵) دی.

د پاستور او د ده د شاګردانو کشفیات چې طب او جراحی ته یې په بشپړه توګه تغییر ورکړ په درمل جوړولو یې هم پوره اغیزه کړه، لکه چې مکروب یی د زیاتو ناروغیو په منځ ته راوړلو (د ناروغیو عامل) کشف کړ. پاستور د لومړۍ کرت د پاره په لومړۍ ځل د باکتریاو رول د ډیرو ناروغیو د مرګ په حیث په خپلو څیړنو کې ثابت کړ.

لیستر د زخمونو د دیزنفکشن (اساسی تطهیر او تعقیم) میتود تهیه کړ.

ارلیخ د کیمیاوی موادو اغیزه په اورګانیزم کې د انفکشن په پروسه باندې څیړنی کړی او د شیموتراپی بنسټ ایښودونکی دی.

د لومړۍ ځل د پاره فلیمنګ Fleming انګلیسی عالم په ۱۹۲۹م کې د پنسیلین نوم د پنیسیلیم د کښت په صاف شو یو محلول باندې کېښود، چې دا پیښه د شلمی پیړی د لومړنۍ نمیایي د ډیرو سترو پرمختیاوو څخه شمیرل کیږی چې د درمل جوړولو صنعت یې د خپلی لوړتیا معراج ته ورساوه.

## په نویو پیړیو کې پیاوړی طبیبان

### ابو عبدالله محمد بن شرف الدین ابی بکر:

د عزالدین له کهول څخه دی ۱۳۵۹ کې زیږیدلی دی. په قاهره کې طبیب او د فلسفی مدرس وټاکل شو. په ۷۱۹هـ (۱۴۱۶م) کال کې د وبا په ناروغي مړ شوی دی. د ده تالیفات خورا ډیر دی په طب کې کتاب الانوار، شرح علی کتاب الانوار، نکت علی فصول بقراط، کتاب الجامع فی الطب او نور دی.

### عبدالحی طبیب:

نظام الدین عبدالحی طبیب د هرات د تیموریانو ډیر معروف طبیب و چې د پنځلسمی پیړۍ دویمی نیمایي کې د ښه شهرت څخه برخمن و. طبیب عبدالحی د امیر علی شیر نوایي په غوښتنه د روحانی پیر خواجه اسرار درملنې ته ولیږل شو. همدارنګه نوموړی د سلطان حسین بایقرا په دربار کې د عزت او مقام خاوند و.

طبیب عبدالحی د دربار طبیب په توګه د سلطنتی کورنۍ عیادت ته حاضریدلو او د طبابت د شغل له کبله حرام سرای ته لاره پیدا کړ.

د هرات د تیموریانو په زمانه کې ډیر زیات طبیبان په هرات کې ژوند کاوه چې له هغو جملی څخه خواجه رشید الدین، نجیب الدین سمرقندی، ابن نفیس قرشی، قطب الدین شیرازی، علامه شمس الدین، افضل الدین کرمانی، ابو زین کمال او نور یادولی شو.

### پاراسلز Paraceles (۱۴۹۳-۱۵۴۱):

د سویس نامتو طبیب او کیمیا پوه و چې د کلیسا ډیر سخت مخالف و. پاراسلز د نوی طبابت بنسټ ایښودونکی ویل کیږی. (دریم څپرکی ولوستل شی).

**فراکاستور Fracastore** (۱۴۷۸-۱۵۵۳):

ایتالوی نامتو طبیب دی چې د ساری او انتانی ناروغیو سرایت یې طرح کړی دی. ده ویل کوچنی اجسام دی چې ناروغی د یو ځخه بل ته انتقالوی. نوموړی د ساری ناروغیو په برخه کې دری کتابونه لیکلی دی.

**وزال Vesale** (۱۵۱۴-۱۵۶۴):

بلژیکی پوه، د پادوا د پوهنځی استاد او د اوسنی تشریح علم بنسټ اینبودونکی دی. هغه په پټه جسدونه یې غلاکول او تشریح کول یې او د تشریح اوه ټوکه د تصویرونو سره کتابونه لیکلی دی. کلیسا هغه تکفیر کړاو بیت المقدس ته لاړ ترڅو د تعقیب څخه په امان کې وی. نوموړی پوه کله چې بیرته اروپا ته سفر کاوه په بحر کې ډوب شو. نوموړی د لومړۍ ځل لپار د زړه دریځه کشف کړی او د وینی کوچنی گردش یې توضیح کړ.

**امبریوس پاری یا امبروازپاره Ambroisepare** (۱۵۱۰-۱۵۹۰):

د شپاړسمی پیړۍ ډیر مشهور جراح دی چې د فراسی د جراحی پلار په توگه پیژندل شویدی. په کال ۱۵۳۲ کې د یو سلمان جراح شاگرد شو او څلور کاله یی د دیو Dieu په هوټل کې دنده اجرا کړ. په کال ۱۵۴۱ د سلمانی جراحی یا Batbersurgeon ماستر شو او څه موده یې په اردو کې کار وکړ. په کال ۱۵۶۴ پر جراحی کې یو اثر ( Dix liversde la cheturgie) باندې کار وکړ چې دوه برخې لرل. په لومړۍ برخه کې په اناتومی او فزیولوژی او په دوهمه برخه کې د جراحی تخنیکونه شرح شوی دی. د نوموړی لاس ته راوړنی د قطع شوی لویې اوعیی تړل او د تور نکیت اختراع او نور دی.

**ویلیام هاروی** (۱۵۱۸-۱۶۵۷):

انگلیسی طبیب او فزیولوژی پوه و. هغه د وینی لوی او کوچنی جریان یی سره بیل کړ او په صحیحه توگه هغه یې توضیح کړ، چې نن هم په مهمو ټکو کې د حقیقت سره مطابقت لری. دری کاله د کمبریج په پوهنتون کې دنده اجرا کړی. وروسته د سن بارتلمو د روغتون ریاست یې انتخاب کړ او د لومړی چالز دربار کې طبیب و.

**فالوپیو Garbriel Fallopio** (۱۵۲۳-۱۵۷۶):

ایتالوی مشهور طبیب دی. سره د دې چې څلویښت کاله عمر وکړ خو پرثمره انسان و. د نوموړی د آثارو څخه یو د «کالبد پیژندنی مشاهدات»

نوم لری. دغه اثر په حقیقت د وزال بې تصویره شرحه ده. ده په دغه اثر کې زیار ایستلی ترڅو د نوموړی کتاب نیمګړتیاوی رفع کړی.

**نیکولاس اندری Nicholas Andry :**



د پاریس د پوهنتون پروفیسور او په کال ۱۷۴۱ کې د Physick د پوهنځی مدیر و. د ۸۱ کلنی به عمر کې د Orthopaedia یا په کوچنیانو کې د سؤ تشکیلات د مخنیوی او درست کولو هنر کتاب یې په نشر ورساوه. په دغه کتاب کې اندری د Orthopaedia لغت معرفی کوی چې د یونانی دوو کلمو (مستقیم او ماشوم) څخه مشتق شوی دی. اندری ډیره زیاته مینه د وضعی نواقصو یا Postural Defec سره درلود او په مشهور تصویر کې چې د اندری د ونې په نوم یادیږی دغه موضوع انعکاس موندلی دی. شنی ونې تصویر کښل چې د یوی پا یې په ذریعه تړل شوی دی. نوموړی عقیده درلود چې اسکلیتی سؤ تشکیلات چې د وضعی Posturalنواقص او د عضلاتو لنډوالی د دغی طریقی پواسطه اصلاح شی. څنی نوموړی د اورتوپیدی د پلار په توګه احترام کوی.

«کوچینانو درسته فزیکی تربیه» د کتاب په دویم ټوک یې اندری د بدن د اصلاح لپاره نارمل پوزیشن، (S) مانند انحرافی په هکله ولیکل، او لومړۍ کس و چې د کوچینانو ولادی خلع (CDH) او د پنډۍ مختلف سؤ اشکال ته متوجه شو او د کوچینانو سم تړلو او ډیر زر قدم اخستل ضرورنه یې توضیح کړل. او د دغه سؤ شکل د اصلاح لپاره یوه اوسپنیزه پلیت یې د ماوفه یا سؤ شکل سګمنت یې بنداژ کاوه او د خپلی نظریې د توضیح لپاره، د کږی ونې یوه سیخه (راست) پایه وتړل شی، رسم یې کړ او توضیح یې ورکړ چې که د ونی نشوو نمایی یا دودی پروسه کې سم لرګی وتړل شی د تنی د سؤ شکل څخه مخنیوی کیدلای شی. چې دغه رسم اوس د اورتوپیدی بین المللی سمبول پیژندل شوی دی.



ر.ر ویردین د اندری د نظریاتو په توضیح کې لیکی: «اورتوپیدی د جراحی څخه یوه بیله شوی اختصاصی څانگه ده چی د ولادی او کسبی ټولو سؤ اشکالو، اطرافو، فقراتو، مختلفی پتالوژی گانی، تروماتیک آفات، د عظامو نری رنځ او همدارنگه د حرکی سیستم اتکا ارجاع عملیاتونه او مفاصل او د مفاصلو پروتیز مطالعه، تحلیل او درملنه په برکې نیسی»[۱].

### توماس سدنهام Thomas Sydenham:

د نوموړی کارونه د هیپوکرات سره شباهت لری. هغه ته د انگلستان د طبابت پلار ویل کیږی. نوموړی چې د نقرص د ناروغی څخه رنځ وړ، مکمل او ښه تشریحات یې د ناروغی په هکله لیکلی چې په هغه کې د حملاتو وصف، د یو ریک اسید تغییرات او د بډوډو تیږو سره د هغه ارتباط راغلی دی. هغه د حاد روماتیزم، Chorea او Scuravy ناروغیو په جریان کې مفصلی تغییرات او لس ناستی یې په مفصل ډول تشریح کړی دی.

### پیرسوال پوټ Percival Pott (۱۷۱۴-۱۷۸۸):

نوموړی د لندن څخه و او St.Bartholoews روغتون کې کار کاوه. هغه په کال ۱۷۶۳ کې د سلمانی جراحی د ښوونځی دیپلوم یې لاس ته راوړ. د هغه کسر په واسطه چې پخپله ورسره مواجه شوی و مشهور شو او له همدې کبله دغه ډول کسر ته Poots Fracture په نامه یاد شو او هغه لومړنی سړی و چې د دغه کسر په هکله چې د عنق الدم پر مفصل معلومات

۱- دوکتور سیاووش، تاریخچه اورتوپیدی در افغانستان و جهان ۲۰۰۶ کابل، ص-۵۹

ورکړ دغه کسر د قصبی سفلی دریمی برخې مایل او مرکب کسر دی چې د آس د لویدلو څخه وروسته منځ ته راغلی و.

د نوموړی مشهور کار د سفلی طرف نیمه فلج په برخه کې دی چې د نخاعی توبرکلوز څخه منځ ته راغلی دی. ده ویل چې دغه فلج د نخاعی کانال باندې د فشار له کبله نه دی بلکې نخاعی ښنځی (آبسی) پوری مربوط دی چې عصبی جذورو باندې فشار راوړی او د پوټ نیمه فلج یا Pootts Paraplegia په نامه یادیږی.

### جان هنټر John Hunter (۱۷۲۸-۱۷۹۳):

نوموړی یو تحقیقاتی مرکز په London 's Golden Square کې تاسیس کړ او په Lencester Square کې لکچر ورکاوه ترڅو د زړه د آنژین له کبله مړ شو.

هغه یو علمی بنیاد د جراحی کارونو لپاره تاسیس کړ او خپل کاری پلانونه یې د خپلو نظر یا توپه چوکاټ کې د شلمی پیړۍ انکشافاتو لپاره تهیه کړ.

هغه به ویل (فکر وکړه، تجربه وکړه). هغه په دې عقیده و چې روغیدل د ناروغ درونی قدرت او توانمندی پوری مربوط دی. او د جراح دنده یوازې مرسته کول دی. له نظریاتو څخه یو هم دا و چې د هډوکو ناروغی میخانیکی درملنې ته ضرورت لری. هغه د اورتوپیدی په مختلفو برخو کې مطالعات وکړ. په کال ۱۷۹۴ کې یوه رساله د وینی، التهابی حالاتو، چې د مرمی له اصابت څخه منځ ته راځی په برخه ولیکل او د ګراف د ایښودلو عملیی یا د نسج ګنډلو ته مبادرت وکړ.

د هغه د نمونو مجموعه ۱۴۰۰۰ ته رسیدل، خو د لندن په بمباریو کې نیمایي له منځه لاړل. دغه نمونی د مختلفو سیستمو د انکشاف په مورد کې چې د ډیر ساده مجری څخه تر ډیرو مغلقو پوری معلومات ورکول.

### جین اندری وینل Jean Andry Venel (۱۷۴۰-۱۷۹۱):

نوموړی د وراثت طبیب و چې په Montpellier کې د ۳۹ کالو په عمر جسد سپیړنه یې مطالعه کړ او په کال ۱۷۸۰ کې په Orbe کانتون وادت Canton Waadt کې د اورتوپیدی لومړنی انستیتوت یې پرانیست، دغه لومړنی روغتون و چې د کوچینانو سؤ اشکال چې د فلج اختلاط یې درلود، باندې کار کاوه. نوموړی چې د ټولو مروجو میتودونو څخه استفاده کاوه، ثبتاوه او په هغه زمانه کې نشر ته سپارل، له همدې رویه هغه لومړنی

واقعی اورتوپید په حیث پیژنی، او د اورتوپیدی د پلار په لقب پیژندل شوی دی. روغتون یې په اروپا کې یو مدل روغتون محسوبیده.

نوموړی د لمروړانگی پر موثریت او اهمیت ټینگار کاوه. تثبیتی ډیر سامان او لوازم جوړ کړی چې تماشاته ایښودل شوی وو.

**ویلیام هیبردن William Heberdon** (۱۷۱۰-۱۸۰۱):

په لندن کې زیږیدلی او ډیر عمر پراکتیک کارونو باندې مصروف و. لومړنی سړی و چې د Medical Transaction پر اختراع اقدام وکړ او وروسته د Heberden 's Node په مورد کې توضیحات ورکړل.

**ویلیام هی Willam Hey** (۱۷۳۶-۱۸۱۹):

نوموړی Leed ته نږدې په Pudsey کې زیږیدلی او په ۱۴ کلنۍ کې د جراح او درمل جوړونکی شاگرد شو. د مخدراتو یا اوپیوم د مطالعاتو په اثر نږدې و چې مړ شی. په لید Leeds کې د جراحی موسس و. د جراحی په برخه کې کتاب لیکلی چې څو فصلونه یې د اورتوپیدی په برخه کې و. د قصبی تحت الحاد اوستیو میالیت په برخه کې ځني موضوعات لیکلی دی.

کله چې په ۱۷۷۳ کې د حمام څخه ووت زنگون یې ژوبل شو. او اکثریت افتخارات یې د مصدوم زنگون په هکله و او په دې برخه کې ډیر مطالعات کړی دی.

**جیوبنیبتیستا مونیتجا Giobannibattista Monteggia** (۱۷۶۲-۱۸۱۵):

د Magiore په جهیل کې زیږیدلی او په میلانیس کې پتالوژست و. هغه د اوتوپسی په جریان کې په سفلیس مصاب شو، او وروسته په میلان کې د جراح او د جراحی پروفیسور په توگه دنده اجرا کوله. هغه د یو کسر په مورد کې چې وروسته د هغه په نوم یاد شو مشهور شو (په مرفق مفصل کې د Ulna کسر او د Radius خلع).

**کانت Kant** (۱۷۲۴-۱۸۰۴):

المانی فیلسوف و او د لومړۍ ځل لپاره بریالی شو چې په قرع او انیق کې د انسان د وجود څخه د باندې د غیر عضوی موادو د ترکیب څخه یوه عضوی ماده د اسیدیوریک په نامه د تحقیق په اثر منځ ته راوړی.

**داکتر ادوارد Jenner** (۱۷۴۹-۱۸۲۳):

انګلیسی طبیب و چې د خپلو مشاهداتو په نتیجه کې وموندل هغه ښځې چې په کوی اخته شوی غوا شیدی وڅښې د کوی په ناروغی نه اخته کیږی.

**ابراهام کولیس Abraham Colles** (۱۷۷۳-۱۸۴۳):

نوموړی یوې بې وزلې کورنۍ کې په ایرلیند کې زیږیدلی او په ۲۹ کلنی کې د دولین ښوونځی جراحانو کې د جراحی پروفیسور شو. لومړنۍ سړی و چې د تحت تر قوی اوعیه یې وتړله. په کال ۱۸۱۴ کې چې د Colles Fracture په اساس یې توضیحات ورکول، مشهور شوی چې تر اوسه دغه تیپ کسور (د ساعد د هډوکی سفلی ثلث میتافیز) د ده په نوم مسمیٰ شو.

**بارون ګاویلایوم دوپویترین Baron Guilaume Dupuytren** (۱۷۷۷-۱۹۳۵):

د فرانسی په مرکز کې زیږیدلی دی. د ښایست له کبله یې چې درلود د یوی بدایې ښځۍ له خوا اختطاف او پاریس ته بوتلل شو او هلته یې زده کړه وکړ، د نیستی له کبله په زده کړه کې دیری سختی یې وګاللی په پای کې جراح شو او د Dieu په هوتل کې د جراحانو د آمر په توګه دنده اجرا کاوه، د تعجب وړ کارونو په نتیجه کې ډیر بډای شو. نوموړی د اجتماعی له نظره د نظر وړ سړی نه و خو د ده کارونه ډیر په زړه پوری و. د جراحی له قدرت نه د جراحانو په سرکې خو د اجتماعی برخورد له کبله د ټولو خلکو په آخر کې قرار درلود. اوتوپسی او پتالوژی ته ډیره علاقه درلود. هغه ډیر موضوعات مطالعه او تشریح کړل. لومړنی کس و چې د هډوکی سرطان او Spina Ventosa ترمنځ توپیر یې کیښود.

**جیمز سایم James Syme** (۱۷۹۹-۱۸۷۰):

هغه په Edinburgh کې زده کړه کړی او حتی د تحصیل په وخت کې په پورتنی پوهنتون کې د پلاستیک د ذوب کولو مؤثره طریقه یې پیشنهاد کړ. نوموړی لومړی د اناتومی ښوونځی او وروسته شخصی کلنیک یې پرانیست. په کال ۱۸۳۳ د جراحی پروفیسور په توګه ادنبورګ کې کار کاوه (هغه خپلو اجدادو ته لوړه کړی وه چې د تقاعد حقوق نه اخلی).

په ۱۸۳۱ کې یو یاد داشت نشر کړ چې د مټ د مفصل خلاصول یې؛ خصوصاً د مفاصلو وخیمو ناروغیو لکه نری رنځ او د مفاصلو جروحات، د قطع کولو پرځای ترجیح ورکاوه.

په کال ۱۸۴۲ کې د سفلی طرف قطع یې د قدم د ناحیې څخه توضیح کړ.

**سر بینجامین برودی Sir Benjamin Brodie** (۱۸۶۲-۱۷۸۶):

یو ملی شخصیت و او د Georges په روغتون کې جراح و. په کال ۱۸۱۹ کې د مفاصلو ناروغیو لومړی کتاب یې لیکلی او نشر کړی دی.

نوموړی په اورتوپیدی کې لویې لاس ته راوړنې لرې. نوموړی په کال ۱۸۴۳م کې د سلطنتی کالج د ازموینو لپاره چې موخه یې د جراحانو د پوهې د لوړولو په خاطر و، مادی مرسته وکړه.

**جان ریها بارتون John Rhea Barton** (۱۸۷۱-۱۷۹۴):

نوموړی د امریکا په پنسلوانیا کې زیږیدلی او هلته یې خپل تحصیلات سرته رسولی دی. وروسته د فزیک په برخه کې کار کاوه (د امریکا د جراحی پلار) چې د هنتر له شاګردانو څخه دی. بارتون په دواړو لاسونو کار کاوه او یوځلی حاضر شو ترڅو پر هغه عملیات اجرا شی.

په کال ۱۸۲۶ کې د Subtorchanteric Osteotomy اجرا کړ. په کال ۱۸۳۴ کې بارتون د Patella یو کسر یې د سیم په واسطه ترمیم کړ. او په کال ۱۸۳۵ د لاس د بند د ناحیې د کسر په باره کې توضیحات ورکړ چې وروسته د Barton Foactur په نامه ونومول شو.

**رابرت ویلیام سمیت Robert William Smith** (۱۸۷۳-۱۸۰۷):

په دوبلین کې زیږیدلی او هلته یې تحصیل کړی دی. نوموړی په دوبلین کې د جراحی پروفیسور و. سمیت د پتالوژیستانو انجمن تأسیس کړ او په کال ۱۸۴۷ یو کلاسیک کتاب «بندونو نږدی مفاصلو» په هکله لیکلی دی. په کال ۱۸۴۹ د عصبی رشتو د سرطان تشخیص او درملنې په هکله یې یو کتاب لیکلی دی چې ډیر حجم یې درلود. کله به چې دا کتاب خلاص شو د ډوډۍ خوړلو د یو میز څخه لوی په نظر رسیده.

**انتونیوس میتیسن Antonaus Mathysen** (۱۸۸۷-۱۸۰۵):

نوموړی په کال ۱۸۵۱ کې د هالیند په اردو کې د نظامی جراح په توګه کار کاوه، او د پلستر پاریس بنداژ یې د استفادی وړ وګرځاوه چې تر اوسه د تثبیتیه ډیر عمده وسایلو په جمله کې په مختلفو کسورو کې حسابیږی.

**ویلیام جان لیتل William John Little** (۱۸۱۰-۱۸۹۰):

نوموړی د سلطنتی اورتوپیدی روغتون موسس و. هغه د مفصل یو مکمل راپور په کال ۱۸۶۲ کې لیکلی چې د ماشومانو او تنکیو ځوانانو د اطرافو سؤ شکل اعراض او عقلی تاخر ورسره وی ولیکل چې وروسته د ده په نامه کلونه کلونه یادیده.

**کلود برنارد Claude Bernard** (۱۸۱۳-۱۸۷۸):

فرانسوی پوه و چې د فزیولوژی په رشته کې د نخاع دندی او د عکس العملونو د پیدایښت څرنګوالی، د هاضمی جهاز د غدواتو او د پانګراس د دندو اهمیت، په ځیګر کې د ګلایکوژن ذخیره کیدو عمل او په بدن کې د ګلوکوز استقلاب، د نباتی اعصابو د دستګاه وظایف او د هغو تاثیر د وینی پر رګونو او نور یې کشف کړل. کلود برنارد ته د نوی فزیولوژی بنسټ ایښودونکی ویلای شو.

**سر جیمز پجیت Sir James Paget** (۱۸۱۴-۱۸۹۹):

په کال ۱۸۷۷ کې لومړی توضیحات یې د پتالوژی په مورد کې چې Osteitis Deformans په نامه یادیږی نشر کړ، چې اوس د Paget ناروغی په نامه یادیږی. هغه پخپلو یاد ښتونو کې د هډوکی د سرطان واقعات او د راس مختلف سؤ اشکال یې توضیح کړ. د هډوکو د پتالوژی په برخه کې ډیر لکچرونه ورکړی دی.

**اریکسن Erichesen** (۱۸۱۸-۱۸۹۶):

یو مشهور انګریزی جراح دی. پلار یې د کوپن هاګن یو سوداګر وو. اریکسن تقریباً خپل ټول عمر په انګلستان کې تیر کړی. د لندن د یونیورستی په کالج کې تحصیل وکړ او په ۱۸۳۹ کال د شاهی مدرسی د جراحانو غړی وپیژندل شو. او په ۱۸۵۰ کال د یونیورستی په کالج کې د جراحی پروفیسور او د روغتون جراح تعیین شو. په ۱۸۸۷ کال په نوموړی دارالعلوم کې رئیس وټاکل شو او د عمر تر پایه پوری په دغه رتبه پاتی شو. د وکتور یا ملکی فوق العاده جراح هم وو او په ۱۸۹۵ د بارونی رتبی ته ورسید. د ده خورا مشهور اثر دسانیس او چې د جراحی له فن څخه عبارت دی څو پلا چاپ او څو پلا ترجمه شو. د نخاعی ټکان او لړزیدلو په خصوص کې هم د Concissin of spine په نوم یې یو اثر لیکلی دی.

**جین مارتین کارکوت Jean Martin Charcot** (۱۸۲۵-۱۸۹۳):

د پاریس د Salperier څخه و او په ټوله نړۍ کې د نیورولوژۍ لومړنۍ پروفیسور په حیث پیژندل شوی دی. هغه یوه رساله د نقرص، مفصلي روماتیزم او اوستیوارتریت په هکله لیکلې دی. نوموړی د لومړۍ ځل لپاره د مفاصلو پتالوژۍ (Arthopathy) چې د هغه د شهرت سبب وګرزید، تشریح کړ. د لومړۍ ځل لپاره د اسکلیروزس په مورد کې چې د عضلاتو اتروفي په اثر منځ ته راځي، متناوب لنګش، منتشر سکلروزس، د ځیګر نوبتي تبه او Herpe Zoster یې ولیکل.

**ادمز اندریولیت** (۱۸۲۷-۱۸۸۲):

د طبیعیاتو یو سکاتلیندي عالم و. د عسکرو د جراحۍ د یو ډاکتر په حیث یې د طبي تاریخ په شقونو کې په هند، کشمیر، مصر، مالتا، جبل الطارق او کانادا کې مطالعات وکړل او د هډوکو او جماداتو د آثار په باب کې د ده مشاهداتو د مالتا په جزایرو کې د فیلانو د استخوان بندۍ د پاره ډیر زیات شهرت پیدا کړ.

**ارلونګ (ستورنن) Arloing (Saturnin)** (۱۸۴۸-۱۹۱۱):

د بیطارۍ او تشریح فرانسوي عالم دی د شاربن د ناروغۍ د علاج اصول یې کشف کړ. او د دغه ناروغۍ ضد واکسین یې را پیدا کړ. برسیره پردې د سل د ناروغۍ د درملنې په شاوخوا کې یې هم مطالعې وکړلې. دی د فرانسې د علومو د اکادمۍ غړی او د لیون د ښار د بیطارۍ د ښوونځي مدیر و.

**سر ویلیام مکوین Sir William Macewen** (۱۸۴۸-۱۹۲۴):

مکوین په ګلاسکاو کې خپل تعلیمات سرته ورسول. د جراحۍ او اورتوپیدۍ په برخه کې ډیرۍ مرستې کړې دي. خو د هغه اساسي تحقیقات او علاقمندي د هډوکي د انکشاف او نشو ونما (ودې) په برخه کې متمرکز و.

په کال ۱۸۷۹ د هډوکي لومړۍ ګرافت یې اجرا کړ. نوموړی د عصبي، قلبي او صدري جراحۍ سرتاج و. او دماغي آبسو او تومورونو باندې کار وکړ او لومړنۍ Pneumonectomy یې اجرا کړې دي.

**ریچارد وون ولکمن Richard Von Volkmann** (۱۸۳۰-۱۸۸۹):

لومړنی کس و چې د لیسترانتی سپتیک میتودونه یې په جرمنی کې بنسټ کیښود. په کال ۱۸۸۱ کې ډیره مشهوره مقاله یې د عضلاتو اسکمیک فلج په برخه کې او عضلی کانتر اکتورونه یې لیکلی او چاپ یې کړل. جراحی ژورنال یې تاسیس، شعر یې هم ویل او افسانوی داستانونه یې لیکل.

**ادوارد البرت Eduard Albert** (۱۸۴۱-۱۹۰۰):

په بوهیمیا کې زیږیدلی او په ویانا کې تحصیل کړی دی. د هغه توضیحات د مفاصلو قفل کیدل او د اطرافو فلج د ده شهرت باعث وګرزید. پدی برخه کې په کال ۱۸۸۱ مقالې لیکلی دی. په لومړی ځل یې د اوږی پر مفاصلو او عنق الدم د فلجی په حالاتو کې او متکررو خلعو کې ارترودیز مفصلی یا د مفاصلو قفل سازی یې اجرا کړ.

**هوف توماس Hugh Thomas** (۱۸۳۴-۱۸۹۱):

د بریتانیا د اورتوپیدی پلار دی. پنځه واره ورونو طبی تحصیلات درلودل چې د ټولو څخه مشر توماس وو. هغه به ډیر مصروف و او ناروغان یې په خپل کور کې منل او د شپی له خوا به یې لیکنې کولې. د جراحی نوی سامان آلات او تخنیک یې اختراع کړ. د مفاصلو د نری رنځ د پاره اوږد استراحت بی له مداخلی څخه پیشنهاد کړ. استحکامیه سیتمتونه، ترانسپورتی تثبیتیه جهاز یې پیشنهاد کړ چې د Thomas Splint په نامه یادیږی.

**هارولد بینیت Harold Bennet** (۱۸۳۷-۱۹۰۷):

نوموړی د پتالوژی هډوکو ډیری نمونې را ټولی کړی او په کال ۱۸۸۲ کې د میتاکارپل کسورو په مورد کې رساله یې لیکلی ده. هغه د ایرلند د سلطنتی کالج د رئیس په توګه وظیفه اجرا کوله.

**پاولوف Pavlov** (۱۸۴۹-۱۹۶۳):

ایوان پتروویچ پاولوف د روسیی معروف پوه او فزیولوژست و. هغه د روسیی په ریازیان کې زیږیدلی او په ۱۸۹۷ کې د ماسکو د تجربوی طب انستیتوت استاد شو. هغه د کلود برنارد وروستی دقیق مریدانو څخه حسابیږی او ډیر غټ اکتشاف یې د غیر ارادی اعمالو موضوع ده.

د هغو لـه جملـې څخـه د سترګو د اوښـکو توئيدل، لعابي ترشحات او نور شرطي عکسي دي. دغه تيوري پـه کـال ۱۹۰۴ کـې پـاولوف تـه د نوبل جايزه نصيب کړ.

وروسته پـه سن پترزبورګ کـې د نظامي طب اکـادمي استاد شو. د پاولوف مشهور موزيم په دې ښار کې موجود دی.

## برودمان Brodmann:

يـو طبـي مؤلـف او د کـار د آسـانتيا لپـاره يـې پـه دمـاغ کـې مختلفـې خواوې وښودلې دماغ يې پـه مختلفو سـاحو بانـدې ويشـلی دی. دا تصـنيف پـه دماغ کې د برودمان د ساحوی په نامه مشهور دی. برودمـان اساسـاً دمـاغ پـر اته ځلويښت تر دو پنځوسو اصلي سـاحو پـوری ويشـلی دی. خو کـه اضـافي تقسيمات هم په نظر کې ونيسو ممکنه ده دا ساحی به تـر يوسلو سـاحو پـوری ورسيږی.

يو بل الماني مؤلف چې ليخت Licht نوميږی هم دمـاغ پـه خپل فکر پر مختلفو ساحو باندې جلا کړی دی.

## براون مستشرق Browne Edvard Grenville:

پروفيسـور ادوارد بـراون د شـعبان پـه اومـه پـه ۱۲۸۷هــ کـال چـې د ۱۸۶۲م کال د فبروری له اومی سره مطابقت لری زيږيدلی دی. هغه تر ۳۷ کلنۍ پوری خپل سوانح په يو کتاب کې چې (يو کال د ايرانيـانو پـه منځ کـې) نوميږی ليکلی دی.

د ايـران د ادبيـاتو د تـاريخ لمړی ټـوک د ترجمـی د ديبـاچی پـه حاشيه کې يو ويشت ماخذ د هغه شرح حال ښودلی شوی دی. په لمړی مرحله کې د پلار په غوښتنه په طب کې اشتغال درلود. خو د هغه طبيعی تمايل او فطری ذوق هغـه ادبيـاتو تـه کښـاوږه بـراون دولـس نـوی طبـی کتابونـه او دوه ويشـت وړی طبی رسالی ليکلی دی. او د هغه له ټولو آثـارو څخـه د ايـران د ادبيـاتو تاريخ ډير مشهور دی چې له ۱۹۰۲ تر ۱۹۲۴م کلو يـی پـه څلـورو ټوکو او دوه زره دری سوه صفحو کې طبع کړی دی او د خپلو آثارو فهرست يـې هم دوه کاله تر مرګه دمخه په يوه رساله کې چاپ کړی دی.

د نوموړی یو کتاب چې طب اسلامی Arabian Medicine نومیږی لیکلی دی چې د مسعود رجب نیا له خوا په فارسی ژبه اړول شوی دی چې په ۱۳۳۷هـ کال کې په تهران کې چاپ شوی دی.

ادوارد براون د جمادی الاخر په شلمه په ۱۳۴۴ کال او د ۱۹۲۶ کال د جون په پنځمه نیټه مړ شو.

**سیر ویلیام ابورتون لین Sir William Arbbrthont** (۱۸۵۶-۱۹۳۷):

د کسورو په درملنه کې د داخل محراقی اوسیتونتیز د طریقی په استفاده کولو کې مشهور و. هغه د صحی تعلیماتو د پروګرام د رامنځ ته کیدو کې چې تر اوسه موجود دی لومړنی ګام یې اخستی دی. د میوو او ترکاریو صحی استفادی په موخه په روزنامو کې خلکو ته درسی موضوعات نشر ته سپارل.

**فریدریچ ترندلینبرګ Friedrich Trendelenburg** (۱۸۴۴-۱۹۲۴):

په برلین کې زیږیدلی دی د ترندلینبرګ علامه د هغه تګ سره ملګری دی چې یو ځای د Coxofemoral Joint نیمګړتیاوی په کال ۱۸۹۵ کې یې تشریح کړ. هغه ریوی امبولیو قطع یی پیشنهاد کړ او د ده شاګرد Kirshner د څو کالو څخه وروسته په کال ۱۹۲۴ کې بریالی شو چې پورتنی ذکر شوی پروسیجر په بریالی سره اجرا کړی.

**فریتز کوویروین Fritzde Quervain** (۱۸۶۸-۱۹۴۰):

په کال ۱۸۹۵ کې د وتر پوښ مزمن التهاب یې تشریح کړ د تائیروئید ناروغی یې لکه کوخر مطالعه کړ او د مالګی ایودایز شوی جدول یی معرفی کړ.

**پاری میری Pierre Marie** (۱۸۵۳-۱۹۴۰):

هغه د کراکوت سره کار کاوه ترڅو د اعصابو بهترین پروفیسور شو. هغه د Peroneal عضلی اتروفی په مورد کې توضیحات ورکړی دی. نوموړی په اورتوپیدی کې ډیر ستر کارونه کړیدی او په دې عقیده و چې د فلج ناروغی یا Poliomyelitis د انتاناتو څخه منځ ته راځی.

**لويس زاووير ادوارد ليوپو لداولير Louis Xavier Edouard Leopold Ollier** (۱۸۳۰-۱۹۰۰):

په کال ۱۸۷۷ کې پيشنهاد وکړ چې «د دې دپاره چې د عظامو سؤ تشکلاتو څخه مخنيوی وکړو، ممکنه ده چې د هډوکی د نشو ونما څخه د Epiphyseal د سطحی د قطع کولو سره مخنيوی وکړو». په ۱۸۹۹ کې د اولير ناروغی يې تشريح کړ. هغه د هډوکی د نشو ونما په برخه کې پراخه تحقيقات وکړ او په دې عقيده و چې يو وختی ممکن به شی چې د غضروفو د تحريک له طريقه د هډوکی کلک کيدل په هډوکی کيدل سره ناروغ معالجه کړو.

**ويليـام کونـارد رونتـوجن (رونـتګن) William Conrad Rontgen** (۱۸۴۵-۱۹۲۳):

څرنګه چې هغه د فزيک پروفيسور په توګه کار کاوه، خو د X يا Rontgenrays شعاع کشف يې طبابت او بالخاصه اورتوپيدی لپاره د اهميت وړ دی.

لومړنی راديوګرافی يې د دسامبر ۲۲ کال ۱۸۹۵ کې د خپلی ښځی لاس واخيست رونتګن په کال ۱۹۰۱ کې د نوبل جايزه وګټله.

**ابيل (جان جيک ابيل) Abel John Jacobel:**

يـو امريکـايې معـروف درمـل جـوړوونکی او د کيميـا پوهانـد و. پـه ۱۸۷۵ کال کې د کليولند په ښار کې زوکړی دی. نوموړی د معلم په توګه په کـار پيل وکړ او لـه ۱۸۷۹ کـال څخـه تـر ۱۸۸۲ پوری د انديانا د لومړنيو ښوونځيو مدير و. ده په ۱۸۸۳ کې د مشيګان په دارالفنون کې تحصيل کړی دی. وروسـته لـه هغـه شـپږ کالـه لـه ۱۸۸۴ تـر ۱۸۹۰ پـوری د بـرلين، سيترازبورګ، ويانا په ښارونو او نورو پوهنتونو کې د کيميا علم پـه مطالعه بوخـت شـو. پـه ۱۸۹۱ کـال کـې د درملو جوړولو او علم تشريح پروفيسور وټاکل شو او د نسجونو په کيمياوی ترکيبو او د حيوانـاتو پـه مايعـاتو کـې يـې ډيرې تجربې او ډيرې ازموينې وکړې.

**رابرت اسکود** (۱۸۷۳-۱۹۵۶):

د لومړۍ ځل لپاره هغه آفت چې په ځوانی یا کهولت کې د قصبی یا Tibia په وتلو یا Tubercle کې منځ ته راځی معرفی کړ چې اوس د Osgood Schlatter,S Disease په نامه یادیږی.

**جورج کلمینز:**

د جرمنی پوه په کال ۱۸۹۸ د لومړی اکسری په واسطه د پرتیز Perthes ناروغی یې معرفی کړ. خو د ده اسیستانت دغه موضوع تر ۱۹۱۴ کال پورې نشر نه کړ.

**د جرمنی ښځه البرت هوفا** (۱۸۵۹-۱۹۰۷):

په خپل کتاب کې چې په کال ۱۹۰۳ کې لیکل شوی دی ټینګار یې کاوه چې دورانه دراس قطع کول باید معمول نشی. هغه دې نتیجی ته رسیدلی و چې د ورانه دراس ناروغی توبرکلوز (نری رنځ) تشکیلوی.

**جورج اکسهاوسین** (۱۸۷۷-۱۹۶۰):

د جرمنی ښځه و او لومړۍ کس و چې د Aseptecneerosis کلمه یې استعمال کړ. باید وویل شی چې په هغه زمانه کې د عظامو نکروز واقعات ډیر زیات و، انتی بیوتیک هم په هغه وخت موجود نه و او د غیر انتانی نکروز په هکله هم څه معلومات نه و. یو مضمون چې اکسهاوسین په کال ۱۹۱۰ کې لیکلی دی ویلی و: «د کسورو ټولو نهایاتو کې نکروز منځ ته راځی چې وروسته د سمحاق یا Perioste نسجی تکثر پواسطه عوض کیږي».

بایدوویل شی چې فرانسوی Jacque Calve (۱۹۵۴-۱۹۷۵)، امریکایې ArthurT.Legg (۱۸۷۴-۱۹۳۹) او جرمنی Georgeperthes (په کال ۱۹۱۰) کې د Perthes ناروغی یې توضیح کړل.

**Russell.A.Hebbs** (۱۹۳۲-۱۸۶۹):

د نیویارک د اورتوپیدی روغتون کې کار کاوه په کال ۱۹۱۱ کې راپور یې د مزدوج کیدلو تخنیک نشر کړ. نوموړی لومړنی نخاعی امتزاج یې پر توبرکلوز او عین عملیه پر Scolilsis اجرا کړ.

**Joel Godth Wait** (۱۹۶۱-۱۸۶۷):

د بوستون ډیر ښه اورتوپیدو. هغه ډیره علاقه د دریدلو او په لاره تللو ډول ته درلود. او یوه نشریه یې هم خپره کړی ده.

**Ser Robert Jones** (۱۹۳۳-۱۸۵۵):

اکثرو دغه عقیده لری چې نوموړی د جراحی اورتوپیدی په بین المللی سطح کې ډیر ښه بنسټ ایښودونکی دی، چې تر هغه وخته د ده نظیر ندی لیدل شود.

**جویس تونیل Juies Tonel** (۱۹۵۲-۱۸۷۹):

د پاریس د روین ښخه دی په لومړی نړیوال جنګ کې د اعصابو داکتر و چې د لومړۍ ځل لپاره د Tenil علامه یې په کال ۱۹۱۷ کې توضیح کړ.

**پول مد مګنسن Paul Budd Magnuson** (۱۹۶۸-۱۸۸۴):

په لومړی بین المللی جګړه کې د اورتوپیدی د ښانګي انسیتانت و چې د تسلیخ په کوټه کې د قدر وړ تجارب یې لاس ته راوړ. د تروما او ترضیض په برخه کې زیات تجارب حاصل کړ. یو کتاب یې نشر کړ چې د کسور Fracture په نامه یادیدل.

**Paul.N Jonson** (۱۹۴۹-۱۸۹۳):

د جنګ په جریان کې امریکایي عالم دی چې دولکمن کارونه ته ادامه ورکړ او اسکمیک کانتراکتورونه په حیواناتو کې مطالعه کړ. یو کتاب یې چې په ۱۹۱۲م لیکل شوی دی یادونه کړې ده چې داسی کانتراکتورونه کیدای چې چټک غیر فشاری عملیاتونو سره اصلاح شی.

**روسی عالم M.J.Arinkin:**

په کال ۱۹۲۷ کې د چناغ (عظم قص) سوری کول د یوې تشخیصی پروسی په توګه، کله چې د لیننګراد اردو کلنیکونو کې کار کاوه، معرفی

کړ، چې کیدای شی د هډوکو میتاستاتیک ناروغیو کې د دغه میتود څخه استفاده وشی.

د جراحانو د ډلی څخه چې د Hugh Owen Thomas کارونه تعقیب کړ او د Robert Jones سره یوځای کار کاوه Thomas Porter Mcnurrayo دی چې د اورتوپیدی په عرصه کې (۱۸۸۸-۱۹۴۹) کلونو کې وارد شو. نوموړی په بیلفست کې زیږیدلی شوی خو په لیوارپول کې کار وکړ. د ده سرعت عمل او تیز لاسی دومره و چې د زنګون څیری شوی منسک یی د زنګون څخه لیری کړ او د هانش مفصل یي په لسو دقیقو خلاصاوه. نوموړی آثار او مقالی لری.

### ریچارد کلیازی Recardic Galeazzi (۱۸۶۶-۱۹۵۲):

په میلان کې زیږیدلی د هانش مفصل ولادی خلعی او ساختمانی Scoliosis کې ډیرې تجربې لرلی، خو د نوموړی تشریحات د ساعد په کسورو کې په کال ۱۹۳۴ کې ډیر شهرت پیدا کړ او دغه کسرونه د ده په نوم مسميٰ شول.

### ویلیس کمبل Willis Campbell (۱۸۸۰-۱۹۴۱):

امریکایی طبیب و چې د Inter Positional Arthroplasty له طرفدارانوڅخه و. نوموړی یو ترانسپلانت د Fascialata د ناروغ دورانه د ناحیې څخه په دوو لایو استفاده وکړ چې نومه ساحه یې داخل طرف ته وه.

د هغه هدف د اناتومیکی ساحی اعاده نه وه بلکې غوښتل یې چې د هغه وظیفوی توانایي دوباره اعاده کړی.

### ګریهارد کونسچر Gerhard Kunhscher (۱۹۰۰-۱۹۷۲):

په دویمه نړیواله جګړه کې د جرمنی په اردو کې کار کاوه نوموړی د عظامو داخل محراقی اوستیوسنتیز کې د کانال په داخل کې د میخ یا پیچ پواسطه پیشنهاد کړ. هغه غوښتل چې د اورتوپیدی په مسلک کې دې یو انقلابی تحول محاسبه شی، پدې توګه د هغه نوم د میخ او Nail سره مترادف دی.

**مارتین گریشنر Martin Krischner** (۱۸۷۹-۱۹۴۲):

نوموړی یو مخصوص سیخ اختراع کړ چې د Kirschner او یا K.Wire په نامه یادیږی، مشهور دی. لومړنی کس و چې د سړو آمبولی یې په بریالی توګه ایستلی دی.

**سر ریجنیالد واتسون جونز Sir Reginald Watson.Jones** (۱۹۰۲-۱۹۷۲):

په دویمه نړیواله جګړه کې د لیوارپول مشهوره څیره وه. د استادانو په منځ کې هغه د کسورو په درملنه کې رهنما استاد و. نوموړی په کال ۱۹۴۰ کې د کسورو او مفاصلو جروحاتو په مورد کې یو کتاب نشر کړ چې د څو لسیزی لپاره په اورتوپیدی او تراوماتولوژی کې ډیر قوی مؤخذ و او په څو نورو ژبو ترجمه شوی دی.

**:Albert.J.Schein**

په کال ۱۹۴۲ یو مطلب یې د Gaucher ناروغي په هکله نشر ته وسپاره چې دورانه د ناروغیو یو اسباب ګرزیده. دغه موضوع ډیره مهمه وه، ځکه په هغه زمانه کې اکثره دغه واقعات تفریقی تشخیص کې د Perthes Disease سره مغالطه کیده.

**اوستین.تی.مور Austin.T.Moore** (۱۸۹۹-۱۹۶۳):

امریکایي طبیب و چې د لومړۍ ځل لپاره دهانش مفصل یې په فلزی مفصل تعویض کړ.

د کلونو څخه وروسته نوی مصنوعی مفاصل طرح شول، او نوي تطبیقی پروسی او میتودونه ډیر انکشاف وکړ. خو اوس هم دغه ډول مصنوعی مفاصل موجود دی چې د Austin Moore په نوم اوس هم یادیږی او تر اوسه ور څخه استفاده کیږی.

**کونت لیندوبلوم Kunt Lindoblom:**

نوموړی په کال ۱۹۴۸ استاګهولم کې یوه موضوع نشر کړ چې د رادیو اوپک د زرق تخنیک یې نخاعی کانال په مورد کې و. دغه طریقه د Myelography په نامه یاد وی چې اوس هم په خاصو استطبابی مواردو کې د هغه څخه استفاده کیږی.

**اج لوری رش H.Lowry Rush** (۱۸۷۹-۱۹۶۵):

په کال ۱۹۴۹ کې کلک فلزی میخونه یې د عظام طویله کسورو په درملنه کې د استفادی وړ وګرځاوه.

**سر جون چرنیلی Sir John Charnely** (۱۹۱۱-۱۹۸۲):

په کال ۱۹۵۰ د مانچستر څخه کلاسیکی کتاب یې د غیر تهاجمی یا د کسورو بې عملیات څخه ولیکل (د عظامو تړلی کسور میتود). نوموړی دهانش مفصل مکمل تبدیل د سیستم تطبیق په اختراع کې مشهور دی.

**رونالد لاوری هوکستیپ Roland Lawrie Huckstep:**

په استرالیایی اوتوپیدستانو کې نوموړی د اورتوپیدی په بخش کې ډیر ښه استاد و. نوموړی په ۱۹۵۲ کې د لندن د Middlesex روغتون څخه فارغ شو. وروسته کمپالا د یوګندا په مرکز کې د پولیو ناروغی په مورد کې ډیر زیات خدمتونه وکړ. په یوګندا کې ډیر زیات عملیاتونه یی د هغو کسانو په نجات کې چې ولادي ناروغي او ولادی سؤ تشکلات درلودل اجرا کړل. نوموړی په لومړۍ ځل په ۱۹۶۷ کې فشاری میخونه او په کال ۱۹۷۹ کې بې له سمنتو څخه دهانش مفصل قفل کولو میتود یې اختراع کړ. په ۱۹۷۲ د New South Wales پوهنتون کې د جراحی اورتوپیدی او تراوماتولوژی د پروفیسوری کرسۍ بنیاد یې کیښود پنځه کتابونه یې لیکلی دی.

**الن ګراهام اپلی Alan Grham Apley:**

انګلیسی اورتوپیدی جراح په کال ۱۹۱۴ کې په لندن کې زیږیدلی دی.

## په معاصر تاریخ کې د طبابت نوښتونه او پرابلمونه

د اتلسمې پیړۍ دویمه نیمایي کې د روسیي مسکو ښار کې د شکسته بندۍ یو ښوونځی پرانستل شو.

د اتلسمې پیړۍ په نیمایي کې ټول هغه معلوماتونه چې کوچنیانو او کاهلانو کې د ولادي او کسبي سؤ اشکال په حرکي سیستم اتکا کې د پروفیسور اندرې چې په پاریس کې د فزیک د دیپارتمنت آمر ؤ په ۱۷۴۱ کې لیکلی دی چې په هغه زمانه کې د لومړۍ ځل لپاره د اسکلیت شکسته بندۍ ټول پخوانی معلوماتونه یې د اورتوپیدی یا د اسکلیت سؤ اشکال د فن وقایه او معالجه په کوچنیانو کې د مور او پلار له خوا او هغه څوک چې د کوچنیانو په روزنه کې سره کار لري، په پخواني مباحثو کې توضیح ورکړل شول.

«د کوچینانو درسته فزیکي تربیه» د کتاب په دویم ټوک یې آندري د بدن د اصلاح لپاره نارمل پوزیشن، (S) ماننده انحرافي په هکله ولیکل، او لومړۍ کس و د کوچینانو ولادي خلع (CDH) او د پنډۍ مختلف سؤ اشکال ته متوجه شو او د کوچینانو درسته تړلو او ډیر زر قدم اخستل ضررونه یې توضیح کړل. او د دغه سؤ شکل د اصلاح لپاره، د کږې ونې یوه سیخه (راست) پایه وتړل شي، سیم یې کړ او توضیح یې ورکړ چې که د ونې نشو د نمایي پروسه کې سم لرګی وتړل شي د تنې د سؤ شکل څخه مخنیوی کیدلای شي. چې دغه رسم اوس د اروتوپیدی بین المللی سمبول پیژندل شوی دی.

ر.ر ویردین د آندري د نظریاتو په توضیح کې لیکي: «اورتوپیدی د جراحي څخه یوه بیله شوی اختصاصي څانګه ده چې د ولادي او کسبي ټولو سؤ اشکالو، اطرافو، فقراتو، مختلفي پتالوژي ګاني، تروماتیک آفات، د عظامو نرۍ او همدارنګه د حرکي سیستم اتکا ارجاعي عملیاتونه او مفاصل او د مفاصلو پروتیز مطالعه، تحلیل او درملنه په برکې نیسي»[1].

د مسکو د تراوماتولوژی کالج د ی.او.موخین له خوا چې د روس لومړنی تراوماتولوګ ویلای شو، تاسیس شو. نوموړی د تراوماتولوژ او اورتوپیدی په برخه کې شل کتابونه او مونوګرافونه ولیکل چې ډیر مشهور یې د «د هډوکو د علم اساسات ۱۸۰۶» دی چې کیدای شي د روسي ژبې لمړنی سیستماتیک درسي کتاب وی چې په هغه کې د خلع او کسرونو خلع،

---

۱- دوکتور سیاووش، تاریخچه اورتوپیدی در افغانستان و جهان ۲۰۰٦کابل، ص-۵۹

د درملنې میتود او د آمپوتیشن د عملی اجرا د لاستکونی په میتود چې تر اوسه د استفادی وړ دی، ځای ورکړل شوی دی. په کال ۱۸۱۳ په روسی ژبه دری ټوګه اناتومی یې ولیکل. لنډه دا چې د نولسمی پیړۍ په پیل کې د اورتوپیدی دوه ښوونځی په لیننګراد او په ماسکو کې د جراحی او اورتوپیدی طبی اکادمی وجود درلودل.

د روسیی یو ډیر مشهور عالم نیکولای ایوانویچ پیراګوف (۱۸۱۰-۱۸۸۱) دی چې د شوروی په طبابت کې یی د حرب جراحی بنسټ یې کیښود. نوموړی د کریمیا د جګړې په جبهاتو کې او در روسی او عثمانی ترکانو په جګړه کې د لومړۍ ځل لپاره د نرکوز په موخه دایتر څخه او د پلاستر څخه د معالجوی – ترانسپورتی تثبیت کوونکی په حیث استفاده وکړه. نوموړی د هیماتوم رول په Regeneration Reparative هډوکو کې یاد کړ.

نوموړی د تدریس لپاره لـه اناتومی او د اجسادو یخ وهلی اسکلیت اناتوموتوګرافی مقطعونه اماده کړل. د نوموړی د لاسته راوړونو څخه یې یو هم د پیراګوف په میتود د قدم آمپوتیشن و چې د Sayme آمپوتیشن سره شباهت درلـود، خـو پـه یـو تفـاوت او Modificartion چـې د -Talo navecular مفصلی سطحی قطع شوی مقطع د انبورقضـی شـعبی قطـع شوی مقطع د اوستیو پلاستیکی سره په یو تماس کې قرار ورکول کیږی.

د نولسـمی پیـړۍ پـه منځنیـو وختونـو کـې د پروتیـز پـه هکلـه نـوی معلوماتونـه چـاپ شـول. پـه کـال ۱۸۰۸ کـې ی.پ.کـولیبن لـومړنی مفصـل لرونکـی پروتیـز یـې جـوړ کـړ. د انتـی سـپتیک پـه عصـر کـې د مختلفـو اورتوپیـدی عملیـاتونو زمینـه مسـاعده شـوه. نیکـولای دینـی او نـور چـې ډول ډول عملیاتونـه یـې پـه عضـلی مفصـلی اپـرات کـې لکـه Osteotomy, Resection او عظمـی پلاسـتیک اجـرا کـړل. د نولسـمی پیـړۍ او یـا یمـو کلونـو کـې جراحـاتو د مفاصـل کـاذب د درملنـې طریقـی پیشـنهاد کـړل او د مختلفو موادو سره اوستوسنتیز یې اجرا کړل.

پـــه کـــال ۱۸۷۶ د درپیـــت انســـتیتوت د هـــډوکو مشـــهور جـــراح د ک.ک.رییر په نامه یو کتاب یې (د مفاصل کاذب د درملنې په باره کې او د مفاصل کاذب درملنې ناوړه نتایج) د دیفون باخ په میتود تشریح او تحلیل کړ. په کال ۱۸۹۲ کې پروفیسور و.ی.کوزمین د اوږدو هډوکو کسرونو په دوو واقعو کې د هډوکو په داخل کې د فلزی Screw څخه استفاده وکړه.

د نولسمې پیړۍ په وروستیو کې رونتګن په ۱۸۹٥ کې د ایکس شعاع یې اختراع کړ چې د عظامو په تشخیص او درملنه کې موثر رول لوبولی دی چې د هغه په واسطه حرکي اتکا سیستم پتالوژی او تراوما په ښه صورت سره تحلیل او ارزیابی شی او ورسره د نړۍ په مختلفو هېوادونو کې د اورتوپیدی مختلف کلنیکونه مینځ ته راغلل.

Lorenz د Club foot اناتومیک خصوصیات، د DH اطفالو ولادی خلع، Flat foot او Operative او Conservatioe درملنې یې توضیح او تشریح کړل.

په کال ۱۸۹۰ د لیننګراد د نظامی طب په اکاډمی کې د لومړۍ ځل لپاره د پلاستر او جراحی حرب درسونو سیکل درسی پروګرام کې شامل شو. په کال ۱۹۰۰ کې د لیننګراد نظامی طب اکادمی کې د تراوماتولوژی او اورتوپیدی لومړنی کافدرا بنسټ کیښودل شو چې په لومړیو کې ٦۰ بستریې درلود.

د هغې زمانی په روسیه کې د اورتوپیدی او تراوماتولوژی د بنوونځی بنسټ ایښودونکی ګنریخ ایوانویچ تورمز بللای شو. په کال ۱۹۳۱ یو انستیتوت یې د معیوبو کوچینانو فزیکی قابلیت اعاده کولو په نامه جوړ کړ چې تر ۱۹۴۱ کال د ژوند تر وروستیو کلونو د دې انستیتوت دایرکتر و. د هغه عمده کارونه په لاندې ډول دي:

- د پلاستر نوی تخنیک
- د Patella سابقه کسرونو درملنه
- د فقراتو توبرکلوز
- د مارشی قدم کسور
- د فقراتو انومالی، په خاصه توګه Spina Bifida او Spondylolesthesis
- د کسورو په تداوی کې اسکلیتی کشش او د هغه بدلول په پلاستر سره
- او د تورنر تجربی د عصبی سیستم رول د کسورو په تداوی او التیام کې، یادولای شو.

د لیننګراد (سن پیترزبورګ) نظامی طبی اکادمی د اورتوپیدی او تراوماتولوژی کافدار چې د تاسیس څخه یې سل کاله تیریږی نړیوال پرستیژ

لرى او ډير عالي مقام استادان لکه سرګى ستيپانويچ تيکه چينکه، د يميانوف، يسـتربکوف، ګريتسـانوف، شـپه والـوف، دولايـوف، اوپرکيـف، ابوشـينکه، بالاووسـوف، ديدوشـکين، ګايـدوکوف او نـور يـې تربيـه کـړى او د پخـوانى شوروى اورتوپيدستانو کولکتيف او نړئ ته وړاندى کړى دى.

**سرګى ستيپانويچ تيکه چنکه Cirgi Stepanovich Teka Chenka:**

پروفيسـور تيکـه چينکـه پـه شـوروى کـې د نظـامى اورتوپيـدى او تراومـاتولوژى يو لـه بنسټ ايښـودونکو څخـه دى د نوموړى علمـى تحقيقات لاندې مسايل په برکى نيسى لکه عظمـى پلاستيکونه، داخل عظمـى انستيزى پـر نـاريوى تراومـا، د عظمـى Regeneration Reparative پروسـى تسريع، د تثبيتى طريقو موثريت او ډولونه يې پـه حوصـله کسورو او فقراتـو پتالوژى کې د اختلاطاتو مخنيوى دى.

نومـوړى د ۵۰۰ علمـى آثـارو مولـف دى چې پـه جملـه کـې يـې ۲۲ مونوګرافونه او درسى کتابونه شامل دى.

پروفيسور تيکه چينکه ۱۷۰ نوى لاس ته رواړنى او اختراعو مولـف دى چې له هغو جملى څخه د فکساتور څو سورى لرونکى پلکونـه د فقراتـو کسور لپـاره، حلقوى سيستم او سينتوسنتيز د محراقـى څخـه د باندې د خلفـى Spondylosis ميتود د وړانديز شوى رادونـو پـه واسطه چې د ده پـه نـوم يادېږى او نورو څخه يادونه کولاى شو.

نوموړى په نړيوال کانفرانسونو او کانګرسـونو پـه امريکـا، سـويس او کيوبا کې اشتراک کړى دى. او مسلکى سفرى کارونـه يـى څـو ځلـى بلغاريـا، ديموکراتيــک المــان، هنګــرى، چــک ســلواکيا او افغانســتان تــه کــړى دى. همدارنګه د مخترعينو په يو ځلوېښتم نړيوال نمايشګاه کې (د افريقا -۹۲ پـه نامه) په بروکسل کې د طلايى مدال په اخستلو بريالى شو.

د افغانستان د نظامى اورتوپيدى او تراومـاتولوژى بنسټ ايښـودونکى لکه اکاډميسن پروفيسور محمد موسىٰ وردګ، محمد نصير فيضـى، دوکتـور محمـد رحمـان، دوکتـور محمـد ايـاز، دوکتـور عبـدالرزاق سـياووش، د دغـى کافدارا شاګردان دى چې د اورتوپيدى او تراوماتولوژى مسلکى اساسـات يـې په دغه کافدرا کې زده کړى دى.

ک.خ خـورن د پروفيسـور ريبـر شـاګرد پـه کـال ۱۹۰۲ د اورتوپيـدى يوى نـوئ موسسـى د حرکـى اتکـا سيسـتم د ترضيضـاتو درملنـې لپـاره چې د

پروتیز یو ورکشاپ یې هم درلود بنسټ کیښود خوتر پرانستلو د مخه لـه دی نړۍ څخه سترګې پټې کړی.

ویریدین له جنګ څخه په اورتوپیدی او تراوماتولوژی کې نوی لاس تـه راوړنـی لـری چې د اورتوپید پـه توګـه د نـړۍ پـه سطحه وپیژنـدل شـو. نومـوړی د عملیـاتو شـل طریقـی پیشـنهاد کـړی چـې د هغو لـه جملـی څخـه د مفصل هانش Arthroplasty، د زنګون Halluxvalgus طریقـی عملیـات او د Flat Foot عملیاتونه او د عنق الدم ارترودیز څخه نـوم اخستلای شـو. د ده د لارښونی لاندې پراکتیکی اورتوپیدی Text Book ولیکل شو.

په کال ۱۹۰۷ کې د پروفیسور ک.ف ویګنر تر لارښونی لاندې پـه خـارکوف کـې طبـی میخـانیکی انسـتیتوت پرانسـتل شـو. همدارنګـه د شـوروی څخه باندنی هېوادونو پـه اورتوپیدی کـې ډیر مهم انکشـافات مینځ تـه راغلل چـې لـه دغـو جملـی څخـه کـولای شـو د Tubersitas Tibia اسـتحالوی اوسـتیو کانـدروز د نـاروغی تشـریح پـه کـال ۱۹۰۳ کـې د Osgood او Shlater له خوا اخستلای شو.

همدارنګه په کال ۱۹۰۸ تر ۱۹۱۴ د Keller د Navicular اسپتیک نکروز عظم د قدم د دویمی ګوتی راس میتاترس تشریح کړل. په کال ۱۹۱۰ په کوچنیانو کـې Sosteoeondropathy د Legg Calveperthes پـه نوم ولیکل شو.

پـه کـال ۱۹۲۱ Sheurmann او څـه موده وروسته Mau پـه کـال ۱۹۲۴ کـې پـه کوچینـانو کـې د Dystrophic آفـاتو پـه برخـه کـې مفصـل توضیحات ورکړل شو.

په کال ۱۹۱۸ کې د کازان اورتوپیدی انستیتوت تاسیس شو او په کال ۱۹۲۱ پـه مسـکو کـې د ن.ی.پیـروروف پـه ابتکـار معـالجوی موسسـه او د مسـکو پروتیـز انسـتیتوت تاسـیس شـو. پـه ۱۹۴۰ کـې پـه دغـه انسـتیتوت کـې میتــودیکی لارښــود د ترومــاتیزم پــر ضــد مبــارزه او د اورتوپیــدی او تراوماتولوژی اختصاصـی مرسـتو اورګانزیشن چاپ شو چې پـه دی اسـاس د دغـه انسـتیتوت نـوم د اورتوپیدی او تراومـاتولوژی مرکـزی علمـی تحقیقـاتی انستیتوت (سیتو) په نامه یادیږی.

په کال ۱۹۲۱ د خارکوف طبی انستیتوت د پروفیسور م.ی.ستیسـنکه لــه خــوا بنســټ کیښــودل شــو. نومــوړی د کــاذبو مفاصــلو درملنــه، عظمــی استیوپلاستی، ناریـه جروحـاتو درملنـه کـې زیـات زحمتونـه ګـاللی دی. د ی د لومړۍ ځل لپاره د کوچینـانو د اورتوپیدی وقـایوي- معـالجوی مرکـز بنسـټ

کېښود چې په هغه کې نه یوازې درملنه صورت نیو بلکې د اورتوپیدی د کادرونو مسلکی روزنه هم کېدله. په کال ۱۹۴۰ کې وروسته د ده له مړینې د اوکرائین د اورتوپیدی او تراوماتولوژی علمی تحقیقاتی انستیتوت د ده په نامه ونومول شو.

د دویمی نړیوالی جګړې څخه وروسته اورتوپیدستانو کوښښ کاوه ترڅو داسې میتود پیدا کړی چې د هغه په واسطه د کسرونو ډېره ښه درملنه د میخواو فلزی سیمونو څخه استفاده وکړی. د فلزی الیاژونو معرفی ډېر ښه موثریت یې ثابت کړ، یو بل ګروپ د باکیفیته او ډېر ښه مصنوعی مفاصل چې ډېر مستحکم ولاس ته راوړل چې د کسورو د پرابملونو د حل او تداوی څخه برسیره، د مفاصلو په التهاب کې هم ورڅخه ګټه اخستل کیده.

انتی بیوتیک او د کسرونو او ناروغیو د تشخیص ښه هم انکشاف وکړ. پوهانو په وروستیو کلونو کې د عظامو التیام په ابتدایي او ثانوي شکل د عظمی نسج Regeration Reparative سوالونو حل ته ډېر مصروف شول. دغه پوهان عبارت وو له ا.و. روساکوف، ت.پ ووینو ګرادوف، ګ.ی لفریشوو، و.ی.استاسوولا، ی.ګ دبروف او نور.

د و.ا چرنوفسکی، ګ.س یوماشوف، م.و.ولکوف، او.ن ګودوشاوورى علماو تحقیقات وښودل چې د کسورو په معالجه کې د Conservative او Operative میتودونو استفاده او استطباب مطلق نشی کیدلای، د هری طریقی استطباب باید په انفرادی ډول او د یو تعداد بیولوژیکی، میخانیکی، انذاری او ایتولوژیکی فکتورونو په نظر کې نیولو سره کېښودل شی.

**پروفیسور الیزارووف Prof. Govril Abramovich Ilizarov** (۱۹۲۱-۱۹۹۲):

پروفیسور ګاوریل ابراموویچ الیزارووف د ۱۹۲۱ کال د جون د میاشتې په ۱۵ نیټه د پخوانی شوروی اتحاد په کوسکاس کې زیږیدلی دی. د نوموړی مور او پلار بې سواده وو او تر ۱۱ کلنۍ پورې زده کړې باندې شروع نه دی کړی. دا ځکه چې د هغی زمانې د ښوونځی بوت، لباس او یونیفورم یې د اقتصادی کمزورتیا له کبله نشو تهیه کولای.

هغه په کال ۱۹۳۹ د Simpherl Medical School of Kerimia ښوونځی کې شامل او په کال ۱۹۴۴ کې فارغ شو او ډېر ژر د سایبریا د قورغان په منطقه پراکتیکی طبی مرحلی کې داخل شو. سره د دې

چې په رسمی توګه د جراحی په برخه کې لازم تعلیمات نه ولیدلی خو یواځنی طبیب و چې په هغه منطقه کې په کار پیل کړی و. د دغی پراکتیکی دوری او په ۱۹۵۰ کلونو او د هغه ځخه وروسته د اورتوپیدی ډیرو زیاتو مختلفو واقعاتو سره مخامخ شو او دا هغه وخت سره تصادف کوی چې د کسورو په درملنه، سؤ اشکال او عظمی دیفکتونو طرح او اختراع کړ چې د اورتوپیدی په مسلک کې یو علمی انقلاب په توګه محسوبیږی. په همدغه کال د اوستیو سنتیز خارج محراقی په مورد کې د حلقو په واسطه او متقابل الراس سیخونو تیرولو راپور ورکړ خو د پاملرنې وړونه ګرځید. په کال ۱۹۶۰ کې د لومړۍ ځل لپاره د طویله عظامو دیفکت اوږدکولو تر ۱۰ انچو تجربه کړ او ثابته یې کړه چې د مکسوره محراقاتو Compression Destrution عملیه د ده د اپرات د استفاده کولو په صورت کې د التیام پروسه تحریک کیدلای شی.

د دغه میتود په استفادی سره وی کړل شو چې د اولمپیک د لوړخیز یو قهرمان چې والری بورمیل نومیده پارچه یې کسر په کال ۱۹۶۷ کې تداوی کړی چې دغه قهرمان د پښدی یو خلاص کسر ۱۴ ځلی مخکې د الیزارووف د وروستی مداخلی ځخه عملیات شو. د پروفیسور الیزارووف میتود په کال ۱۹۸۱ د یو ایتالوی طبیب Prof.A.Bianchi-Maioecchi پواسطه لویدیز ته انتقال شو.

نوموړی نه یوازی د شوروی اتحاد اکادمیسن په توګه انتخاب شو بلکې د نړۍ د اورتوپیدی تر ټولو لوی روغتون چې په سایبریا کې موقعیت درلود رهبری کړ. دغه مرکز د قورغان د اورتوپیدی او تراوماتولوژی علمي- تحقیقاتی اتحاد یې په نامه یادیده.

نوموړی په کال ۱۹۵۲ لومړی ځل د سیخونو تیرول چې په عمودی ډول د عظم د مقطع ځخه تیر شوی، متقابل الراس زاوی یې سره مینځ ته راوړلې او یاد شوی سیخونه د دستګاه په حلقوی سیستم کې تثبیت کیدل چې حلقی د ارتباطی رادونو پواسطه مرتبط کیدل، توضیح کړ. نوموړی دغه سیستم ته د محراق ځخه د باندې اوستیوسنتیز (اوستیوسنتیز خارج محراقی) یا د عظمی مکسوره محراقاتو دستګاه Compression-Destruction ونومول. یو کال وروسته دی او ګودشاووری نیم حلقوی خارج محراقی سیستم اپرات یې پیشنهاد او ثبت کړل. دواړه د اورتوپیدی په مسلک کې د وخت د دولت د کار قهرمانان ډیری لوړۍ دولتی جایزی وګټلی.

په کال ۱۹۸۸ د ادیسه په ښار کې د اورتوپیدی او تراوماتولوژی نړیواله کنګره کې د الیزارووف اپرات د بیومیخانیک له نظره ډیر مقاوم، ډیر موثر د نورو پیشنهاد شویو اپراتو په پرتله وپیژندل شو. په لنډه توګه ویلای شو چې دغه اپرات د معالجوی کلاسیک تثبیت (پلاستر، اسکلیتی کشش، اوستیوسنتیز داخل محراقي) د دریو طبی تخنیکی ټول خصوصیات په ځان کې لری.

د الیزارووف د اپراتو عمده خصوصیات په دې کې دی چې دواړه حلقی په ځانګړی ارتباط سره او دا دوه حلقی د نورو حلقاتو سره په یوه مجزا ارتباط کې سره قرار نیسی چې په نتیجه کې ویلای شو د Monofocal (د یو مکسوره محراق تثبیت) Bifocal او یا د Trifocal او د هغه زیاتو څخه استفاده وشی.

نوموړی د سایبریا په قورغان کې ۱۵۰۰ بستریز تحقیقاتی انستیتوت یی اداره کاوه چې ډیر شاګردان یې روزلی چې د هغو له جملی څخه یو هم و.ی.استاسولادی د هغه ډیر برجسته شاګرد و.

دی برسیره پر مسلکی کارونو د دوما د مجلس غړی هم و. دی د ۱۹۸۵ کال څخه وروسته په نړیواله سطحه په ټولو اثارو او طبی لتیراتور کې پیژندل شوی شخصیت دی. نوموړی ۴۱ کاله د اورتوپیدی په عرصه کې کار وکړ ترڅو په ۷۱ کلنی کې په کال ۱۹۹۲ سترګی پټی کړی. په دغه موده کې ډیر زیات کلنیکی میتودونه یی د عظمی نسج درخوه انساجو اعاده، ترمیم او احیا، ته انکشاف ورکړ چې د ۲۰۰۰ نشریو څخه زیات په دغه انستیتوت کې چاپ شول چې ټول یې د الیزارووف د الی کلنیکی نتایجو، بیولوژیکی مطالعاتو، تخنیکی تحقیقاتو په مورد کې لیکل شوی دی.

نوموړی د نړی په سطحه د ۵۰۰ څخه زیات نشریی او لکچرونه د خپل تخنیک په هکله نړۍ ته وړاندی کړی دی. پر ځای دی چې نوموړی په اورتوپیدی کې د شلمی پیړۍ افتخار وویل شی.

په وروستیو کلونو کې نور عالمان او مولفین لکه و.ک کالنبرز، م.و ولکوف، ا.و اوکانیسیان، ک.م ساوش، س.س. تیکه چینکه، و.ی فیشکین، و.ا. اورکیف، و.س. ابوشینکه، ا.ی. ګریسانوف، اکادمیسن پروفیسور محمد موسیٰ وردګ، او نورو د دغی طریقی په تکامل او پراختیا کې د قدر وړ کارونه کړی دی.

د اورتوپیدی او تراوماتولوژی علماو ډیری مهمی لاس ته راوړنی د عظامو Auto, Homo, Hetro Plastic انکشاف دی چې په سرکی یې د

عظمــی انســاجو ترانسـفر کـول، او تـوجن قـرار لـری. م.ی سـیتنکه، ا.ر اروبیریدین، ن.ب نوا جینکه، و.د. چاکلین او نور د انکشاف په لاره کې یې د قدر وړ علمی تحقیقات کړی دی.

د شلمی پیړۍ شپږمه لسیزی کې د عظمی انساجو کانسرو شوی مړه انساج په بریالی سره په پراتیک کې پلی شو. همدارنګه د هډوکو په بانک کې د عظمی انساجولیو فلزی کولو لپاره د خلا د میتود څخه په ګټه اخستنی د مولف ګ.س. یوماشووف له خوا بنسټ کیښودل شو.

همدارنګـه و.م دیمیـانوف چـې پـه اتیـایمی لسـیزی کـې د روغتیـا د معاذبرو لـه کبلـه د نظـامی برخـی څخـه تقاعد وکړ او د لیننګراد د کوچینـانو اورتوپیدی انستیتوت یې رهبری کاوه د اورتوپیدی یو لړ زیات اپراتونـه او تجهیزات یې اختراع کړی دی چې د هغو له جملی څخه یوه هم ګونیا (زاویـه سنج) ده چې د عنق فخذ پـه عملیـاتو کـې د استقامت پیدا کول دی چې عنق فخذ پـه اوستیوسنتیز عملیـات کـې د Smith Peterson Nail پواسـطه صـورت نیسـی. دا پـه هغـه وخـت کـې وی چـې فلورسـکوب موجـود نـه و. همدارنګه په معاصر طبابت کې تشخیص وسایلو هم پراختیا وموند لکه: اون بروګر Auenbrugger (۱۷۲۲-۱۸۰۰) د ناروغی د محراق د څرنګوالی په تشخیص کې قرع یا Percussion یې ور زده کړ. لائنیـک Laennec فرانسوی طبیب په کال ۱۸۱۰ کې استاتسـکوپ یـی د زړه او سږو د اوازو د تشـخیص لپـاره پـه کـار یووړ. هلم هولتز Helmholtz پـه کـال ۱۸۵۰ کـې افتلمسکوب یې د قعرعین د مشاهدې او معاینې لپاره په کار یووړ.

د نولسمی پیړۍ په منځنیو کې چې برق کشف شو برقـی دستګاوی د مثانی د ننه لیدلو لپاره سیتستوسکوپ، د قصباتو داخل لپـاره برونکوسـکوپ، د مری د ننه لپاره ازوفاګوسکوپ، او د معدی لپاره ګستروسکوپ د ناروغیو د تشخیص لپاره په کار ولویدل.

کیمیا خصوصاً عضوی کیمیا په تدریج سره تکامل وکړ او د ادرار، د معدی افرازات او ترشحات، وینـه او نـور پـه لابراتوارونـو کـې د تشـخیص لپاره په کار یوړل شول.

د سپینو ګلوبولونو دولونو تعیین (لوکوسیتر فورمول)، د ادرار شوکی نخـاع مـایع وینـی او نـور افـرازات د اجسـامو مشـاهده پـه لابراتـوار کـې د نـاروغیو د تشخیص لپـاره پـه کـار یوړل شـول. همدارنګـه د تومـور نسـج پـه میکروسکوپ (بیوپسی) کې مشاهده د تشخیص لپاره زیاته مرسته وشوه.

لنډه دا چې د نولسمې پیړۍ په وروستیو او شلمې پیړۍ په لومړیو کې د ناروغیو تشخیص وسایل دومره تکامل وکړ چې په بستر کې د ناروغ معاینه لابراتوار، اکسری خونې او نورو ته انتقال شو. ترڅو د ادرار، وینې، غایطه مواد او نور او د زړه، سږی، معده، بډوډو او نورو عکس اخستل درست تشخیص لاس ته راوړل شي.

د بیهوشی او نرکوز لپاره په کال ۱۸۴۱ کې جاکسون امریکایی طبیب دایتر د بیهوشي کولو تاثیر باندې پوه شو او په کال ۱۸۴۷ سیمسون د ښځو د ناروغیو انګلیسی متخصص د بیهوشۍ په موخه کلورو فورم یې په کار یوړل او د ایتراوکلورو فورم د کشف سره جراحی عملیاتونه بې له درد او ناراحتی څخه میسر شو.

ویلیام جی مور (۱۸۱۹-۱۸۶۷) انشاقی انستیزی یې عملی کړ.

زمل وایس Semmel Weiss (۱۸۱۸-۱۸۷۰) اتریشی نسایی ولادی متخصص د لومړی ځل لپاره پوه شو چې د نفاسی تبې علت د طبیب او قابلې د لاسونو، سامان او مالزمی د کثافت څخه دی چې عفونت رحم ته انتقالوی. پدې توګه زیمل وایس ته د میندونجات ورکوونکی ویل کیږی.

د میکروب د کشف څخه وروسته چې د پاستور له خوا صورت نیولې دی. میکروب زره بینی ژوندی موجود دی چې د عملیات څخه وروسته د زخمونو د عفونت سبب ګرځی، بل عالم د لیستر په نامه په کال ۱۸۶۷ کې د میکروبونو د وژلو لپاره اسید فنیک یې کشف کړ چې وروسته ډیر موثر درمل د هغه ځای وینو چې د لاسونو، د عملیاتو لوازم. د عملیاتو ځای په هره جراحی عمل کې ضد عفونی کول رواج وموند.

اتریشی جراح بیلروت او سویسی جراح کوخر د پروستات، مری، معدی او رحم عملیاتونه اجرا کړل. بیلروت د لومړی ځل لپاره یوه سرطانی معده عملیات کړ او ماوفه قسمت یې غوڅ کړ او لیری واچاوه. فرانسوی (Roux) او سویسی کوردن د کوخر شاګردان و چې د نولسمې پیړۍ وروستیو کې وتلی جراحان ول.

په ۱۹ پیړۍ کې هم لکه پخوانیو پیړیو انتانی ناروغی، کوی، کولرا او وچکی په اروپا کې څو څو ځلی ظهور وکړ چې په سل ها ورزه انسانان تلف شول. په ۱۸۳۱-۱۹۰۶ کلونو کې د کولرا ناروغی څو ځلی اروپائي ونیو او حتی امریکا ته یې هم سرایت وکړ. په ۱۸۷۰-۱۸۷۲ کې د کوی ناروغی المان کې زیات تلفات منځ ته راوړ. په ۱۸۹۲ کال په ایران کې

زیات خلک ووژل. په همدې ترتیب په یاد شوی کلونو کې افغانستان او هندوستان کې کولرا زیات تلفات منځ ته راوړ.

ځرنګه چې د ساری ناروغی عامل یعنی مکروب یې پیژندل شوی نه و، نو مخنیوی او وقایه یې هم غیر ممکنه وه. کله چې د پاستور له خوا مکروب کشف کیږی، د میکروبی او ساری ناروغیو مخنیوی او وقایی لپاره واکسین لاس ته راغی.

**پاستور Pasteur** (۱۸۲۲-۱۸۹۵):

فرانسوی کیمیا او بیالوژی پوه کله چې د شرابو تخمر ځرنګوالی مطالعه کاوه، په کال ۱۸۵۴ کې ولیدل چې یو زره بینی ژوندی د تخمر سبب شوی دی. د دغه لوی کشف څخه په دې نتیجه ورسید چې زره بینی ژوندی موجودات کولای شی چې عفونی ناروغی منځ ته راوړی.

نوموړی وروسته له پلټنې څخه د استرپتوکوک میکروب چې قیح منځ ته راوړی او د تور زخم باسیل یې کشف کړ او پوه شو چې په حرارت سره د مکروب د سمیت شدت کمیږی. په دې طریق د تور زخم باسیل چې لږ سمیت لری د تور زخم واکسین یې تهیه کړ. د پاستور وروستی کشف د هاری واکسین وو.

روسی بیالوژی پوه میچینکوف (Metchinkov) په کال ۱۸۸۴ کې فاګو سیتوز یې کشف کړ. نوموړی د پاستور شاګرد و چې د ۱۸۴۵-۱۹۱۶ کلونو ترمنځ یې ژوند کاوه.

روبرت کوخ Koch په کال ۱۸۷۶ د تور زخم (سیاه زخم) د مکروب خالص کښت باندې بریالی شو، د میکروب رنګول یې په اتیلین زده کړ او همدغه پوه وروسته د نری رنځ او کولرا میکروبونه یې پیدا کړ، نوموړی ته د باکتریولوژی بنسټ ایښودونکی ویلای شو.

د ناروغی مولد اکثره میکروبونه د ۱۸۷۰-۱۸۹۰ کلونو ترمنځ کشف شوی چې د میکروبونو نومونه او کاشفین یې په لاندې ډول ذکر کیږي:

☜ د راجعی تبی اسپروکت د برلین طبیب ابرمایر Obermeier له خوا په کال ۱۸۷۳.

☜ یو سلولی آمیب د آمیبی اسهال مولد د روسی طبیب لش Lesch له خوا په کال ۱۸۷۵.

- د جـــــزام باسیل ناروېژی طبیب هانزن Hansen له خوا په کال ۱۸۷۹.
- ګونوکوک یا سوزاک د مقاربتی ناروغیو طبیب نایسر Neisser له خوا په کال ۱۸۷۹.
- هماتوزونر ملاریا د فرانسوی طبیب لاوران Lavran له خوا په کال ۱۸۸۱.
- د نرې رنځ میکروب المانی میکروب پیژندونکی کوخ له خوا په کال ۱۸۸۲.
- د کولرا یا وبا میکروب د کوخ له خوا په کال ۱۸۸۳.
- دفتری باسیل د برلین د طب پوهنځی استاد لوفلر Loffler له خوا په کال ۱۸۸۴.
- د محرقی باسیل د سویسی میکروب پیژندونکی ابرت Ebert له خوا په کال ۱۸۸۴.
- پنومونوک د پنومونی ناروغی مولد د المانی طبیب فرانکل له خوا په کال ۱۸۸۶.
- میننګوکوک د مننژیت ناروغی عامل د وین طبیب وایک سیلبام Weichselbaum له خوا په کال ۱۸۸۸.
- د نرم شانکر باسیل د روم د مقاربتی ناروغیو متخصص دوکری Ducery له خوا په کال ۱۸۸۹.
- د انفلوانزا ویروس د برلین میکروب پیژندونکی فایفر Ferffer له خوا په کال ۱۸۹۲.
- د طاعون باسیل په فرانسه کې د حفظ الصحی استاد یرسین Yersin او جاپانی میکروب پیژندونکی کیتاساتوKitasato له خوا په کال ۱۸۹۴.
- خونی اسهال باسیل جاپانی میکروب پیژندونکی شیګا Shiga او المانی میکروب پیژندونکی کروزه Kruse له خوا په کال ۱۸۹۸.
- اسپیروکت د سفلیس ناروغی عامل حیوان پیژندونکی شاودین Schaudin او جلدی او مقاربتی ناروغیو المانی هوفمان Hoffmann له خوا په کال ۱۹۰۵.

☜ د تیتـــانوس بـــاسیل المـانی طبیـب نیکولایر Nicolaer لـه خـوا پـه کال ۱۸۸۴.

پـه کـال ۱۸۹۲ روسـی فزیولـوژی پـوه د تنبـاکو پـه پـاڼو کـې یـو ډول نـاروغی د موزائیـک Mousaique ویـروس پـه واسـطه پـوه شـو. څکـه د تنباکو ناروغی پاڼی وروسته د کښت څخه کله چې د صافی څخه تیر شی بـاکتری سـاتی، چـې د موزائیـک د نـاروغی عامـل و. کلـه چـې وروسـته زوریکین Zworykin الکترونی میکروسکوپ یې چې اجسام سل زره کرته غټ ښیئ کشف کړ د پورتنی ویروس مشاهده ممکنه شوه.

د پاستور له شاگردانو څخه کالمت Calmet ، د گرن Guerin پـه همکـاری سـره پـه کـال ۱۹۲۶ کـې د غـویي تضـعیف شـوی واکسـین د (B.C.G) په نامه نوی زیږیدونکو کې تلقیح کړ ترڅو د نری رنځ نـاروغی مقابل کې معافیت پیدا کړی.

سالک Salk چې امریکایی دی په کـال ۱۹۴۵ کـې د کوچینـانو د فلـج (گوذڼ) واکسین چې د ناروغی مولد ویروس یې تضعیف کړی و، کشف کړ.

المـانی میکـروب پیژنـدونکی برینـگ Behring او جاپـانی میکـروب پیژنـدونکی کیتـا زاتـو پـه کـال ۱۸۹۰ د ژوو د وینـی پـه سیروم کـې چـې د دفتری ضـعیف شـوی میکـروب بانـدې واکسین شـوی و د دفتـری لـه نـاروغی څخـه مخنیوی کـوی او حتـی دفتـری نـاروغی معالجـه کـوی. دواړو پوهـانو د تیتـانوس انتـی توکسین یـې لاس تـه راوړل. دوی د سیروم پـه وسیله درملنـې بنسټ ایښودونکی دی.

فرانسوی پوه بکرل Becquerel د شلمی پیړۍ په پیل کې د لومړی ځل لپاره پوه شو چې پـه طبعیت کـې رادیواکتیف، اورانیوم، رادیـوم او نـور عناصر موجود دی چې لـه ځانـه د الفـا، بیتـا او گامـا شـعاعی ذرات پـه دایمـی ډول انتشار وی چې د هغوی هسته دماتیدلو په حالت کې دی.

فرانسـوی دوه د فزیـک نـور پوهـان مـاری Marie او پیرکـوری Pierrecurie وپوهیدل هغه اجسام چې په دایمی توگه تشعشع لری او د اتم هسته یې د ماتیدلو په حال کې وی، د زمان په تیریدلو سره نورو عناصروته تبدیلیږی.

په کال ۱۹۴۰ کې ایرن Irene او فریدریک ژولیو کوری Fredric Jolilcurie ثابته کړه چې نـور اجسـام هم کیدای شـی د طبیعـی رادیـو اکتیـو عناصر په مجاورت کې رادیو اکتیوشی (د رادیو اکتیوایزو توپونه).

د رادیوم تشعشعات او د رادیو اکتیوایزو توپونه د اکس اشعه یی په څیر د قوی فشار او ډیر ولتاژ سره د نفوذ قدرت لری او د بدن په انساجو کې عمیق تاثیر اچوی چې د سرطانی تومورونو په درملنه کې په کار وړل کیږی.

۱۸۵۰ کال د ژنیکولوژی (نسایی او ولادی) علم د نوی فصل پیل ګڼل کیږی. لومړنی ګام د ځوان جراح جمس ماریون سمیز James Marionsims له خوا په امریکا کې واخستل شو. په هغه زمانه کې په مشکلو ولادتونو کې د فورسپس څخه کار اخستل کیده چې په ډیرو ښځو کې وزیکو واژنیال فستول منځ ته راته او داکتر ماریون سمیز لومړنی کس و چې د جراحی په واسطه دغه فستول ترمیم کړی. داکتر سمیز او دوه ښځی دورموس Dormus او استور Astor په نړۍ کې لومړنی د ښځو روغتون د (د نیویارک د ښځو روغتون) په نامه په کال ۱۸۵۵ کې پرانستل شو. دغه روغتون دیرش بستره درلود او د لرګیو یو میز عملیات درلود. لومړنی ناروغ یوه ایرلیندی ښځه وه چې په فیستول مصابه وه.

برسیره پر هغه سمیز لومړنی کس و یوه شو چې القاح یواځی د دولسمی تر شپاړسمی ورځی د میاشتی ناروغی څخه وروسته میسره ده.

همدارنګه د اسپرم د معاینی طریقه یې ابداع کړ چې دغه موضوع په نړۍ کې شور او زوږ پیدا کړ او دغه څیرنه په ټوله نړۍ کې د سمیز تست په نامه ونومول شو.

نوموړی د اویا کلنۍ په عمر په کال ۱۸۸۳ کې وفات شو.

سوبولوف Sobolew روسی طبیب په کال ۱۹۰۱ کې د لانګیرهانس جزایر د خوسکی په پانکراس کې د شکری د ناروغی درملنې لپاره په بریالی په کار واچاوه.

بان تینګ Banting، بست Best او ماکلود Maclod دری واړه کانادایي طبیبان په کال ۱۹۹۲ کې د لانګرهانس جزیرو هورمون انسولین یې کشف کړل.

فونک Funk لهستاننی کیمیا پوه په کال ۱۹۱۲ د ویتامینونو په موجودیت پوه شو او د ویتامین $B_1$ کیمیاوی جوړښت یې تعیین کړ.

فلمینګ Fleming انګلیسی میکروب پیژندوکی په کال ۱۹۲۹ پنسلین یې کشف کړ او لس کاله وروسته د ناروغانو په اختیار کې قرار ونیو.

واکسمان Wacksmann امریکایی طبیب په کال ۱۹۴۴ د بل انتی بیوتیک ستریپتومایسین په کشفولو بریالی شو چې د نری رنځ په درملنه کې استعمالیږی.

دوماک Domagk المانی طبیب په کال ۱۹۳۵ د سلفامید په کشفولو بریالی شو. لمړنی سلفامید د پرونتوزیل په نامه و.

لاندشتاینر Landsteiner د وینی میکروب پیژندونکی په کال ۱۹۰۱ کې د وینی گروپونه یې ومونده، نوموړی د اتریشی وینر Wiener عالم په مرسته بل عامل یې د ریزوس Rhesus په نامه وینه کې کشف کړ چې په کال ۱۹۳۹ کې د RH په نامه مشهور شو.

فیلاتوف Filatow شوروی پوه د لمړۍ ځل لپاره په کال ۱۹۱۳ کې د قرنیې په پیوندولو بریالی شو.

د شراینو او غټو اوردو د گنډلو لپاره اتوماتیکه دستگاه د شوروی انجینرانو او طبیبانو (په سر کې یې ورنوژا Woronoj او گودو Gudow) له خوا کشف شوه په کال ۱۹۴۵ کې د اعضاو پیوندول آسانه شو.

ولادیمیر دمی خوف Demechow شوروی جراح په کال ۱۹۵۰ د یو سپی باندې تجربې وکړې چې د زړه جراحی نوی امکانات وربandی زیات شو. په کال ۱۹۵۷ د دوو سپیو سرونه د غاړی په برخه کې پیوند کړی چې دغه دوه سپی سرونو یوه میاشت ژوند وکړ. نوموړی پدی بریالی شو چې د یو سپی زړه د بل سپی د سینی په قفس کې پیوند کړی په دې توگه یو سپی د دوو زړونو خاوند و.

مریل Merril امریکایي جراح په کال ۱۹۵۴ د لمړۍ ځل لپاره د دوو غبرگونو ورونو بډوډی تعویض او پیوند کړی او تر اوسه په زرهاو د بډوډو پیوند صورت نیولی دی. په جراحی کې د اعضاو پیوندول بلې مرحلی ته داخل شوی او نوی سرحد یې خلاص کړی دی. په انسان کې د لاس، پښو، زړه، سږو پیوند خپلی ازمویني مخ ته بیایي.

په زړه کې د دسام متیرال جراحی لومړۍ د امریکایي جراح چارلز بیلی له خوا د ۱۹۴۷ په وروستیو کې صورت وموند، خو ناروغ سمدستی مړ شو. نوموړی ځو ځلی دغه کارته ادامه ورکړه خو بریالی نه و. خو وروسته دغه عملیاتونه نتیجه ورکړه او د هغه د شهرت سبب شو. څه موده وروسته نور جراحان لکه دوایت هارکن Dwight Harken او په لندن کې

سیر روسا بروک Sir Russa Brock دغه عملیات په بریالی سره تکرار کړ ترڅو د دسام مترال جراحی عملیات عملی شو.

وروسته د زړه د عملیاتونو د پرمختګ په مسیر کې د مترال تضیق د ابهر، تضیق او همدارنګه د دغو د سامو عدم کفایه جراحی د نړۍ په ټولو برخو کې معمولی امر ته تبدیل شو.

کریستین برنارد د سهیلی افریقا طبیب د دسامبر په دریمه کال ۱۹۶۷ کې د جنوبی افریقا Cap په ښار کې د ګروت شور Groot Sehurr په روغتون کې یو سړی چې لوی واشکانسکی Louis Washkansky او ځلورپنځوس کاله یې عمر درلود او د شرائینو تصلب، دیابت ناروغی یې درلودل زړه یې ډیر ناتوانه د مرګ په حالت کې د زړه پیوند یې صورت وموند.

څو ساعته وروسته په ځلورو ساعتو او پنځه ځلویښت دقیقو کې یو کلیوالی جراح چې تر هغې زمانی نوم او نښان یې نه درلود. د یو انسان څخه بل انسان ته د زړه پیوند یې په واقعیت باندې بدل کړ او چیغ یې کړ چې «دغه زړه په لاره به ځی».

د زړه ورکوونکی یادونور یوه ځلورویښت کلنه ښځه وه چې د تصادف په پیښه کې مړه شوی وه. خو وروسته د اتلسو ورځو د انتان له کبله مړ شو.

دغه ځلی داکتر برنارد یو زړه یی د داکتر بیسبرګ ته پیوند کړ چې نولس میاشتی او پنځلس ورځی د داکتر بیسبرګ ژوند اوږد شو. او د زړه پیوندول د داکتر برنارد له خوا فتح شو.

په استرالیا کې د سرطان د ډولونو او ایدز د درملنې لپاره د واکسین تولید په داسی حال کې پیل شو چې د ۱۹۷۳ تر ۱۹۷۵ ډیر ګټه ور او مفید تحقیقات د استرالیا د دوو پوهانو له خوا د کانبرا په ښار کې د جان کورتین John Cartin د طبی څیړنو پوهنتون کې سرته ورسید چې په پایله کې غټ کشف ترسره شو. د دوی کشف د دې موضوع د درک سبب شو چې «د بدن معافیتی نظام څرنګه داسی سرنوشت ساز تصمیم نیسی چې کوم سلول سالم دی او کوم سلول سالم نه دي». په واقعیت کې هغوی زمونږ فهم ته یې بنسټیز تغییر د معافیتی نظام څرنګوالی په هکله ورکړ. هغوی پوهانو سره مرسته وکړه ترڅو د مقابلی لارې چې د بدن د انساجو معافیتی نظام باندې وژونکی حملی کوی پیدا کړی لکه د ام.اس (مولتیپل اسکلروزس) او شکری ناروغیو کې دغه دوه استرالیایی پوهان زینګرناګل او پیتر داهرتی دی.

زینګرناګل په کال ۱۹۴۴ په سویس کې د بال پوهنتون کې زده کړه وکړ او د طبابت درجه یې په کال ۱۹۷۰ کې واخست او وروسته د کانبرا ملی پوهنتون کې یې دوکتورا (پی. اچ. دی) ترلاسه کړ (کال ۱۹۰۶).

پیټر داهرتی د استرالیا ګوینزلند پوهنتون کې زده کړه وکړ او د دوکتورا درجه یې اډیڼبور چې اسکاټلند کې پروت دی واخست (کال ۱۹۷۰). هغوی په ۱۹۶۹ کې د نوبل جایزه ترلاسه کړ.

وروسته پاستور تر ۱۸۹۲ کال ډیر زیات میکروبونه یې چې ناروغی منځ راوړی کشف کړل او ثابته شوه چې د ټولو تبی لرونکو انتانی او اپیدیمیک ناروغیو کوچنی زره بینی (میکروب) اجسام دی. پدې توګه انسانانو د مصابیت د مخنیوی او وقایې لپاره متوجه شول. ترڅو چې د نولسمی پیړۍ دویمه نیمایی کې د وقایوی طب په فکر کې شول چې وروسته د واکسینونو تهیه او د واکسیناسیون تطبیق د مصابیتونو شیوع او منځ ته راتګ مهار شو.

د وقایوی طب د پرمختګ سره د شلمی پیړۍ په طول کې ډیری ښې نتیجی منځ ته راغلی چې د انسانانو د عمر طول زیات شو. د درملو مختلفو ډولونو لکه انتی بیوتیکونه او د علومو رشتو ظهور او پراخوالی لکه فارمکولوژی، باکتریولوژی، فزیولوژی او داسی نور د صحت د پراختیا تامینولو زمینه مساعده شوه. د وقایوی طب د پراختیا او تکامل سره لومړۍ په اروپا او وروسته په نورو هېوادونو کې ساری وژونکی ناروغیو لکه جزام، سرخ باد، نری رنځ، وچکی (محرقه)، سفلیس، کوی (چیچک)، شری (سرخکان)، ملاریا، کولرا (طاعون) او نور تر کنترول لاندې راغلل او د شلمی پیړۍ په وروستیو کې د دغو ناروغیو ځینی نابود شول.

کله چې نړیواله روغتیایي اداره منځ ته راځی ډیر پراخه پلانونه په مخ په وړاندو هېوادونو کې لاس لاندې نیول کیږی چې په مجموع کې د وقایوی طب اهدافو ته رونق ورکوی او د دقیقو منظمو پلانونو سره د وژونکی، ساری او اپیدیمیک ناروغیو په محوکولو کې زیار باسی.

د شلمی پیړۍ دویمه نیمایي کې د عقل نه وتلی اکتشافات او اختراعات په ټولو علومو کې د تکنالوژی سره یو ځای منځ ته راغلل. سره د دی چې په دې دوره کې بشریت وکړای شو چې د ډیرو ساری او اپیدیمیک ناروغیو مخه ونیسی او نابود یې کړی لکه کوی او داسی نور. خو د ځینو وژونکو ناروغیو شیوع لکه ایدز او د چرګانو انفلوانزا نړۍ لپاره د تشویش وړ وګرځیدل.

د انسان د بدن غړو سرطان د ډیری پخوا زمانی څخه د نړۍ په سطحه د انسانانو د مړینی باعث ګرزیدلی دی. او په پیړیو پیړیو کې په مختلفو نومونو یادیده او هغه د نه پیژندلو په صورت کې ډیر خلک یې تباهی کندې ته واچول. خو د شلمی پیړۍ دویمه نیمایي کې پوهانو او علما و عمیقه توجه یې ورته واړلوله.

د رسمی ارقامو مطابق تقریباً دوه ویشت ملیونه او پنځه سوه زره کسان په ټوله نړۍ کې د سرطانی ناروغیو باندې اخته دی. او د یو مهلکه ناروغی په عنوان نړۍ تهدید وی. پدې وروستیو کې د سرطان ضد درمل، شموتراپی او رادیو ترابی او د تشخیص وسایل کشف شوی چې د دغی مهلکی ناروغی په مقابل کې لاس ته راوړنی منځ ته راغلی دی.

د شلمی پیړۍ اتیایمو کلونو کې د یو وژونکی ساری اپیدیمیک ناروغی عامل د ایدز په نامه وپیژندل شو. (نوم یی Human Immuno Deficieney Virus دی چې په H.I.V مخفف سره معروف دي) H.I.V یو ډول خاص ویروس دی چې ریترو ویروس (Retro Virus) په نامه یادیږی چې معمولی ویروسونو په پرتله ساده اورګانیزم لری او له منځه وړلو یې ډیر ګران کار دی.

په کال ۱۹۱۸ د امریکا لاس انجلس په ښار کې وژونکی اپیدیمیک ساری ناروغی کشف شوه. د کالیفرینا لاس انجلس تحقیقاتی مرکز ګزارش ورکړ چې پنځه تنه هم جنس بازه (هموسکسوال) ځوانان په پنومونی ناروغی لیدل شویدی چې چندانی عادی نظر نه لری. دغه موضوع طبیبان په تعجب واچاوه او متوجه شول چې اعراض او علایم یې کومه مشخصه ناروغی ته نسبت ورکړی په دې توګه د هغه نوم یې (اکتسابی معافیت نقص سندروم) وټاکه چې انګلیسی ژبی مخفف یې AIDS دی. همدارنګه په امریکا او فرانسه کې په دې ناروغی باندې تحقیقات صورت وینو چې په امریکا کې د روبرت ګالو او په فرانسه کې د لوک مونتانیه له خوا سرته ورسید.

د ۱۹۸۶ کال نوامبر میاشت کې پروفیسور مونتانیه د ایدز د ناروغی نوی ویروس کشف کړ چې د HIV ویروس په نامه اعلان کړ.

دغه ویروس د انسان د بدن معافیتی سیستم مصابوی چې د عضویت مقاومت له منځه ځی او د بدن انتانات د ناروغ د مړینی سبب ګرځی چې ایدز ته د شلمی پیړۍ بلا ویل کیږی.

په نړۍ کې تر اوسه ۲۸ مليونه انسان چې په ايدز اخته و له منځه تللی دی. دغه ويروس د عضويت دفاعی سيستم مختلوی او ضعيفوی يې چې حتی يو کوچنی انتان د شخص د مرګ سبب ګرځی.

سره د دې چې د دغی ويروس پيژندلو څخه شل کاله تيريږی، تر اوسه هم هيڅ ډول واکسين د HIV د پاره کشف شوی نه دی.

نن ورځ په نړۍ کې ۴۲ مليونه انسان د HIV ويروس باندې اخته دی چې ۳/۲ برخه د دغو د افريقا د صحرا په جنوبی برخه کې ژوند کوی. په دغه منطقه کې د هرو دريو کسو په منځ کې يو يې په ويروس سره ککړ دی. د نړيوالی اداری په راپور د ۷۰ په سلو کې د ايدز ناروغان افريقايي هېوادونو کې ژوند کوی.

د ايدز ويروس په شرقی اروپا او مرکزی آسيا کې نسبت نورو ځايوته تيتيدل يې سريع دی. او د بين المللی سازمان په نظر د يو اپيديمی منځ ته راتګ انکارنه منونکی دی.

ځنی اطلاعاتی سازمانونه تخمين کوی چې تر ۲۰۱۰ کاله پوری په چين کې لس مليونه او په هند کې ۲۰-۲۵ مليونه کسان د HIV ويروس باندې اخته کيږی.

داسی ادعا کيږی چې په نړۍ کې د ۴۲ مليونو مبتلا په ايدز پنځه مليونه يی په ۲۰۰۵ کې په ناروغی اخته شوی او دری مليونه له منځه تللی دی. دا ګزارش را ښيئ چې د دغه ناروغی پراختيا په نړۍ کې په ډير سرعت سره محسوس دی. او د دغی ناروغی په درملنه کې هم ډير زيات ښه والی راغلی دی.

بل پرابلم چې په دی وروستيو د نړۍ خلکو د خپګان سبب ګرزيدلی دی د الوتونکو (چرګانو) ساری ناروغی والګی (انفلوانزا) دی. چې په آسيايی او اروپايی هېوادونو کې د مړينی واقعات په کراتو ليدل شوی دی. د دغی ناروغی ويروس چې د مرغانو څخه انسان ته انتقاليږی زيات وژونکی دی.

د مطالعاتو څخه داسی معلوميږی چې دغه ويروس احتمالاً په کال ۱۹۱۸ کې د مرغانو څخه انسان ته د والګی ويروس انتقال شويدی چې په همدغه کال کې د اسپانيايی انفلوانزا باندې مسميٰ شو. يو مليارد انسانان چې د هغۍ نيمايي برخه يې تشکيلوله په دغه ناروغی اخته شول.

د چرګانو والګی وروستی ویروس دی چې د خطر زنګ یې ټوله نړۍ کې غوږو ته ورسید. احتمال لری چې دغه عوامل د ډیرو پخوا زمانو څخه موجود وی خو په اوس وخت کې د ساحی څخه خارج شول. او یو لړ نور یې نوی ظهور پیدا کړی دی لکه HIV او د سارس د ناروغی ویروس (SARS).

خو د شلمی پیړۍ په لومړیو او وروستیو کې ډیری زیاتی لاس ته راوړنی، اختراعات او اکتشافات لری چې دغه اکتشافات د یویشتمی پیړۍ په پیل کې محیرالعقول په شکل منځ ته راغلی دی. د نمونی په ډول څو نمونو ته اشاره کوو.

په ۲۰۰۴ کال یوه رسمی اطلاعیه کې راغلی چې پوهان بریالی شول ترڅو د سرطان یو ژن له فعالیت څخه وغورځوی. پوهانو دغه ژن یې په موږک کې له فعالیت څخه وغورځاوه. د کالیفرنیا د استانفورد په پوهنتون کې محققینو د دغه ژن چې د میک (Myc) په نامه دی او د سرطان یو پیژندل شوی عامل دی د یو معمولی انتی بیوتیک پواسطه فعالیت ته یې توقف ورکړ.

ترڅو چې موږکانو ته دغه درمل ورکول کیده په سرطان نه اخته کیدل. همدارنګه دغه درمل سرطانی حجری عادی حالت ته وګرځاوه.

محققان وایي چې د موږک د ځیګر په سرطان برسیره چې تحقیق وشو. امکان لری د سینې، کولمو او پروستات کې هم صدق وکړی. ځکه دغه ټول سرطانونه د اپی تیلیال حجرو څخه منشأ اخلی.

کله چې دوکسی سکلین معیوب ژن (میک) یی د فعالیت څخه وغورځاوه او د سرطانی حجرو رشد مسدود شول او کله چې دوکسی سکلین قطع شو په موږکانو کې د کبد حاد سرطان پیدا شو. کله چې دویم ځل دوکسی سکلین موږکانو باندې تطبیق شو نه یواځی میک یی بیرته له فعالیت څخه وغورځاوه او د سرطان د رشد ادامه یې مسدوده کړه، بلکې سرطانی حجری یې عادي حالت ته را وګرځول.

د بریتانیا د سرطان د تحقیقاتی موسسی علمی اطلاعاتو مسوول داکتر ایلین ویکرز وویل «ثابته شویده چې د میک ژن په سرطانیو کې غیر عادی فعالیت لری. مطالعات ښئ چې دغه ژن یو پر اومه مواردو کې چې د ناروغ د مړینی سبب کیږی، نقش ولری. نوموړی د استانفورد تحقیقات ډیر په زړه پوری ولوستل او وی ویل چې دغه مطالعات داسی شاهدی وکوری چې د

میک د توقف ورکولو درمل په وروستیو کې د سرطان په درملنه کې موثر وی.

د پورتنی کشف او ځیرنی څخه داسی لاس ته راځی چې د انسانانو د دری زرمی په پیل کې وروسته د ملیونونو قربانیو سره وی کړای شول چې د سرطان نامعلوم او مجهول عوامل ژن پوری ارتباط ورکړی، کشف کړل.

په کال ۲۰۰۶ د مارچ په میاشت کې د بریتانیا څیړونکو د محیطی یا ژنتیکی تاثیراتو په برخه کې چې د ناروغیو لامل گرځی، ډیر پراخه تحقیقاتو ته آماده گی نیسی. او د لسو، شلو یا دیرشو کالو په درشل کې مختلفی نظر یې د ناروغی پیژندنی په برخه کې ورکړی او په نتیجه کې د ناروغیو د مخنیوی لپاره اقدام وکړی.

د وژونکو ناروغیو لکه د زړه ناراحتی گانی، د شکری او سرطان ناروغیو په مخنیوی او درملنه کې لاری کشف کړی چې کیدای شی د دی څیړنې لاس ته راوړنی وی.

په بریتانیا کې د جنین ژنتیکی ورته کولو لپاره د مجوزی صدور:

د ۲۰۰۴ کال د اگست په میاشت یوه ډیره عجیبه او با ارزښته اطلاعه د طبابت په کړی کې شور او زوږ پورته کړ او دا د بریتانیا د څیړونکو طبیبانو پیشنهاد و چې د بریتانیا دولتی اژانس له خوا د تائید وړ وگرځید.

د پوهانو دغه ډلگی د ژنیتیکی (کلون) ورته شوی جنین تولید د شکری د ناروغی آزمایښتی درملنې لپاره دولتی هئیت ته وسپارل.

د نیو کاسل پوهنتون پوهان قصد لری د جنین څخه بنسټیز سلولونو استخراج د شکری ناروغی لپاره آزمایښتی درملنه په کار یوسی.

الیسون مرداک د دغه ډلگی سرپرست وایي «د هغه هدف د پاره چې مونږ زیار باسو دا دی هغه کسانو ته چې د ځینی ناروغیو لکه الزایمر، پارکینون او دیابت چې جدی کمزورتیا منځ ته راوړی، رنځ وړی مرسته وکړو. اوږده لاره مخی ته لرو خو د تحقیق وړتیایي ډیره ښه ده او د همدې کبله ډیر خوشاله یو چې اوس مونږ کولای شو لمړی گام پورته کړو».

دغه ټیم به قادر وی چې ورته شوی جنین د دوو اونیو لپاره پرورش ورکړی او وروسته بنسټیز جنینی سلولونه د هغه څخه استخراج کړی.

په همدې توګه د زړه د ناروغیو په هکله په تیره بیا انفرکتوس میوکارد په څیړنه کې مثبت او امیدوار کوونکی پرمختګونه شوی چې ډیره ښه موثر درمل د دغه پرابلم د رفع کولو لپاره د تائید وړ ګرځیدلی دی.

د طبابت په نړی کې ډیر نا پیژندل شوی پرابلمونو په باره کې تحقیقات روان دی او پر له پسی د طبابت ډیر مشکل پرابلمونه بررسی کیږی او هره ورځ د امیدواری زیری راکوی.

شلمه پیړی د طبابت په ساحه کې په پراخه توګه رشتی منځ ته راغلی چې هری رشتی ته د طبابت علومو رشتی ویلای شو. د دغه علومو په پراخو برخو کې هم په کلنیک او هم په پاراکلنیک کې په داخلی اورګانو کې، کاردیو لوژی، نفرو لوژی، اندوکرونو لوژی، درماتو لوژی، ګسترو انترو لوژی، افکو لوژی او نوری ځانګی او د جراحی په ځانګو کې لکه عمومی جراحی، د صدر جراحی، بطن جراحی، اوعیو جراحی، اورتوپیدی او تراوماتولوژی، د مغز او اعصابو جراحی، د فک جراحی او ستوماتولوژی، یورولوژی، انستیزی او نور. همدارنګه د پاراکلنیک ډیر مشخص او تخصصی ځانګی منځ ته راغلی چې د مستقلو رشتو په توګه د ډیر مدرن تخنیک او وسایلو سره سمبال دی د ناروغانو او مجروحینو په چوپړ کې قرار لری.

په دې ټولو برخو کې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې څیړنی روانی دی او د انسان د صحت د تامین او اوږد عمر لپاره فعالیت لری. د زړه، مغز، اعصابو، کاسموتیک او نورو ډیر ظریف عملیاتونه صورت مومی. د لایزر د وړانګی څخه د سترګو په عملیاتونو کې استفاده کیږی. د انسان د اعضاو پیوند لکه د زړه، بډوډو او نورو اعضاو پیوندول د اجرا په حال کې دی.

د وګنیز او وقایوی طب په برخه کې پراخه فعالیت جریان لری. د محیطی صحت او روغتیا ساتنی پرابلمونه په خاصه توګه په وروسته پاتی هیوادونو کې مخ په کمیدو دی.

خیریه صحی موسسی د نړۍ سره صلیب په جنب کې او نړیواله روغتیایی اداره او یونیسف د پراختیا په حالت کې دی. ځنی نوری موسسی لکه M.S.F (بی سرحده دوکتوران)، Save the Children او نوری ټولی د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د انسان د روغتیا په موخه خدمت کوی.

## لومړی څپرکی

## تر اسلام نه د مخه د افغانستان طبابت

افغانستان د لرغونی او اوږده تاریخ درلودونکی دی او د تاریخی شواهدو له مخې د افغانستان ټولنه تر میلاده شل زره کاله د مخه موجوده وه.[1]

همداشان له دوو تر دری زره کاله تر میلاده دمخه افغانستان د پر مختللی کرنی او آبیاری درلودونکی ؤ، او تر میلاده زر لومړی کلونه دمخه په افغانستان کې لاسی صنایع، مسکوکات، طب، نجوم، نساجی او فلزکاری موجوده وه.

څرګنده ده چې د ملتونو ډیر پخوانی تاریخ د طبابت تاریخ دی، ځکه بشر له هغی ورځی راهیسی چې ځان یی پیژندلی دی د دردونو سره یو ځای د واقعاتو او مصیبتونو سره مخامخ دی، نو له دې ځایه طبابت د انسان د موجودیت له لومړنی زمانی څخه په دې لرغونی خاوره کې موجود ؤ.

هغه پخوانی سند چې د افغانستان په تاریخ کې د طب او درمل جوړولو په اړوند موجود دی له نن څخه څه نا څه ۳۵۰۰ کاله د مخې زمانی ته رسیږی.

دا دوره د روحانیت مرحله کې شامله وه چې د طب علم د روحانیونو په واک کې ؤ. په زیاترو مذهبی کتابونو کې درملو ته اشاره شوی ده، لکه چې زرتشت په مذهبی کتاب کې د زند او اوستا په نوم د کتاب د وندیدا د برخه په طبابت پوری مختصه وه.

«سوما هغه مشروب دی چې له ګیاه څخه ترلاسه کیده او اوستا په کې تری یادونه شویده»[1] اوستا هغه ډیر زیات پخوانی کتاب دی چې د بلخی

---

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۳۳

زرتشت يا زرتشترای بلخی له خوا منځ ته راغلی دی. که څه هم د اوستا د قدامت تعيينول ګران دی خو بيا هم د اټکل له مخې ښودل کيدای شی چې اوستا اصلاً تر ميلاده تقريباً يو زر کاله دمخه منځ ته راغلی دی. په دې صورت کې د برهمنانو د کتاب سرودونه (ريګويدا) چې تر ميلاده د يو زر او پنځه سوو کلونو دمخه په منځ کې قسماً په افغانستان کې ويل شوی او بيا په هندوستان کې بشپړ شوی دی.

«اوستا د تاريخ هغه ليری ته نظر اچوی چې تر دغه وخته پوری د افغانستان خلکو سکه او پيسی نه درلودلی، د راکړی ورکړی معامله د جنس په شکل ترسره کيدله. په همدې شان د هغی زمانی ټولنی مالګه نه پيژندله او په خط او کتابت هم نه پوهيدل، خو ښارونه، کلی، کرنه، آبياری، مالداری، باغداری او پيشه وری لری. «فلزی آلات استعماليدل، اوبدنه او وسله جوړول لری، نڅا او ورزش شته او طبيب موجود دي»[٢].

په اوستا کې د خلکو د درو طبقو لکه شفا بخش او معالج څخه بحث شوی دی او دوی عبارت دی له هغه چانه چې په دعا او دينی رسومو، او هغه چې په پرهيز او د اروګانو او ځينی نور چې په وسايلو او لوازمو شفا بخښی.

په بل عبارت دا دری طبقی عبارت له: مؤبدانو، طبيبانو او جراحانو څخه دی.

د دې وروستی ډلی په متعلق په ونديداد کې په زړه پوری عبارتونه شته دی، چې وايي: «هغه تازه کار طبيب مخکې تردې چې د نيکان مزديسناکيش د يوه معالجه شروع کړی نو په کار دی چې دری کافران يې په برياليتوب سره معالجه کړی وي»[٣].

د دې د پاره چې د زرتشتيانو طبابت او د هغه وخت د طبابت پرنسيبونه ښه روښانه شوی وی، زيات تحقيقات او لټونی ايجابوی چې دا دی په دی اړوند يوڅه لنډ معلومات وړاندی کيږی. ځينی مورخين زرتشت تر ميلاده دمخه يوولسمی پيړۍ پوری مربوط ګڼی، خو زيات احتمال لری چې اوه پيړۍ يې تر ميلاده دمخه ژوند کړی وی.

---

۱- مجله اردو شماره ماه ثور، رياست نشرات اردو، مطبعه اردو، سال ۱۳۵۰
۲- مير غلام محمد غبار، افغانستان در مسير تاريخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۳۷
۳- دکتر ادوارد براون، طب اسلامي، ۱۹۵۶م ص-۲۶

د بلخی زرتشت کتاب اوستا نومیږی او دا کتاب په هغه شکل چې اوس زمونږ په واک کې دی څلور برخی لری چې د یسنا، یشت، وندیداد او بندهش د نومونو څخه عبارت دی. هغه څه چې نن له دی کتابونو څخه باقی پاتې دی د هغه کتاب یوه برخه ده چې وایي په یوویشت کتابونو او یا په یو ملیون برخو مشتمله ده.

زرتشتیان عقیده لری چې د اوستا کتاب د آهورامزدا (خدای) له خوا په زرتشت پیغمبر را څرګند شوی دی او هغه یې د بخارا د پاچا د ګشتاسپ په واک کې ورکړ او د ده دوه اصلی نمونی یوه یې د جمشید په تخت او بله یی په سمرقند کې کیښودله.

په دې کتاب کې د مندرج طبابت د مطالبو اصول په دې عقیده ولاړ دی، چې په نړۍ کې د ستیز او قانون یو نظام حکمفرما دی. د زردتشت په کیش کې شپږ د عالم قوه (موکلی فرشتي) موجودی دی چې هره یوه یې د خپل صلاحیت په دایره کې د عالم د اداری په امورو کې همکاری کوی. او هغوی د آهورامزدا (خدای) له یو صفاتو څخه شمیری او جاودانان یې ګڼی چې پنځمه یې د هئورتات (روغتیا) په نامه دی او د تندرستۍ مسکن او اوبو موکله ده.

د زرتشت کیش د اخلاقی او حیاتی پر درو اصلو هومته (نیک پندار)، هوخته (نیک ویل) او هوورشته (نیک کردار) بنا شوی دی.

«زرتشتیانو بدنی او روحانی نظافت، راستۍ او راستکاري، مروت او سخاوت او ټول نیک اخلاق یې مراعاتول»[۱].

د زرتشت په آئین کې د نیکۍ او بدۍ دوه اصله شته دی چې دا دواړه په متداوم ډول یو د بل سره په جګړه او کشمکش کې دی. د دې مکتب برجسته ټکي د طبابت په برخه کې په لاندې ډول خلاصه کیږي:

۱- په خیالی او ماوراء الطبیعه موجود باندې د ناروغیو د مولد په عنوان اعتقاد د ساسانیانو تر وخته پوری باقی پاتی شو. چې د هغه نتیجه د ناروغیو د درملنې بهترینه وسیله د مذهبی اوراد ویل او د ماوراء الطبیعه ځواک څخه د مرستی غوښتنه پیژندل کیدله.

---

۱- پوهاند عبدالحی حبیبي، تاریخ مختصر افغانستان از زمان قدیم تا خروج چنګیز حدود ۶۰۰هـ ، جلد اول ۱۳۴۶ ص-۱۳-۱۴

۲- د زرتشتیانو د اعتقاداتو له مخې مار د مخلوق ډېر لرغونی او ځواکمن دی چې په عین حال کې د طب د علم موجد او مخترع هم شمېرل کېږی.

۳- د هغو اعتقاداتو له مخې چې د بل پلوه هم موجود وو دا دی چې د ناروغیو پیدایښت کیدای شی د دښمنانو د کوډی (جادو) او یا د سترګو د نظرو د ضرر په علت وی.

۴- دا مطلب هم په ښه توګه څرګند وی چې فزیکی او طبیعی علتونه هم د ناروغیو په پیښیدو کې ښکاره نقش لری. لکه چې خلک لیدل سړښت، تودوخه، کثافتونه، ککړتیا، لوږه، تنده او بالاخره اضطراب او زړښت چې دا ټول د طبیعی او فزیکی عواملو څخه شمیرل کېږی هم کولای شی چې د یوه سړي د ناروغتیا موجب وګرزي. برسره پردې خلک پوهیدل چې افراط او تفریط او بد عادتونه درلودل هم د ناروغی د څرګندیدو سبب کېږی.

۵- د وینو نقش په بدن کې د ناروغی په خپرلو کې هم د پوره د پاملرنی وړ ګرزیدلی و. او زردشتی مؤبدانو به خلکو ته نصحیت کاوه چې د وینی خالص والی او پاکیزګي وساتي او هغه د ککړتیاو څخه لیرې وساتی.

۶- د زیږیدلو او مړینی پوری مربوطو مراسمو توصیف د اوستا د کتاب مهمه برخه تشکیلوی. په دې برخه کې د جنین سقط منع کړی شوی و. هغه ښځې چې سقط جنین یې کړی او یا یې ولادت کړی و نو په ګیمز (د غویی په متیازو) به یې تطهیر کاوه.

د جنین د سقط د پاره د ځینو د اروګانو خاصیت د هغی زمانی خلکو ته پوره معلوم او څرګند ؤ، خو هغو کسانو چې دا دوایی د نورو په واک کې ورکوله، ډیر زیات تنبه او مجازات کیدل. دغه درمل چې د اوستا په کتاب کې له هغو څخه نوم اخستل شوی دی له بنګو (شاه دانه)، شیتا (سره زر او یا احتمالاً د یو نبات نوعه او یا ژیړ رنګه مایع ده)، غنا (هغه درمل چې وژل کوي) فراسپاتا (چې میوه راوباسی او مرګ منځ تا راوړی)، چې د دوی له منځه بنګ یا شاه دانه معلومه ده او هغه نوری یې په سمه توګه معلومی نه دی چې څه شیان دی.

۷- د زرتشت په کتاب کې سپی نه یوازی د احترام وړ یو حیوان و، بلکې داسی فکر کیده چې یوه ناولی شی ته د هغه کتل له هغو څخه د خبیثه اروا د وتلو موجب ګرزی.

۸- د عامی روغتیا د روغتیاساتنی (حفظ الصحي) په باره کې زرتشیان ډیری لوړی څوکی ته رسیدلی و. د ټولنیزو د مراسمو د اجرا د ځرنګوالی پوری مربوط قوانین هغو مره د ککړتیا او د ناروغیو د خپریدو د مخنیوی پوری مربوط قوانینو سره ګډ شوی چې د هغوی یو له بله بیلول ناممکن ؤ. د اوبو،خاورو، اور او ګیاګانو ناولی کول منع وو.

ګورو چې اور د سپیځلو موادو د ځلورګونو برخو څخه یوه برخه شمیرل شوی، خو له بده مرغه له دې وسیلی څخه د ککړو شیانو د تعقیم د پاره غیر ممکن کیده.

۹- د مړی د جسد لمس کول د انسان د ککړتیا او ناولتیا سبب کیده او داسی څوک باید په بشپړه توګه ځان تطهیر کړی یعنی دا سړی چې د جسد سره یې تماس نیولی ښايي نه شپی پر له پسی ځان پر مینځی.

۱۰- د سیندونو اوبه زیاتره پاچاهانو څښلی او په مسافرتونو کې یې هم تری استفاده کوله. (د سپین ږیرو له خولی امیر حبیب الله خان د افغانستان پاچا چې به کله جلال آباد ته سفر کاوه نو به یې د سرخرود د سیند له اوبو څخه د څښلو په غرض استفاده کوله – مولف، مومنی).

۱۱- ورستوب او فساد هم د هوا او اوبو د ککړتیا سبب کیده او په کار ؤ چې له منځه وړل شوی وای.

د انسان د بدن هډوکی او یا دسپی په داسی حال کې چې له هغو څخه غوړی او یا د هډوکو ماغزه وبهیږی پر مځکه اچول جرم ګڼل کیږی.

۱۲- د مړی د جسد د خښولو د پاره به برجونه جوړیدل په داسی ډول چې هلته هیڅ حیوان ورننوتلای نشو.

په دې مقرراتو کې ویل شوی و «د سکوت برجونه د کلکی تیږی او کین (ملات خټه) څخه باید جوړ شی او په داسی شکل وی چې سپی، کیدړه یالیوه هغو ته ور ننوتلای نه شی، او د باران اوبه هم هلته راټولی نه شی»[۱].

۱۳- د درملو نقلول او تجویز د ځانګړو اشخاصو په واک کې وو.

په دې ډول که څه هم د آشوریانو غوندی د طبابت د علم او مذهبی چارو تر منځه بیلوالی موجود و، خو بیا هم طبیبان د ټولنی د ځلورګونو ډیرو لوړو طبقو څخه انتخابیدل.

۱- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ۱۳۵۰ ص-۲۹

مؤبدان او مغان يې په سرکې او نوری دری طبقی لکه پوځيان، بزګران او کسبګران، چې په دی چارو کې د واړو څلورو طبقاتو کې شامليدل ارثی و. او د روحانيونو د طبقی ماشومانو په مذهبی چارو او طبابت کې مشابه تعليم کاوه او د تحصيل د دوری تر ختمولو وروسته يې کولای شو په خپله خوښه تصميم ونيسی يعنی غواړی چې زياتره په مذهبی چارو مصروف شی او يا د طبابت په کارونو کې بوخت شی. د دې غبرګونی زده کړی طريقه تر اسلام وروسته څو کلونه هم دوام موندلی ؤ.

د منځنۍ آسيا د زياترو ښارونو په روغتونونو کی، طبی درسونه تدريس کيدل، هغه درسونه چې زده کوونکو ته ور زده کول کيدل نظری او عملی علوم پکې شامل وو، چې څو کاله موده يې نيوله.

محصلين په نوموړی ځانګه کې خپل تحصيلات سرته رسول او بيا ورته «د سپيڅلتيا سره شفا بخښونګی»، «د قانون سره شفا ورکوونکی» او د «چاکو سره شفا ورکوونکی» نومونه ورکول کيدل، هغوی هم په ځانګړو ډلو ويشل کيدل. څرنګه چې طبيبان د ټولنی د پاسنۍ طبقی څخه وو، نو په کار ؤ چې د هغوی طبقاتی امتيازات د هغوی د اشتباهاتو په علت زيانمن نه شی نو ځکه په سپيڅلی کتاب کې د طبيب کيدلو د ايديالو شرايطو په باره کې بحث شوی دی. دا شرايط د Manec Kjinusseruanji Dhalla له خوا په يو کتاب کې چې د «زرتشتيانو تمدن» نوميږی په لومړۍ څپرکی کې بيان شوی دی.

۱۴- لمر د پياوړی پاکونکی په عنوان پيژندل کيده. په يوه يشت کې ليکل شوی دی چې د لمر وړانګی ټولو موجوداتو ته پاکی ور بخښی.

۱۵- په تطهير کې له متيازو (ادرار) څخه استفاده کيدله. د «امرات الصحه، دويم کتاب، لومړۍ او دوهم څپرکی» د مولف غياث الدين د نظرياتو له مخې چې د ميلادی پنځلسمی پيړۍ له ليکوالانو څخه ؤ، د ماشوم متيازی د سرخ باد، جرب، جذام او د پوستکی د داسی نورو ناروغيو دوا ده. او د اوښ متيازی د زياتو جلدی او داخلی ناروغيو د پاره ګټور دی.

۱۶- په ونديداد کې چې اوبه د مړی د جسد د تماس په اثر څومره ککړتيا پيدا کوی په تفصيل سره پری بحث شوی دي: وايي ترڅو پوری چې د مړی جسد د سيندونو او ډنډونو په اوبو کې پروت وی، دغه اوبه هيڅ ډول لګښت د پاره مناسبی نه دی او د دی د پاره دغه اوبه دوباره د څښلو وړ وګرزی، لومړی بايد جسد له هغو څخه راوايستل شی او بيا د هغه اوبو نيمايي برخه ليری وغورځول شی، نو بيا نيمی پاتی يې د څښلو وړ دی. خو

د روانو اوبو (ویالی او سیند) په باره کې داسی ویل شوی دی، کله چې د مړی جسد له دی ځایه نه وی راویستل شوی نو دوه ګامه مخکې، نهه ګامه پورته (پاس) او شپږ شپږ ګامه ښی او کیڼی خواته له هغه محله اوبه اخستل کیدای او مصرفیدای نه شی.

په همدې شان د ککړو اوبو په وسیله د ناروغیو څخه د وقایې او مخنیوی په غرض هم خاص دقیق مقررات شته دی. په هغو اوبو کې چې طهارت کیږی باید چې د ناولتیاو دور غورځلو څخه وساتل شی. پر دې برسیره هر چا وظیفه درلودله هر څوک چې به بیروني جسم په اوبو کې ولیده نو هغه به یې تری را ایسته که څه هم دا جسم د بل چا له خوا نه په اوبو کې اچول شوی ؤ.

یو طبیب چې په کوم ښار کې خپلې زده کړې ترسره کړی دی په هغه ښار کې به یې وظیفه نه اخستله او حتی په کوم ښار کې چې زیږیدلی و هلته هم نه شو اوسیدلای. دی ډول اشخاصو له یوه ښار بل ښار ته مسافرتونه کول او د ناروغانو درملنه به یې کوله.

د دې مؤبدو طبیبانو د کار وسایل چې د ځانونو سره یی وړلای شو دومره زیات او مهم نه وو. ډیره مهمه وسیله هغه لوښی و چې په هغه کې یې د هائوم څخه دوا سنبالوله. هائوم (اومان) یوه ګیاه وه سپیڅلی چې د درملنې زیات خاصیتونه یی درلودل.

په افغانی او هندی اسطورو کې هم د دی ډول درمل ساری لیدل کیدای شی چې هغه ته یی سوما (رُب) ویل کیږی چې د هائوم یا اومان شیره وه. که څه هم په ظاهره دغه ګیاه مخدره او سکر لرونکی وه خو سوما د دی سبب کیده چې ناروغ خدایۍ ته ډیر نژدی ځان حس کړی.

د زرتشتیانو د واکمنی د دوری په وروستیو کې د معجون په نوم یوه بله ماده له دی ګیاه څخه برابره شوه چې سپین رنګ یې درلود. په داسی حال کې چې د هغې پخوانی رنګ ژیړ و، او دا هغه مطلب دی چې د هغی دوری په مذهبی کتابونو کې قید شوی دی. په نوموړو کتابونو کې ویل شوی دی «د دې د اروګانو څخه ښایي یوازی د قیامت په ورځ (رستاخیز) استفاده وشی په هغه ورځ چې ټول مړی د دی دوا په واسطه بیا له سره را ژوندی شی»[1].

۱- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ۱۳۵۰ ص-۳۸

د زرتشتیانو په مقدس کتاب کې ویل شوی دی چې «آهورامزدا لس زره شفا بخښونکی ګیاه د ده په واک کې ورکړی دی»[۱].

د مؤبد طبیب د طبابت یوه بله وسیله یوه کوچنۍ قمچینه وه چې د هغه چا د تنبه کولو د پاره تری کار اخسته کیده چې مذهبی روغتیایی مقررات یې نه رعایت کول او هم د پیریانو د دفع او بالاخره د ناروغ د بدن څخه د ناروغۍ د دیو د ایستلو د پاره تری استفاده کیدله.

پردې برسیره نوموړی طبیب یوه بله وسیله هم درلودله چې هغه د مار او نورو مضرو موجوداتو څخه د ساتنی په غرض چاکو او امسا وه.

په طبي- مذهبی مراسمو کې د ګډون په وخت کې طبیب مؤظف و چې په خپل سریوه ټوټه ځړو کې واچوی، ترڅو چې په دې وسیله د اور، خوړو او د تنفس د ککړتیا څخه خوندی ساتل شوی وی. دا ټوټه ډیر زیات ماسک ته ورته والی درلود، چې نن ورځ هم جراحان د جراحی په کوټو کې خپل مخ او سر په هسی ټوټو تړی. په همدې شان یو شمیر نور مقررات لکه د طبیب د کار نحوه، د ناروغ د معاینی فیس (اجوره)، د معاینی وختونه او ناروغ ته ور رسیدل او داسی نور په قانون کې ټاکل شوی وو. باید وویل شی چې باید یو طبیب کافی خواړه، مناسب لباس او ښه آس ولرلای شی.

«د فیس یا اجوری اندازی د ناروغۍ د ډول، سختوالی او کمزورتیا او د طبیب د شهرت پوری تړاونه درلود بلکې د ناروغ د ټولنیزی وضعی او د دارايي د اندازی پوری یې تعلق درلود.

د مثال په ډول والی معمولاً څلور غوایان، ښاروال یو آس یا اوښ او بالاخره معمولی شخص یو پسه او حتی یو چرګ د اجوری په بدل کې ورکاوه»[۲].

د هغو تیت او پرکو معلوماتو له مخې چې په دې برخه کې مونږ ته راپاتی دی داسی نتیجه اخستلای شو چې په لرغونی منځنۍ آسیا کې د طبابت وضع د آشور په نسبت ډیره پرمختللی وه، نو ځکه له منطقه لیری خبره نه ده چې وویل شی، د منځنی آسیا خلکو (ایران- افغانستان) طبی اساسات چې په نړۍ کې د «یونانی طب» په نوم شهرت لری یونانیانو ته ور زده کړی وی.

---

۱- اثر فوق، ص-۲۴

۲- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ۱۳۵۰ ص-۴۰

برسیره پردې د افغانستان د تاریخی دوری له بیلګو څخه دا دی چې د نړۍ د زړښتو زیاتو تاریخی مدینتونو سره آشنایی لری. په دی مانا چې د بین النهرین، د مدیترانی ختیځ سواحل، مصر او ایران، یونان او روم د مدنیتونو سره آشنا او ځنی یې یو له بله اقتباس شوی دی. په داسی حال کې چې د چین او هندوستان تمدن هر یو، یو له بله خپلواکه او مستقل دی.

په دې مابین کې افغانستان دی چې هم د مدیترانی د سواحلو د مدنیت سره آشنا دی او هم یې د هند و چین د مدنیتونو سره په زیاته اندازه په مدنی راکړی ورکړی داخل دی.

«باید پوه شو چې تر اسلام د مخه طب، د یونان د طب او د منځنی آسیا (افغانستان، ایران او ماورالنهر) او هند د طب مخلوط دی. منتها یونانی طب د هند او ایران له طب څخه په دې خاوره کې اثر درلودلی دی»[۱].

د افغانستان د طبابت تاریخ تر اتلسمی پیړۍ او حتی د شلمی میلادی پیړۍ تر لومړیو پوری نه شی کیدای چې د ایران او ماورالنهر له تاریخ څخه جلا مطالعه شی. حال دا چې د چین او هندوستان طبابت په مستقلانه ډول خپلی پرمختیا او تکامل ته ادامه ورکړی ده.

په راتلونکو فصلونو کې به یې وګورو چې په دې هېوادونو کې زیاتره له تعصب څخه کار اخستل شوی او د افغانستان یو شمیر متبحر پوهان کله ایران، کله تاجکستان او کله ازبکستان د خپل ځان پوری تړلی دی. خو نه شی کیدای چې په تاریخی واقعیتونو پښه کیښودل شی او د نورو ملتونو پر حقوقو تیری وشی.

«د افغانستان تاریخ د مرکزی آسیا د تاریخ د ایران او شمالی هندوستان د هېوادونو د تاریخ سره کلک تړاو لری. خصوصاً افغانستان، ایران او ماورالنهر (خوارزم – بخارا) چې په پیړیو د یو ډول تمدن او پرمختګ نمایندګان وو. یو د بله سره د هغوی آمیزش د دوی د تربیت او تهذیب صفتونه یې تکمیل کړی دی»[۲].

په دې ترتیب د دی خاوری ټول پوهان د دی سیمی د ټولو ملتونو سره تړاو لری او دوی هر یو نه یوازی د سیمی افتخار دی بلکې د ملتونو د

---

۱- دکتر ادوارد براون، طب اسلامي، ۱۹۵۶م ص-۹

۲- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۳۳

تولنی د اصیلو پچیانو پوری مربوط دی. اما د زیږیدنی د ځای په برخه کې په کار نه دی چې له تعصب څخه کار واخستل شی.

ارواښاد پوهاند عبدالحی حبیبی په خپل کتاب «پنجاه مقاله» یو ځل بیا د پوهانو پاملرنه دی مامول ته راګرځولې ده او لیکلی «د ایران، افغانستان په هېوادونو د تاجکستان، ازبکستان، ترکمنستان، پاکستان، هند په جمهوریتونو کې – زمونږ د خاوری د ادبی، فکری، تاریخی او (طبابت – مولف، مومنی) ډیره لویه ذخیره شته دی چې زمونږ د ګردوګډ میراث دی او هر ملت پکې برخه لری، لکه چې همدا اوس مطبوع او یا مخلوطی نسخی یې د نړۍ په کتابتونونو او موزیمونو کې تر سترګو کیږی چې د هغوی تدقیق او څیړنه د یو شخص او یا حتی د یوه هېواد د پوهانو له وسی څخه د باندې خبره ده. بهتره خبره دا ده چې دی هېوادونو کې یو تحقیقاتی مرکز تاسیس شی او له بیلا بیلو هېوادونو څخه، اسناد او مدارک راټول شی او په دی تحقیقاتی مرکز کې تر غور لاندې ونیول شی او نتیجه تری واخستل شی چې ګران بیه آثار تری منځ ته راوړی»[1].

په لنډ ډول باید وویل شی چې لرغونی خراسان چې یو علمی او فرهنګی ډیر لوی واحد و، اوس په درو سیاسی واحدونو لکه افغانستان، ایران او پخوانی شوروی د جمهوریتونو پوری تعلق ونیو او هغه څوک چې د دی خاوری تاریخ او حتی د اسلام او آسیا تاریخ مطالعه کوی ضرور دی چې د دی خاوری د خلکو د سیاسی، ادبی، علمی او فکری نهضتونو څخه خبر شی.

په دې ترتیب د طب په برخه کې د اوستا نقش او ارزښت تر هغه وخته پوری چې یونانیان په افغانستان کې ځای پر ځای کیدل په خپله ډیره لوړه سطحه کې قرار درلود، چې د ناروغانو په درملنه کې هم محلی طبابت یعنی د طبی مادی موادو (طبی بوټی او د حیواناتو اعضا) او هم د روحانیت (دعا او اوراد) څخه استفاده کوله.

کله چې تر میلاده څلور پیړی د مخه یونانیان پر ایران لښکر کشی وکړه، دریم داریوش (هخامنشي) (۳۳۸-۳۳۳ق.م) له دفاع څخه پاتی راغی او افغانستان ته مخه وکړه. خو افغانستان د خلکو د سخت قیام او مقاومت سره مخامخ شول.

---

۱- پوهاند عبدالحی حبیبي، پنجاه مقاله، ۱۳۶۲ ص-۴۷۳

د باختریان والی (بسوس) د استقلال اعلان وکړ او ځان ته د ختیزی خاوری پاچا وواېه او داریوش د ده له خوا ووژل شو.

مقدونی سکندر د پخوانی نړۍ مشهور فاتح د ایران مالک شو او په ۳۳۰ق.م د افغانستان په استقامت یې په سوقیاتو پیل وکړ. په لومړی گام کې یې د بسوس ځواکونو ته ماتی ورکړه او هغه یې وواژه. په دی ډول د هخامنشیانو د مقتدر دولت له پښو وغورځید او افغانستان د تاریخ نوی صفحی ته ور داخل شو. «مقدونی سکندر څلور کاله د افغانستان او سغدیانه په تسخیرولو کې ډیر زحمتونه وگالل او په ډیرو جگړو اخته پاتی شو ترڅو یې وکړای شول له توس او هرات څخه قندهار او کابل ته او بیا بلخ او ماورای جیحون ته ورسید، وروسته له هغی چې له یونان څخه یې نولس زره تازه دم سپاهیان ونیول، د سلو زرو عسکرو سره له هندوکش دوهم کرت تیر شو او د افغانستان د ختیزو ولایتونو څخه یې په ۳۲۷ق.م هندوستان ته سوقیات وکړل»[۱].

افغانستان ته د سکندر او یونانیانو را ننوتل د یو شمیر یونانی پوهانو او هنرمندانو په ملگرتیا سره یې حرکت کاوه او دی تاریخی واقعاتو د افغانستان د خلکو په مادی او روح باندې ژوره اغیزه وکړه.

دی ستری پیښی زمونږ د هېواد تولنیز نظام او لرغونی تمدن او فرهنگ ته سخت ټکان ورکړ او د دوارو هېوادونو د خلکو د مدنیت او فرهنگ د سره خلطیدو په نتیجه کې زمونږ هېواد د خپلی لوړتیا یوی نوی مرحلی ته ور داخل شو، چې طب او طبابت هم د دی بدلونونو تر اغیزی لاندې راغلل.

یونانیان چې افغانستان ته را ننوتلی وو سپاهیان یې مجردان او آل او عیال یې نه درلود او هغه کسان چې له دوی څخه په افغانستان کې پاتی شول دلته یې ودونه وکړل او د دی هېواد د خلکو سره خلط شول، چې دی اختلاط دوی هم د افغانستان د فرهنگ، مذهب او عقیدو تر اغیزی لاندې راوستل او د دی ترڅنگه بې له شکه یونانی پوهانو او فرهنگیانو بالخاصه د طب او درمل جوړولو په برخه کې زمونږ په هېواد کې خپلی اغیزې پریښودلی.

هغه وخت چې مقدونی سکندر زمونږ له هېواده وځغلول شو د دوی څخه یو شمیر طبیبان د افغانستان په مختلفو سیمو کې هستوگن شوی او د

---

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۴۳

طبابت فن یې پرمخ بیوو. له همدې ځایه و چې زموږ په هېواد کې محلي طبیبان د یوناني طبیبانو په نوم هم یادیدل «ځنې پوهان په دې عقیده دي چې د ابن سینا طبابت ته یوناني طبابت ویل کیږي» (مولف، مومني).

تر میلاده د مخه د دریمې پیړۍ په منځنیو کې چې په افغانستان کې د یونانو- باختري دولت استقلال اعلان شو د ختیز له جبهې څخه د هندوستان د موریانو ستر دولت د سند له سیند څخه تیر شو او د هندوکش تر جنوبه را ورسید او تر ټولو د مخه یې بودایي دین ته پراختیا ورکړله.

«په دې دوره کې (د یونانو- باختري دولت ۲۵۰-۱۳۵ق م) سوادګري او د پیسو دوران انکشاف وموند، ښارونه جوړ، د سرو زرو سپینو زرو او نکلو مسکوکات رواج شول. د باختریانو په بازارونو کې دوریښمو او ململو د پارچه بابو، د اروګانو، شیریني بابو، فلزي مسي، نقره اې شیانو، جواهرو او داسې نورو انواع د راکړې ورکړې میدان ته را ووتلل»[۱].

د هندوستان د موریاد دولت نفوذ له یوې خوا او دوریښمو له لارې د هندي مالونو تبادلې له بلې خوا محلي طبیبان د حکیم او حکیم جې په نوم زموږ په هېواد کې را منځ ته کړل او دا پدې لحاظ دې چې په لیر یو زمانو کې هندوستان د مستقل فرهنګ او تمدن درلودونکې و او د هغه تجارتي مالونه چې طبي بوټي او درمل هم په دې کې شامل وو دوریښمو له لارې لویدیز ته انتقال ورکول کیده. په دې توګه هندي طبابت هم زموږ په هېواد کې رواج پیدا کړ، په تیره بیا د نولسمې پیړۍ په وروستیو کې د افغانستان پاچاهان او سلطانان مخکې له دې چې د ترکیې دولت سره خپلې اړیکې ټینګې کړي هندي طبیبان د سلطنتي کورنۍ د معالجو په حیث استخدام شول او د ارګ په روغتون (پل محمود خان) کې یې وظیفه اجرا کوله. هغوی هم له عصري طبابت څخه بې برخې وو او د ګلنیکي ادویه جاتو چې د دوی خپل ساخت و لکه جوشاندې، پیلولونه او نورو څخه یې استفاده کوله.

دوریښمو لارې چې د سمندري لارې تر کشف پورې د اوږدو پیړیو په اوږدو کې یې افغانستان د لویدیزو او ختیزو هېوادونو (هندوستان او چین) سره وصل کاوه، د فرهنګ او علومو خصوصاً طب او طبابت، د درملو او طبي بوټو د مشرق او غرب د هېوادونو په منځ کې د راکړې ورکړې ارزښتمن رول لوبولی دی. حتی وایي چې د چین ستر دیوال دوریښمې د

---

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۴۷

لاری د ساتنی د پاره هم استعمال شوی دی. د چین دیوال ۲۱۴ کاله تر میلاده پخوا جوړ شوی دی. د پورتنی لیکنی څخه دوریښمو د لاری تاریخی او اقتصادی اهمیت په ډېره ښه توګه جوتیږی.

د کوشانیانو د دولت په وخت کې (۴۰-۲۲۰م) د دی کورنۍ پاچا د رومی امپراطور دربار ته خپل نمایندګان ولیږل. ځکه چې رومیانو د مدیترانی اسیایی سواحل یعنی دوریښمو د تجارتی لاری پای نیولی وه.

څرنګه چې رومیان پولدار او تجملیان وو د چین دوریښمینو پارچو، عطریاتو او د هندوستان د درملو سره ډیره مینه وال وو، نو یې کولای شو چې د دی اجناسو په بدل کې د هغی ترانزیتی لار د افغانستان په لاس کې وه ډیر زیات سره زر د افغانستان بازارونو ته راتوی شی.

د یفتلیانو په دوره کې (۲۲۰-۴۵۰م) د چین، ایران او هند سره دا سوداګری او د درملی موادو تبادله روانه وه.

د پورتنی بحث څخه داسی نتیجه په لاس راتلای شی چې د افغانستان (منځی آسیا) طبابت تر اسلام د مخه د یونانی او هندی طبابت مخلوط و، او څرنګه چې دوریښمو د لار په سیر کې یې قرار درلود د نورو هېوادونو په نسبت خصوصاً عربان او حتی لویدیز هېوادونو چې ورو ورو د غفلت په خوب کې تلل زیات پرمختللی و. او د اسلام د سپیڅلی دین تر ظهور وروسته چې د منځنیو پیړیو فرهنګ او کلتور لویدیز یې په خپله ناپوهي کې ډوب کړی و، د افغانستان طبابت په خپلو ډیرو لوړو مدارجو کې قرار درلود.

## دویم څپرکی

## په افغانستان کې طبابت د اسلام له ظهوره د مغلو تر یرغل پورې

لکه چې څرګنده ده طب تر اسلام نه مخکې د یونان، منځنی آسیا او د هند د طب یو مخلوط ؤ، منتهی یونانی طب د هند تر طب څخه د مخه په دې خاوره اغیزی ښیندلی وی.

د ساسانیانو په دوره کې که څه هم علومو دومره وده نه وه کړې خو د طب په باره کې سرشته درلودله لکه چې د ساسانیانو سترو پاچاهانو لومړی شاپور او دویم شاپور په وخت کې او تر دوی وروسته انوشیروان دادګر په وخت کې د یونان د استوګنو پوهانو ایران او افغانستان ته راغلل او د هغوی یو زیات شمیر چې د مذهبی اختلافاتو له مخی چې په شرقی روم کې پیښ شوی وو هغوی جلا وطنه کړی په ایران او افغانستان کې یې هستوګنه غوره کړې وه.

ساسانی پاچاهانو تر ټولو د مخه د هغوی درناوی کاوه او د هغوی له وجود څخه یې علمی ګټې اخستلې، چې د دوی مثمرو تلاشونو په نتیجه کې د جندی شاپور لوی پوهنتون او د هغه ضمیمه روغتون تاسیس شو. تر کومه ځایه چې څیړنی ښئ د دې پوهنتون وروستنی تحقیقاتی اثر هغه کتاب دی چې د درمل جوړولو په برخه کې د سالور بن سهل له خوا په ۸۶۹م کې ولیکل شو، دغه کتاب د خلفاوو د حکومت تر اداری لاندې سیمو کې رواج وموند او یقین ته نژدی احتمال سره دا لومړنی کتاب دی چې په نړۍ کې د درمل جوړولو په هکله لیکل شوی وی. «د جندی شاپور دغه لوی مکتب یو زیات شمیر طبیبان وروزل چې د هغوی څرګنده نمونه ال بختیشوع دي»[۱].

لنډه دا چې د جندی شاپور پوهنتون د ساسانیانو په دوران او بیا وروسته تر دوی څخه د عباسیانو د خلافت تر منځنیو د یوی مودی د پاره

---

۱- دکتر ادوارد پراون، طب اسلامي، ۱۹۵۶م ص-۱۰

خپل علمی نفوذ او اقتدار وساته. که څه هم د بغداد د خلفاو په واسطه بغداد د اسلامی هېوادونو مرکز وګرزید بیا هم جندی شاپور د طب په عالم کې زیات ارزښمند مقام درلود.

### د طب او طبابت په باره کې د انجیل او تورات لارښوونې

مخکې تردې چې د اسلامی طبابت په هکله معلومات وړاندې شی لازمه ده چې د طب او طبابت په اړوند د انجیل او تورات لارښوونې هم په لنډ ډول وښودل شی.

### انجیل د ناروغیو د پاره ډېر دلیلونه راوړی چې په لاندې ډول دی:

**لومړۍ نظریه:** ناروغی د بشری ګناهونو د جزا په عنوان مستقیماً د خدای له طرفه پر بندګانو نازلیږی. د انجیل په یو حنا کې راغلی دي: «هان! د جهان خالق وایي: ګناه مه کوئ ترڅو پر تاسی کمی ناروغۍ نازلی شي».

په یو بل ځای کې ویل شوی دي: «ای مومنانو! څوک ګنهکار دی پخپله یا مور او یا پلار یې چې د ړانده ماشوم غوندی دنیا ته راغلی دي»؟.

**دویمه نظریه:** دا ده د سالم (روغ) شخص په بدن کې د شیطان رسوخ د ناروغی علت دی. «یو شمیر خلک د ده د لیدلو د پاره وځغاستل چې له ډیری مودی مخکې یې شیطان په بدن کې نفوذ کړی و» (انجیل لوقا).

او په متی انجیل کې راغلی دی «ګنګ خلک یې د ده حضور ته وروستل چې د شیطان په تصرف کې وو».

**دریمه نظریه:** د اوسنیو موجوده لیکنو له مخی چې د ناروغیو په باره کې دی سحر او جادو ؤ. د انجیل په یوه برخه کې ویل شوی دي: «هغه ناروغۍ ګذرګا ګانو ته ولویدلی ترڅو چې د سپیڅلی پطرس په هغه ګذرګا ګانو تیر شو او د ده سیوری د ډیرو ناروغیو اثار له منځه یووړل».

پورتنيو نظرياتو قسماً په منځنی آسيا او د هغه وخت په افغانستان کې نفوذ کړی ؤ. دا نظريات د هغو نظرياتو سره مغايرت لری چې په تورات کې يې انعکاس موندلی دی. مثلاً د حضرت ايوب<sup>ع</sup> ناروغی د ده د گناه د جزا په عنوان وه نه د ده په بدن کې د شيطان د رسوخ له امله دی. همداشان د هغوی تداوی هم د جادو او جنبل په واسطه نه ده شوی. خو سحر او جادو تل د هغوی په هېواد او په گاونډيو سيمو کې ډېر زيات رواج درلود.

## د طب او طبابت په هکله د قران مجيد حکمونه

د ناروغيو په درملنه کې د اسلام د سپيڅلی دين شيوه په مادی او معنوی ډول ده. په قرآن عظيم الشان که په کراتو سره راغلی دي: چې لوی خدایج هيڅ ناروغی نه ده پيدا کړی چې د هغی د پاره درمان او شفا نه وی او دا هماغه آيت دی چې بيا وروسته د دې په موجب طبيبان (چی په عين وخت کې درمل جوړونکی و) و هڅيدل چې د مختلفو درملو د لاری د موندنی د پاره زيات تلاشونه وکړی.

حضرت محمد ﷺ فرمايي: «روغتيا په درو څيزونو مشروطه ده، شات، نشتر وهل او بادکش (حجامت کول، کدوگک يا ښکر لگول) چې سر خوږی او تبه د بادکش په واسطه درمان کولای شی. بايد پاملرنه وشی چې بادکشونه بايد د اورمېږ پرمخ کيښودل شی، ځکه چې د دې صورت نه په غير کيدای شی ناروغ خپله حافظه له لاسه ورکړی. دا ځکه چې مخچه چې د خاطراتو او حافظو مرکز وی هلته قرار لري»[۱].

حضرت محمد ﷺ پخپله ايمانی معالجه ترسره کوله، بی بی عايشه د ابوبکر صديق لور او د آنحضرت ﷺ ماندينه وايي: د اسلام پيغمبر خپل مبارک لاس د ناروغ پر بدن کيښوده او دعايی کوله، ای خدايا د ده درد ورځنی واخله او شفا ورکړه ځکه چې دا ته يې چې رنځورانو ته شفا وربخښی، په جهان کې چې کومه سلامتيا ده هغه ستا له خوانه ده او پرته له دې وجود نلری، هغه سلامتيا چې تر رنځوری وروسته نه وی، هغوی د دی طريقی په واسطه د زخميانو د درملنې د پاره هم استفاده کوله.

د عربانو په طبابت کې د زياتو ناروغيو د تداوۍ د پاره له شاتو (عسلو) ښخه کار اخستله کيده.

---

۱- داکتر سريل الکود، تاريخ پزشکی ايران، ۱۳۵۰ ص-۱۰۵

وایي یوه ورځ یو جادوګر حضرت محمدﷺ ته مراجعه وکړ او د هغه نظر یې وغوښت آنحضرتﷺ وویل: «زما له مخې لیرې شه او د مداوا کار هغه چا ته پرېږده چې کولای شي خپل ورونه تداوي کړي شي»[۱].

د اسلام د مشهورو دستورونو له جملې څخه دا دی چې په ناروغیو اخته کېدو د مخنیوي په خاطر د خوک د غوښې خواړه او د شرابو څښل منع شوي دي. پر دې برسیره ویل شوي دي چې د غوښې په خوړلو کې افراط کول د مسکراتو د څښلو په اندازه زیان رسوونکي دي.

په همدې ډول د اسلام د پیغمبر حضرت محمدﷺ زده کړې، خلک خیرات او مبراتو او د مال انفاق (نفقه) د خیر په لاره کې هدایت ورکړی دی. په دې ډول په اسلامي تمدن کې طب او طبابت تر سترګو شوي او د نورو علومو څخه زیات پرمختګ کړی دی.

باید زیاته شي چې د طب او حفظ الصحه (روغتیا ساتنې) په هکله د حضرت محمدﷺ حدیثونه په نهمه او لسمه پیړۍ کې (د هجري دریمه او څلورمه پیړۍ) راټول شوي دي، چې مربوط مسایل د موضوع له مخې تنظیم شوي او هرې یوې موضوع ته یې ځانګړی کتاب وویل او په هر سنت کې د باب نوم کېښود. که چېر ته دا حادیثو مجموعې له «صحیح» بخاري (د اهل تسنن د اخبار مدار په شپږو کتابونو دي چې هر یوه ته «صحیح» وټولو ته یې «صحاح سته» وایي او د صحیح محمد بن اسمعیٰل بخاري کتاب له هغې جملې څخه دی چې دعامو په نزد ډېرو زیاتو صحیح کتابونو څخه دي) او دا حادیثو د ډېرې مشهورې مجموعې څخه ده مراجعه کوو. په پیل کې څلورم ټوک له دوو کتابونو څخه مرکب دی چې اتیا بابه لري او هغه د ناروغانو او د طبي چارو په هکله دي. او که چېر ته د هغو مطالبو ته ځیر شو و به ګورو چې په غیر د یوې اندکې برخې چې د طب، جراحي او درملو چارو پورې مربوط دي نور پاتې یعنې د هغې زیاتره مطالب یې د هسې چارو پورې تړاو لري چې د ناروغ سره د برخورد طرز، د ده تشویق او تلقین، د ناروغانو روحي غښتلتیا او تسکین، نظر یا بدې سترګې، سحر او طلسم، تعویذ او ادعیه (دعاګانې) او د ناروغ د ساتنې او حفاظت د پاره د عباداتو او داسې نورو پورې مربوطې دي.

حضرت محمدﷺ بیا نوې چې لوی او تبارک تعالی د هر درد د پاره چې په خپلو بندګانو یې نازل کړی دی د هغو د درملنې د پاره یې مناسب

---

۱- اثر فوق، ص-۱۰۶

درمل تعیین کړی دی. آنحضرت ﷺ فرمایی «علم دوه اړخونه لری، فقه او طب»[1].

آنحضرت ﷺ خپل مبارک لاس د ماوفه په محل (حتی زخم) باندې کیښوده، د هغه د تماس او ښورولو سره یې دعا کوله. په اوسنی وخت کې د ماساژ د تداوۍ میتود پرته له تماس څخه رواج لری چې منشأ یې له هماغه وخته پیل شوی ده. مساژ پرته له تماس څخه د درملنې د ډیرو په زړه پوری طریقو یعنی د حیاتی ساحی په واسطه له تداوی څخه دی. چې د هغی نتیجی له اعجازه ډکی دی هغه څوک چې ناروغان په دې شیوی سره تداوی کولای شی کنتراسنیز ورته ویل کیږی.

د درملنې دا طریقه چې په وروستیو کلونو کې یې سرو صدا راپورته کړی ده او پوهانو دغه میتود ته رجوع کړی ده ۱۴۰۰ کاله د مخه یعنی د اسلام په لومړنیو کې له دی میتود څخه حضرت محمد ﷺ استفاده کړی ده. په ځینو شمیر درملو کې چې تجویز شوی دی شونیز (سیا دانه) «Nigella-Sativa» ژیړ صبر، رانجه (د سترګو د درد لپاره)، شیر خشت، ایره، سوی حصیر د وینی بندونکی یا قابض په عنوان قرار ورکړ شو.

د ناروغیو څخه چې نوم یې اخستل شوی دی سرخوږی، د شقیقی درد، د سترګو درد، خوره یا جذام، برص، تبه او طاعون چې وروستنی مرض د «زفیرجهنم» په صفت راغلی دی. آنحضرت ﷺ خپلو پیروانو ته توصیه کړی ده، په هغی خاوری مه ځی؟ چې هلته د طاعون مرض خپور شوی وی. او که چیر ته احیاناً په بې خبرۍ سره دغسی هېواد ته ولاړی له هغه څخه مه تښتئ.

دا لنډ مطالب چې په احادیثو، روایاتو، سیره او سنتو کې لږو ډیر موجود دی ګرده هغه مطلبونه تشکیلوی چې وروستنی لیکوالان هغه د «طب النبی» په نوم یادوی.

وایي چې تردې وروستیو پوری په هندوستان کې د پخوانی طب محصلین، دا ټول احادیث او سنتونه چې د طب النبی په هماغه نوم په یو کتاب کې راټول شوی او د ابن سینا د قانون د لنډی ضمیمی سره چې په «قانونچه» مشهوره ده د خپلی زده کړی په موده کې هغه مطالعه کوی.

په لومړنیو بدوی عربو په منځ کې لاهم عمومی اعتقاد او د معالجی وسیله د اورادو او ادعی په ویلو ؤ. غالباً د هغو په پای کې د ورد او یا دعا

---

۱- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ۱۳۵۰ ص-۸۴۵

لوستونکی د خولی لاړی د ناروغ په خوله کې اچولی کیدلی (توکیدلی). د دې وروستی عمل مثال په کتابونو کې راغلی دی د شاعرانو څخه یو تن چې «جریر» نومیده (نقایض- چاپ ایران ص-۸۴۰) خپله لور «ام غیلان» یې یو کوډ ګرته چې «ابلق» نومیده بوتله او نوموړی په همدې طریقه د سرخ باد څخه د هغه لور روغه کړی او هغه ته یې ور کړه.

(کوچنی ماشوم وم چې یو سړی زمونږ ځای ته راغی، کوچنیان یې د مول او دعایی ورته کوله او په آخره کې یې د خپلی خولی لاړی د هغو په خولو کې توکولی. ما د دعا خوان له دی کاره سر وغړاوه، پری می نښود چې زما خوله کې لاړه تو کړی او ورڅخه وتښتېدم – مولف، مومنی).

زومر Zwemer د عربستان یا د اسلام زانګو د کتاب په ۲۸۰-۲۸۴ مخونو کې په لنډ او موجز ډول د معالجو کیفیت او د معمولو طبی اعمالو په باره کې چې د عربستان د قبایلو، صحرا نیشنو، بیابان ګردو خلکو او ښاریانو په منځ کې ترسره کیدل داسی بحث کوی او هغه ستاینه چې لاس ته راکوی او تر هغی اندازی چې تری څرګندیږی په لرغونی زمانو کې د هغوی د ژوندانه د وضعی او رایجو معالجاتو، ښکارندوی دی.

د مولوی معنوی په مثنوی کتاب کې (طبع ۱۲۸۲- ص-۵) ذکر شوی دي: چې پاچا په خپله وینځه ګی مین شو او کله چې وینځه ګی ناروغه کیږی په لومړئ سرکې یې د مروجو درملو څخه استفاده وکړه خو کله چې درملو تاثیرونه کړ نو جومات ته لاړ او په دعا پاڅید.

| | |
|---|---|
| شه چو عجز آن طبیبان را بدید | پـــــا برهنه جانب مسجد دوید |
| ای دوای نخوت و ناموس مـــــا | ای تو افلاتون و جالینوس مـــا |

خو د عباسی خلیفه ګانو په زمانه کې طبابت یوی هغسی خپلی لوړی درجی ته ورسید چې نه یوازی یې د عربو ټولنی راونیولی بلکې منځنئ آسیا او لویدیزه اروپا هم د اسلامی طب تر اغیزی لاندې راوستلی.

له نیکه مرغه د اسلامی طب ستر نمایندګان زیاتره افغانی او ایرانی او منځنی آسیا څخه وو او دوی وکړای شول د اسلام تمدن په دوران کې په دې آسمان کې د لومړنئ قدر ستوری وو لکه رازی، ابن سینا، اهوازی، جرجانی (ګرګانی) د بختیشوع کورنئ او داسی نور.

«پر عجمو د اعرابو غلبه او هغه اجبار چې ليکوالانو د وخت په علمی ژبه يعنی عربی د کتابونو او تاليفاتو په ليکلو کې (لکه په منځنيو پيړيو کې په اروپا کې لاتينه ژبه) درلود د دی باعث شو چې ځنی تذکره ليکونکی او مورخين ټول اسلامی تمدن د عربو په حساب کې راوړی دی، په داسی حال کې داسی نه ده. ځکه د اسلامی تمدن زياتره پوهان غير عرب دی، او د مفتوحه هېوادونو د ملتونو څخه زيات شمير د اسلام او د قرآن مجيد د زده کړو په برکت په دې مهم چارو کې ګډون کړی و»[1].

دلته لازمه ده چې په افغانستان، ايران او سيمه کې د يونان او روم د پوهانو هستوګن کيدل او عربی ژبی نفوذ روښانه شی.

مسيحی اروپا د هماغی څلورمی پيړۍ راهيسی د يونان د علم سره مخالفه وه، ځکه چې په ټولنو کې د خرافاتو تقليد او تعصب حکومت کاوه. د همدې پيړۍ په وروستيو کې د کارتاژ دينی شورا د غير عيسوی آثارو لوستل تحريم کړل او په پنځمه پيړۍ کې د قسطنطنيی دينی شورا د اسقف نسطور او د کليسا نسطوريان چې عيسوی دين يې د يونان د فلسفی سره وفق ورکړی و د شرقی روم د امپراطوری د پايتخت څخه بيرون ته وايستل.

په شپږمه پيړۍ کې د شرقی روم امپراطور ژوستنين د اتن پوهنتون وتړه، عيسوی ملايانو هم لرغونی علمی کتابونو د پوستکی د پاڼو پرمخ موهومی دعاګانی او اوراد ليکل.

نو دا ده چې اروپا د منځنيو پيړيو په ژور او اوږده خوب کې تللی وه او د پوهی، علم او فرهنګ نور او روښنايی د منځنی آسيا په سيمو کې وځليدله او بالاخره خپل لوړ معراج ته ورسيدلی، خو د شرقی روم امپراطوری د و چې او اوبو څخه د ختيزو هېوادونو سره پراخ تجارت درلود د چين، افغانستان، ماورالنهر، ايران، هند، عربستان او حبشی مالونه او شيان د هغوی په بازارونو کې ورتوئيدل.

د شرقی روم او ايران د دولتونو د کمزورتيا او فساد په اثر و چې د عربو نوی ظاهر شوی ملت په دواړو يرغل وکړ او له ۶۳۳ څخه تر ۶۵۱م يعنی د ۱۸ کلونو په موده کې د ايران ټوله شنهشاهی ونيوله، سوريه، فلسطين او مصر يې هم د روم د شنهشاهی څخه جلا کړ.

---

۱- دکتر ادوارد پراون، طب اسلامي، ۱۹۵۶م ص-۱۱

په داسې حال کې د اسلام دين ديني او معنوي د دواړو جنبو التزام کاوه دا وه چې په یوه لاس کې يې قرآن مجيد او بل لاس کې يې توره درلودله.

که څه عربو د خپلې فرمان روايي په د ننه کې د خپلې ژبې په تعميم او پراختيا کې فشار نه راوسته او په توره يې تکيه نه کوله، خو کله چې معنوي فرهنګ يې حاصل کړ ژبه او ادب يې پرمخ لاړ او د عربي ژبې خپريدل په آساني سره مهيا شوې نو عربي ژبې د اسلامي هېوادونو په دفترونو او ادارو کې رواج وموند.

له دې ځايه و چې د منحنی آسيا د هېوادونو پوهان لکه ابن سينا بلخي، رازي، ګرګاني، هيروي کورنۍ او نورو خپل علمي او تحقيقاتي آثار زياتره په عربي ژبه ولیکل. حال دا چې د هغوی څخه هیڅ یو عرب نه و.

**طبابت د امويانو په دوره کې:**

اموي دولت يو فاتح دولت و. د دې دولت دوران ته د جنګ، جهاد او په نړۍ کې د اسلام د دين او عربي ژبې د خپريدلو عصر ويلای شو. په دې عصر کې د عربو د ټولنې پوهان زياتره په قرآن، تفسير، حديث او فقې باندې مشغول و، او تر اوسه پورې يې د نړۍ د لرغونو علومو سره سروکار نه درلود. خو د دوی پراخو فتوحاتو د عربو د ملت پيژندنه او آميزش د نورو ملتونو اديانو، فلسفې او علومو هنر او د نړۍ د مختلفو مدنيتونو سره ناګزير کړل. او دا پخپله په آينده کې د يوه ګډ تمدن د منځ ته راتلو د پاره زمينه برابره کړه چې طبابت هم د دغه تمدن ډېره غښتلې برخه وه.

**طبابت د عباسيانو په دوره کې:**

د عباسيانو په دوره کې ۳۷ تنو له ۷۵۰-۱۲۵۸هـ پورې يعنې د پنځو پيړيو په اوږدو کې د اسلامي خلافت په سرکې قرار درلود. خو عباسي دولت يو عربي دولت نه بلکې يو بين الاسلامي دولت و چې په هغه کې د افغانستان، ايران، ماوراالنهر، ترکانو او د مسلمانانو اکثرو ملتونو د شخصيتونو سياسي نفوذ زيات تاثير درلود.

په تیره بیا د افغانستان د شخصیتونو لکه خراسانی ابومسلم چې د اموی دولت څخه یې عباسیانو ته سیاسی قدرت ور انتقال کړ.

د نړیوال تمدن او فرهنګ له مخی عباسی دوران د اسلام په تاریخ کې یوه ځلانده دوره او د نړۍ په تاریخ کې یوۍ نوۍ پاڼه شمیرل کیږی.

عباسی دولت نړۍ د لرغونی فرهنګ سره خاصه مینه لرله د هر ملت او مذهب پوهان یې د سیاسی مخالفینو په استثنا پوره درناوی کاوه. د عباسیانو دربار په نړۍ کې د فلسفی او دینی مناظرې او مناقشې د پاره ډیر ښه محل شمیرل کیده.

په اوومه پیړۍ کې په هغه وخت کې چې د افغانستان سره د عربو تماس برقرار شو د افغانستان خلک د عربو په نسبت د اقتصادی له نظره، د پرمختللی کرنی، آبیاری او پیشه ورۍ درلودونکی وو. ښارونه یی ډیر ښه آباد او د سوداګرۍ لاری یې له هند، چین، مرکزی آسیا، ایران او افغانستان څخه تیریدلی، د کابلشاهانو دولت دا لاری په خپل واک کې درلودلی، په ښارونو کې د پیسو دوران تجارتی راکړې ورکړې اسانولی او د افغانستان د محلی حکومتونو مختلف مسکوکات په بازارونو کې رواج درلود.

«د هغۍ ورځۍ افغانستان د فرهنګ له نظره د ریاضی، نجوم، طب او الهیاتو سررشته درلودله. د یونانی او ساسانی د علومو او د هندی فلسفی سره آشنا وو»[۱].

په کال ۶۷۰هـ کې پنځوس زره عربی عسکر د خانه کوچ په شکل د ربیع بن زیاد په مشرۍ افغانستان ته راننوتل او تر بلخه پوری وړاندی لاړ، د دې پنځوس زرو عربو کورنیو ته د افغانستان په شمالی ښارونو کې هستوګنځی ورکړ شو.

د افغانستان د خلکو د عربو د خلکو سره نژدیوالی، د یوه او بل پیژندنی او د خپلولۍ د اړیکو د منځ ته راتلو سبب شو او دا کار د اسلام د دین په خپرولو کې په تدریج سره پوره ګټور تمام شو.

څرګنده ده چې د عربو طبابت د خپل ابتدایی توب باوجود «یعنی عربو له ځانه څه شی نه درلودل او یوازی یو څه یې د نجوم، لرغونی طب، ګیاه پیژندنی او بیطاری څخه له بابلیانو څخه د صائبینو په واسطه اخستلی

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۶۶

وو. په همدې ډول دوی په فال نیولو، شوګون او جادو باندې عقیده درلودله»[1] او دغه لاس ته راوړنې یې د افغانستان د طبابت سره یو ځای شوی.

د یوې پیړۍ په اوږدو کې د افغانستان ملت تریوی اندازی پورې د عربو د ملت ذوقونه ومنل د هغوی دین او ژبه یې د خپلې ژبې په خوندی ساتلو قبوله کړه. عربی ملت هم د افغانستان د لرغونی تمدن او فرهنګ سره آشنا شوی او دی دواړو ملتونو د اسلامی راتلونکی مدنیت په تشکیلیدلو کې پوره اغیزه واچوله.

«لکه څرنګه چې افغانستان د عربو دین او ژبه ومنله خپل ریاضیات، نجوم، انشاء او ترسل یې د هندوستان د طب او فلسفی سره هم عربو ته اهدا کړل. او په مجموع کې یې د اسلامی ګډ مدنیت په جوړیدلو کې موثر نقش ولوباوه»[2].

## طبابت د طاهریانو په عصر کې:

د طاهریانو په دوره کې طبابت او، د خلکو هوسایي ته ډیره خاصه پاملرنه کیدله. لکه چې عبدالله بن طاهر (د طاهری دولت موسس ۸۲۱-۸۷۲م) چې د بغداد حاکم و د خپل پلار څخه یې یو مفصل لیک تر لاسه کړ چې د هغه په یوه برخه کې لیکل شوی و «سپاهیان دی پیاوړی ولره، امنیت وساته، د خلکو سره په عدالت او ارامی رفتار وکړه – او د هغوی اړتیاوی او حاجتونه ترسره کړه، خپل برأت او سپیڅلتیا رعیت ته وښیه، او د ناروغانو د پاره روغتونونه جوړ کړه... دا هماغه د طاهر مکتوب دی چې مشهور طبری په «الامم والملوک» په تاریخ کې قید کړی دی.

---

۱- اثر فوق، ص-۵۹

۲- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۸۳

**طبابت د سامانيانو په دوره کې:**

سامانيانو چې (۸۷۴-۹۹۹م) د واکمنۍ چارې په لاس کې درلودلې، ترقۍ په لار کې يې مثبت ګامونه پورته کړي دي او د مرحوم غبار په قول دې مرحلې ته د مدنيت د ودې مرحله ويلای شو. ځکه چې په نهمه او لسمه پيړۍ کې په منځنۍ آسيا کې د اوبو رسولو چارې په مختللې وې، مالداري پراختيا موندلې، وريښمو، نساجي او کاغذ جوړولو صنعت پرمختيا کړې ده، سره زر، سپين زر، اوسپنه، قلعي، جيوه او مس، سرب او نوشادر د افغانستان او ماورالنهر له معدنونو څخه استخراج شوي و. وسلې جوړول، د کرنې آلات، لوښي، د آس براق او څرمن، صابون، شمع ريزي، د پوستکي ګنډل، قالين بافي او داسې نور صنعتونه رونق موندلی و.

«پراخه سوداګرې د چين، هند، نژدې شرق، بلغاريا او روسيې سره منځ ته راغلې وه. د تجارتي مالونو مبادله لکه... کريمه احجار، درمل، حيوانات، کاغذ... رواج درلود»[۱].

سامانيان د علم او هنر هڅوونکي او حاميان وو. د دوی دوره کې، فاضلو او علم پالونکو شخصيتونو اشخاصو وده کړې وه چې د دې لاندنيو مشاهير څخه يادونه کولای شو.

ابوالفضل محمد بن عبدالله بلعمی، ابو علی بن ابوالفضل بلعمی، ابو عبدالله محمد بن احمد جيهانی، ابو علی بن ابو عبدالله جيهانی، ابو عبدالله احمد بن ابو علی جيهانی، ابو فضل محمد بن ابو عبدالله جيهانی، ابو منصور عبيدالله بن نصر جيهانی، ابو طبيب معصب، ابوالحسن عينتی او داسې نور.

د سامانيانو په وخت کې طبري تفسير لکه د طبري تاريخ، کليله او دمنه په دري وژباړل شول. عجايب البلدان ابوالموئيد بلخی، د منصوري منثوره شهنامه، مسعودی منظومه شهنامه، د جوزجانی حدودالعالم او د الابنيه فی حقايق الادويه کتاب د هيروی تاليف تخليق شول. او شاعران لکه شهيد بلخی، رودکی بخارايی، رابعه بلخی او داسې نورو شاعرانو ظهور وکړ.

د دې دورې فيلسوفان او پوهان لکه ابوزيد بلخی، ابو سعيد سجزی، ابو سليمان منطقی، ابو جعفر خازم، او الوفا جوزجانی چې تر ټولو زيات مشهور وو د نهمې او لسمې پيړۍ محصول ابو نصر فارابی او ابن سينای بلخی دی.

۱- اثر فوق، ص-۹۹

«بخارا د سامانیانو پایتخت د خپل کتاب پلورنځی او سلطنتی کتابتون سره د منځنی آسیا د هغی زمانی علمی مرکز شمیرل کیده، ابن سینا په همدې ځای کې و چې د ارسطو او فارابی له آثارو سره آشنا شو»[1].

وایي چې د سامانیانو دربار ډیر پرتمین و او همیشه له اشرافو، خدمتګارانو، منجمانو، شاعرانو، طبیبانو او ټوکمارانو څخه ډک ؤ.

**طبابت د غزنویانو په زمانه کې:**

غزنویانو چې د (۹۶۲-۱۱۴۸م) پورې واکمنی کړیده، په تیره بیا سلطان محمود غزنوی (۹۹۸-۱۰۳۰م) په مذهبی چارو کې ډیر متعصب و. نوموړی پرته له اسلامه د هر مذهب او فلسفی سره مخالف و او له همدی ځایه دی چې د ده په وخت کې په افغانستان کې عقلی علوم ټپ ودریدل. او د سامانیانو د زمانی وسعت نظر له منځه لاړ.

د همدې عواملو له امله ؤ چې ابن سینا د غزنویانو پایتخت یعنی غزنی ته رانغی. «دا وخت د افغانستان په مدرسو کې بې له نقلی، ادبی علومو او یو څه د حساب، نجوم او طب څخه نور څه نه تدریس کیدل. په دې ډول د علم او فرهنګ انحطاط په نورو پیړیو کې دوام وکړ»[2].

په مخدره موادو اعتیاد مسئله د غزنویانو له زمانی څخه په تاریخ کې درج ده چې مسعود بن محمود (۱۰۳۰-۱۰۴۱م) برسیره پردې چې زیات شراب یې څښل کله کله یې اپین هم خوړ.

په ۱۰ او ۱۲ پیړۍ چې د غزنوی دولت سره مصادف دی «تجارتی لاری امن ناکی او کاروانسرایونه آباد وو. دې کاروانونو د افغانستان، چین، هند، ترکستان، ایران، عراق، مصر او شام (سوریه) تجارتی مالونه وړل د هغوی په مال التجاره کې... عطریات او ادویه شامله وه همداشان سرکه او شراب تولید کیدل»[3].

په دې زمانه کې شاهی دربار ډیر مفصل و او طبیبان هم د پوهانو په ډله کې دربار ته لاره موندلی وه.

---

۱- اثر فوق، ص-۹۹
۲- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۱۰۷
۳- اثر فوق، ص-۱۱۴

### طبابت د سلجوقیانو په زمانه کې:

د سلجوقیانو په زمانه کې (۱۰۳۸-۱۱۵۳م) د طبابت په برخه کې څه نه دی لیدل شوی. هغوی هم د ادب د تشویق په باره کې له غزنویانو څخه پیروی کوله او مذهبی تعصب یې لازیاتښت وموند.

د دوی په زمانه کې د سوداګری د پراختیا عصر و چې د درملو تبادله هم پکې شامله وه.

### طبابت د غوریانو د واکمنی په دوره کې:

د غوریانو دولت چې (۱۱۴۸-۱۲۱۴م) پوری یې دوام درلود هم د غزنویانو د تمدن او فرهنګ ادامه ورکوونکی ؤ. د صنعت او معماری د پرمختګ نمونه هماغه د هرات جامع جومات او د جام منار دی. کرنه د دوی په زمانه کې پرمختګ کړی او د سوداګری ساحه یې هم پراختیا درلودله.

### طبابت د خوارزم شاهانو په زمانه کې:

په دې دوره (۱۲۱۴-۱۲۱۹م) کې چې ابوالعباس مامون بن محمد یو علم پالونکی پاچا ؤ. د هغې زمانې د نړۍ د ډیرو زیاتو مشهورو پوهانو څخه لکه ابن سینا، ابوریحان، ابوالحسن سهیلی او ابوالخیر خمار د ده په دربار کې هستوګنه درلودله او علمی کتابونه یې د ده په نوم لیکل. «اورګنج یا ګرګانج ښار د خوارزم پایتخت په دیارلسمه پیړۍ کې د منځنی آسیا د تمدن، فرهنګ او سوداګرۍ ډیر زیات لوی کانون او د پوهانو او دیو شمیر کتابتونو مجمع وه»[۱].

سید اسمعیل جرجانی (ګرګانی) د خوارزم شاهی د ذخیری کتاب مولف او د هغه خطی نسخه د افغانستان په ملی ارشیف کې موجوده ده. د خپل عصر د طبابت ډیر لوی شاهکار یې ایجاد کړی دی.

په ګرګان کې یو ښه روغتون د بهاءالدوله له خوا بنا شو چې د هغه ریاست تر یوه وخته پوری د جرجانی پوری تړاو درلود. او د دی وظیفی په ترڅ کې یې په خپلو یادداشتونو کې ولیکل «په دې پست باندې زما تر

---

۱- اثر فوق، ص-۱۹۸

تصدی وروسته روغتون ته د ناروغانو مراجعه هغومره زیاته شوه چې زیاتې راته د تالیفاتو د تکمیلولو فرصت پاتې نه شو»[۱].

که چیرته د خپل هېواد تاریخ ته راوګرزو نو کتلای شو چې د دې خاورې په هره ګوښه او څنډه کې د نړۍ ډېر سترو مدنیتونو خپل پلونه پرېښې دی. چې د دې مدنیتونو په څنګ کې د طبابت وده د علومو د نورو څانګو په نسبت هم یو مهم ځای درلودلی دی. وایي چې د زرنج ښار ډېر لوی، ودان، سمسور، د اوبو د ویالو درلودونکی، محکم دیوال او خندق درلود چې لویې دروازې یې لرلې.

په دې ښار کې د علومو او فنونو مختلفو ډولونو ښه وده کړې وه چې طبابت صنعت هم یکې شامل وو او د لومړنیو اړتیاوو څخه شمیرل کیدل – د ښار عایدات په دوهمه درجه د خلکو حفظ الصحی (روغتیا ساتنی) په خصوص کې په مصرف رسیدل.

«عمر لیث په زرنج کې یو بازار جوړ کړی و چې د ده په نوم یې شهرت درلود، او د بازار عایدات پر جومات او روغتون باندې مصرفیدل... د دوکانونو کرایه په ورځ کې تر یوزر درهمو هم رسیدله»[۲].

سایکس انګلیسی د سیستان په هکله لیکی «...که چیرته پخپله د سیستانیانو په قول یوسلوشل ورځی بادنه الوتلای نو سیستان د هستوګنی وړنه ؤ. له اپریل څخه د جون تر اخره پورې هلته زیات باد الوته که څه هم ګرم او نا مطبوع و خو بیاهم دغه باد د ملاریا عامل له منځه ووړ»[۳].

ساوج لیندر چې په ۱۹۰۱م کې یې د سیستان څخه لیدنه کړې وه د سیستان د خلکو د روغتیا ستاینه کوی. هغه وایي چې هغوی ښه سالم دی ګټوری ښځی، نران او کوچنی لری، د زړه ناروغی هلته هیڅ نشته دی، او د هغوی ځیګر پوره سالم دی (د پورتنی اثر د ۹۴ مخ په حواله).

که چیرته افغانستان د اسلام له ظهوره د مغلو تر حملې پورې په ډېره لنډه توګه تر ارزیابی لاندې ونیول شی، نو ویل کیدای شی چې افغانستان د اسلام تر ظهوره پورې ځان ته مخصوص خپل فرهنګ درلود، چې د یونان، هند او ایران له فرهنګ څخه متاثر و.

---

۱- سید اسمعیل ګرګاني، ذخیره خوارزم شاهي، ص-۱
۲- پوهاند عبدالحی حبیبي، پنجاه مقاله، ۱۳۶۲ ص-۶۷
۳- محمد اعظم سیستاني، سرزمین ماسه ها و حماسه ها، ص-۹۰-۹۱

د اسلام د مقدس دين تر ظهور او د اسلامي فرهنګ تر ودې وروسته د افغانستان فرهنګ د اسلامي نورو هېوادونو غوندې په شرق او غرب کې د اسلامي فرهنګ تابع وګرزيد چې د يوه خاص هېواد فرهنګ نه بلکې يو عمومي فرهنګ و چې د شرق او غرب له بيلا بيلو فرهنګونو څخه اقتباس شوی و.

عربو تر اسلام نه د مخه د انسان ژوند ته په خاص نظر کتل او کله چې د يوه شي له پوهيدلو څخه به پاتې راغلل هغه به يې ماوراء لطبيعه ته حواله کول او د دې نظر ترڅنګه په سحر او جادو يې عقيده پيدا کړه. د دې دورې ديني علوم د متحدنو ملتونو د علومو څخه د ترجمې له لارې ګټه اخستلې او سرياني، حراني، افغاني، ايراني، هندي او داسې نورو مترجمانو، د رياضياتو، نجوم، طب، طبعيات او د نورو ډېر غوره اطلاعات په عربي ژبه وژباړل او اسلامي تمدن ته يې وړاندې کړل. دلته زياتره د سقراط، افلاطون، ارسطو، بطليموس، جالينوس، ارشميدس او نور اثار په عربي ژبه راواړول شوي وو.

د هندي آثارو ډېر مهم مترجمان ابوريحان او د نورو ژبو ژباړونکي د بلخي برمکي، سهل سرخسي، ابن المقفع او ايراني نوبخت کورنۍ وې. همداشان د بن موسى، بن شاکر منجم، آل بختيشوع کورنۍ، د عيسوي حنين کورنۍ د کرخي او داسې نورو کورنيو مترجمينو بيلا بيل علوم د بيلا بيلو ژبو څخه وژباړل.

د سور يې مسيحيانو د حران صائبينو (بين النهرين) او د جندي شاپور مدرسه د دې ټولو علمي ذخيرو وروسته لکه يوناني، رومي، اسکندرياني، سرياني، خراساني، ايراني، منبطي، هندي او نورو په اتمه او نهمه پېړيو کې د اسلامي هېوادونو د علومو د تکوين او تدوين موجب وګرزيدلي او په لسمه او يولسمه پېړۍ کې خپل اوج ته ورسيدل.

د دې پېړيو په موده کې عربي ژبې هېوادونه، افغانستان، ماورالنهر، ايران، مصر، المغرب او اندلس هر يو يې د اسلامي تمدن کانون ګڼل کيدل.

د علومو په دې غورو مرکزونو کې طبيبان او منجمان د دربارونو په لمړيو صفونو کې قرار درلودل. څه وخت چې مسيحي عالمان د ايتاليې او هسپانيې په جنوب کې د اسلامي تمدن او فرهنګ سره مقابل شول، نو سترګې يې خړې شوې او د اسلامي فرهنګ د آثارو ژباړې ته يې پام شو، د رياضي، ستورې پيژندنې، طب، طبيعي، فلسفي، علم النفس، منطق او مابعدالطبيعه کتابونه د ارسطو د تاليفاتو سره ترجمه شول. الکندي، فارابي،

ابن سینا، ابن باجه او ابن الرشد یې وپیژندل. تر هغه ځایه چې ایطالوي دانته «بلخي ابن سینا او اندلسي ابن الرشد ته د یونان د ډیر معظمو حکماوو په ردیف کې د خپل دوزخ په پاڼو کې ځای ورکړ»[۱].

بیا وروسته طبیعي فلسفه او د ابن الصفا کتابونه د سیستاني ابوسلیمان د پیروانو د منطق سره اندلس ته وارد شول او د فارابي تالیفاتو اغیزې د ابن سینا قانون د اغیزو سره یو ځای څرګندې شوې.

ښایي یادونه وشي چې د اسلام د ډیرو لویو فیلسوفان او عالمانو پسې لکه ابویوسف یعقوب بن اسحق الکندي، ابوبکر محمد بن ذکریا بن یحیی الرازي، ابونصر محمد بن محمد فارابي، ابوعلي ابن مسکویه، ابن الرشد، ابن خلدون، ابن الطفیل او ابن باجه غوندې – افغانستان هم اسلامي او نړیوال فرهنګ ته مشهور فیلسوفان او عالمان وړاندې کړل. لکه سرخسي، ابوزید احمد بن سهل بلخي، ابوالحسن شهید بلخي، ابوسلیمان خجستاني، ابوالخیر بن خمار، ابوریحان بیروني، ابن سینا، ناصر خسرو بلخي او داسې نور.

د دولسمې پیړۍ په وروستیو کې د بلخ، مرو، نیشاپور، هرات، بامیان، زرنج او غزنې ښارونه په منځنۍ آسیا کې د هغې زمانې د افغانستان د ډیرو لویو ښارونو څخه ممتاز ګڼل کیدل. د دې ښارونو په بازارونو او کوڅو کې د معیشتي نورو محلاتونه علاوه حمامونه هم موجود وو په داسې حال کې چې په منځنۍ پیړۍ کې اروپا حمام نه پیژانده. په دې وخت کې سوداګر، صرافان، طبیبان، ملایان، شاعران، دبیران (مرزایان) د احترام وړ ګڼل کیدل.

خو کله چې فقیانو او معتصبینو غلبه وموندله او د وخت د دولتونو ملاتړ له منځه لاړ. د ګډوګډیو د ساتنې له مخې معقول علوم مردود وشمیرل شول، د لوړې زده کړې او روزنې د افغانستان په مدرسو او جوماتونو د ادبي، شرعي، فقي، حدیث، تفسیر او عقایدو او قسماً د طب او نجوم په علومو منحصرې شوې.

د افغانستان د دې فرهنګي انحطاط مقدمه لکه د نورو اسلامي هېوادونو غوندې له یولسمې پیړۍ وروسته راټوله شوه. داوه چې عقلي علوم او عالمان د پر له پسې ډیرو سختو ګوزارونو لاندې راغلل، فلسفه او علوم

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۱۵۸

ریاضی، طبیعی، هئیت او شیمی څخه رانیولی دا ټول د اسلامی شریعت ضدیت واقع شول، وروسته علوم او فلسفه د علم التعطیل په نوم مشهور شو او منفور شول. یوازی د ریاضیاتو او طب څه برخی هغه هم د لوړی طبقی د محسوسو اړتیاوو څخه ومنل شوی.

**د اسلامی طبیبانو خدمتونه:**

۱- اسلامی طبیبان عموماً د هیپوکرات او جالینوس حکیم شاګردان دی چې په ډیر غور او دقت سره یې د هغوی د طبی کتابونو مطالب زده کړی او په بریالی توګه د هغوی د شاګردۍ له عهدی څخه راوتلی دی. دوی ډیر زیات احترام، تواضع او فروتنۍ سره چې د یو شاګرد د پاره په کار دی د خپلو استادانو په باره کې ښایی قایل ؤ او منتها د هغوی څخه کورکورانه تقلید نه دی کړی.

مثلاً محمد ذکریای رازی د شکوک د کتاب پر هکله چې پر جالینوس یې لیکلی دی او په کال ۱۳۱۸هـ ش د «محمد ذکریای رازی شرح حال او مقام» د کتاب په ۲۴۷مخ تری یادونه شوی داسی راغلی دي:

د کتاب په مقدمه کې محمد ذکریای رازی د خپل کار په باب عذرغوښتلی او وایې د جالینوس مقام له هیچا څخه پټ نه دی او ممکنه ده چې ځنی لنډ فکران ما په دی کار ملامت او سرزنش هم کړی، خو هغه څوک چې فیلسوف او حکیم وی پر ما به په قارنه شی په دې دلیل سره چې په حکمت او فلسفه کې تقلید جایز نه دی. او په کار دی چې هغه د دلیل، برهان، صحبت او مباحثی له لاری منځ ته راشی. که چیرته شخصاً جالینوس ژوندی وای زما به یې په دې لیکنه ستاینه کړی وای (د ۱۳مخ په حواله).

۲- هغه وخت چې اسلامی طبیبان د خپلو استادانو په زده کړو ښه وپوهیدل، نو لږ لږ یې د هغوی پر عقایدو او تفکراتو هم په ډیری درناوی سره ایرادونه ونیول او بې له دی چې د خپلو استادانو په نسبت د بی احترامۍ مورد وګرزی دا ډول ګوتی نیونی یې په ډیر نظم او ډیرۍ ښۍ وجهی سره په خپلو کتابونو کې بیان کړی.

تر کومه ځایه چې د لویدیزی مځکی مورخانو تری یادونه کړی ده د هیپوکرات او جالینوس شاګردان د خپل سرشار ذکاوت او نبوغ په واسطه له خپلو استادانو څخه بیل شول او له هغویی نه مستغنی وګرزیدل.

۳- وروسته له هغې چې اسلامی طبیبانو وکړای شول د هیپوکرات او جالینوس د مکتب په دوام خپل تتبعات او تجربې د څرګندیدو ډګر ته راوباسی د هغوی فکری استقلال یوې داسی مرحلې ته ورسید چې په خپلو ټولو مطالبو کې یې د همدې فکری استقلالیت او په تجربه سره د هغوی د تطبیقولو په اثر – یو شمیر آثار له ځانه په یادګار پریښودل چې د پوهانو د شاباسې وړ وګرزیدل. لکه چې رازی په خپل مشهور کتاب چې «مرشد» یا

«فصول» نومیږی او د هیپوکرات له فصولو له مخی اقتباس شوی دی په مقدمه کې داسی وایي:

«څه رنګه چې د هیپوکرات د فصول کتاب د نظم او تفصیل د نه درلودلو له حیثه د طب د علم طالبانو او متعلمانو مشکل می ولید، له دی امله می تصمیم ونیو چې دا کتاب تنظیم کړم چې د طب د صنعت مدخل او د شاګردانو د پاره یوه اسانه طریقه وي»[۱].

۴- د دې سیمی طبیبانو د یونانی کتابونو د ژباړنو تر دوران وروسته فکری استقلال حاصل کړ او د یونانی استادانو کتابونه یې حلاجی او زیرو زبر کړل او بیایې هغه نیمګړتیاوې چې په هغو کې ولیدل شوی په ګوته کړی او د هغوی په لیری کولو او بشپړولو مشغول شول چې دا مطلب د ابن سینا په خواږه بیان کې د ارسطو د «ما بعدالطبیعه» د کتاب په باره کې چې څلوېښت کرته یې هغه ویلی او بیایې هم په هغو د پوهیدلو او درک کولو لاره نه ده موندلی، په ښه توګه څرګندیږی ترڅو چې بالاخره د «اغراض ما بعدالطبیعه» د ابونصر فارابی کتاب ګوری او د دې کتاب په مرسته د ارسطو په فلسفه او حکمت باندې پوهیږی.

... علی بن عباس مجوسی اهوازی ارجانی د «کامل الصناعه العبیته الملکی» یا د «ملکی» لیکوال د خپل کتاب په مقدمه کې دی نکتی ته اشاره کړی ده. په دی معنا چې د بقراط، جالینوس، اوریباسیوس، فولس الاجنطی، یوحنا بن سرابیون او حتی رازی له کتابونو څخه استفاده کړی او پخپله عقیده یې وروسته له هغه چې د هغوی کتابونه یې په غورسره کتلی په هر یو کتاب د نیمګړتیاوو په باره کې یې په مفصل ډول یکایک انتقادات بیان کړی دی.

۵- اسلامی استادانو او طبیبانو د ژباړنو د دوران د طی کولو او د یونانی استادانو د کتابونو د مطالبو د ښو زده کړو او د بشپړتیا د دوران وروسته شخصاً پخپله یې ګران بیه آثار او تالیفات ولیکل چې تر اتلسمی او نولسمی پیړۍ پوری یې د اروپا طب تر خپلی شعاع لاندې ساتلی ؤ. که په لنډه توګه یې یادونه وشی اسلامی طبیبانو په طب کې څلور مهم آثار له ځانه پریښودلی دی:

۱- یونانی تیت او پرک او مشوش طب یې مرتب کړ.

۲- طب یې له نظری صورت څخه راویست، علمی او تجربی طب یې ایجاد کړ.

---

۱- دکتر ادوارد براون، طب اسلامي، ۱۹۵۶م ص-۱۴

۳- علم الامراض (Pathalogie) ته یې پراختیا او وده ورکړه او ډېر هغه ناروغتیاوی چې تر دغه وخته پوری تری چا خبر نه درلود د طب په نړۍ کې یې وارد کړ.

۴- د وظایف الاعضا له نظره یې په طب کې د درملو اغیزی واردی کړی.

**د اسلام تر ظهور وروسته د دی سیمی نظری او عملی طبابت خصوصیات**

په دې مبحث کې به د هغه طرزالعملونو په باب چې د طبابت په برخه کې یې رواج درلود موضوعګانې شاملې دی، په کومو کې چې د طبیبانو د مبارزاتو په متعلق یې د حقه بازانو او استفاده جویانو په مقابل کې په لنډ ډول معلومات وړاندی کیږی. همداشان د هغوی پرمختیاوې هم یادونه کیږی چې د طب او درمل جوړولو په برخه کې په دې هکله منځ ته راغلی دی.

۱- هغه کسانو چې غوښتل طبیبان شی لازمی زده کړی یی ډېر ژر پیل کولې. لکه چې حنین له جندی شاپور څخه بغداد ته راغی یوازی اولس کلن و او تر دی وخته پوری یې د جندی شاپور مدرسه پای ته رسولی وه.

۲- د طبابت د څانګی محصلینو د طبابت د مسلکی درسونو برسیره باید نوری رشتی هم زده کولای لکه د دی رشتی څخه هندسه وه ترڅو چې د دی لاری وکړای شی زخمونه په سمه توګه تشخیص کړی او دا ځکه چې مدور زخمونه ډېر په ځنډ جوړیږی او کثیرالاضلاع زخمونه ژر جوړیدای شی.

همداشان ستوری پیژندنه هم طبیبانو ته ور زده کول ترڅو چې د درملنې مناسب ساعتونه کشف کړی شی.

او دا هم په کار وه چې د موسیقی په باره کې معلومات ولری ترڅو چې وکړای شی د ناروغ نبض په موشګافانه ډول ونیسی او د هغو له حرکاتو څخه پر ناروغی ښه وپوهیږی.

۳- خوانانو چې د طبابت په زده کړه پیل کاوه، د خپلو خپلوانو (پلار، کاکا، ماما او نور خپلوان) څخه چې که طبیبان وو کمک ته یې ترجیح ورکوله چې د دوی سره مرسته وکړی.

۴- د طبابت زده کړی ډیره ښه برخه په روغتونونو کې د محصل فعالیت ؤ.

۵- هغه چا چې غوښتل یی چې جراح شی پرته له طب زده کړو څخه به یې بیا د پیاوړو جراحانو تر لاس لاندې کار کاوه.

۶- محصلانو به د خپلو استادانو سره یو ځای لکه نن د ناروغانو څخه کتنه (ویزیت) کاوه او د ناروغانو د تشخیص او درملنی په باره کې به یې بحث کاوه.

۷- استادانو د طبابت د علم د تدریس د پاره هر یو ځانته خاص میتود درلود. لکه چې رازی به د تدریس لپاره تل پیچلی، وخیم او شدید ناروغان انتخابول. لومړۍ تازه کار او بیا پخوانیو شاګردانو خپل نظریات څرګندول او که و نه کړای شول ناروغی تشخیص کړی بیا به یې رازی ته وړاندی کاوه.

۸- د طب په مدرسه کې مروج کتابونه د سقراط، رازی او حنین کتابونه او مسایل وو. په دوهم کال د ثابت بن قره ذخیره، د رازی المنصوری او ذخیره سید اسمعیل جرجانی لوستله.

۹- پخوا تر دې چې به شاګردانو د طبابت په کار شروع کوله مجبور وو چې آزموینه ورکړی. همدارنګه په کال ۹۳۱م کې د طبیبانو څخه هم امتحان واخستل شو چې د سنان بن ثابت بن قره له خوا واخستل شو او ۸۶۰ تنه بریالی شول.

۱۰- د هیپوکرات د سوګندنامی له تطبیقیدو څخه کنترول ترسره کیده، کنترولر ته محتسب ویل کیده.

۱۱- معموله وه چې اصیل زادګان باید طبابت زده کړی چې په نتیجه کې د خلیفه، پاچا او یا حداقل د وزیر او د سپاهیانو د سرآنو او داسی نورو مخصوص طبیبان شی.

د پاچا په دربار کې پیاوړو طبیبانو ته حکیم باشی ویل چې نور حکیمان د هغوی تر لاس لاندې وظیفه اجرا کوله. د حکیم باشی وظیفه ډیره خطری هم وه چې د اشتباه په صورت کې ډول ډول جزاګانی حتی په اعدام محکومیدل.

۱۲- په هغه زمانه کې اختصاصی څانګی موجودی نه وی، خو ځینو د ښی درملنې په اثر شهرت ترلاسه کاوه لکه ابن سینا د اعصابو د ناروغی په درملنه کې زیات شهرت درلود.

جراحانو چې تعداد يې نسبت نورو ته کم و د استاد په نامه ياد ديدل. جراحان به د جالينوس اوه واړه د تشريح کتابونه او په اورتوپيدی کې د کناش په کتاب کې امتحان ورکاوه.

جراحانو به منحنی جراحی چاکو، مستقيمه جراحی چاکو، نيشتر، د هډوکو پرې کولو اره، د غوږونو پاکولو مخصوصه ميله او د مثانی د خلاصولو لپاره مخصوص چاکو درلود. د دی سامانونو ترڅنګه به يې د پانسمان لوازم، مرهم او درمل هم شامل وو. د سترګو طبيبان رانجه جوړولو کې مهارت درلودل.

۱۳- فصادان (رګ وهونکی) هم د طبيبانو له جملی څخه شميرل کيدل خو ټولنيز ارزښت او مقام يی نه درلودل دوی به د سلمانی چاری هم ترسره کولی. د غاښ ايستل د طبيبانو او جراحانو کار و خو وروسته دغه دنده سلمانيانو ته ورسيدله.

۱۴- د هغو کسانو ډيره ښکته طبقی چې به د خلکو تداوی کوله او عملاً يې طبابت له حرفی څخه هيڅ معلومات نه درلود په اصطلاح سره «دوره ګرد» طبيبان وو. دا خلک ډير چالاکه او ناوړه خلک و چې په کلو کې ځان حاذق طبيب معرفی کاوه. خلک به په لومړی سرکې دوی ته مراجعه کوله او په بيلو بيلو پلمو لکه پيری نيول، دعا ليکل، جادو او کوډی او داسی نورو په واسطه به درمان کاوه. خو چې درملنه يې نتيجه نه ورکوله بيا طبيب ته مراجعه کيدله.

همدارنګه د متيازو له لاری تشخيص کول هم معمول و. د صفرا بندولو په نامه هم موجود و. او د ملاريا په درملنه کې ناروغ به يې کلک وتاړه او په کوتکونو يې واهه او بدی ښکنځلی به هم ورته کولی.

په دې ډول خلک د راز راز ناروغانو درملنې کولی چې زمونږ د کابل په ښار کې د کريم مارګير چې اوس زوی يې دغه کارته ملاتړلی نه يوازی مارچيچلی خلک يې تداوی کول بلکې دم او دعا يی کوله او همدارنګه د زيری تداوی به يې هم کاوه.

زړوښځو هم به د ناروغانو درملنه کوله عطارانو هم د درملنې کار مخ ته بيوله او داسی نور.

ذکريا رازی د ډاکتر نماشيادانو د پراخه فعاليتونو په باره کې هغه وخت چې په بغداد کې اوسيده يوه مفصله شرحه ليکلی او د دوی دا اعمال يې تقبيح کړی دی.

۱۵- د ښځو درملنه تل د ستونزو ډکه وه خو رګ وهل مجاز ګڼل شوی و. د ناروغی ښی لاس مړوند به یې طبیب ته وړاندی کاوه (ښی لاس شرافتمندانه کارونه سرته رسوی په داسی حال کې چې کیڼ لاس د هر کار لپاره استعمالیده او ممکن ناپاک وی). د ناروغ د نبض نیولو او ادرار معاینی نه وروسته د ناروغی تشخیص کیده او لازم درمل به یې ورکاوه.

۱۶- د طبیب د حق الزحمی یا فیس په باره کې داسی رواج و چې که چیرته د شپی له خوا د ناروغ بستر ته غوښتل کیده د تداوی د شروع نه مخکې فیس ورکاوه او مزمنو ناروغانو څخه وروسته د درملنې څخه فیس اخستل کیده.

که چیرته به ناروغ روغتیا وموندله – دومره مشکل موجود نه و، خو که به مړ شو د وفات شوی شخص خپلوانو به ټولی نسخی د ښار د طبیبانو رئیس ته وړلی، د هغه تر کتنی او څیړنی وروسته به یې یا دا چې معالج طبیب ته برأت ورکاوه او د هغه تداوی به یې تائیدوله او که تداوی په چارو کې به یی تشخیص او معالجه درسته نه وه د مړو خپلوانو ته به یې ویل «له معالج طبیب څخه د خپل مړ شوی خپلوان خون بهادی وغواړی ځکه چې دی ؤ چې د خپلی بې خبرۍ له امله د خدای تعالی د یوه بنده د مرګ سبب ګرزیدلی دي» (د معالیم القرب د ۴۵ مخ په حواله).

سلمانیانو چې به هم د ماشومانو سنتګری ښه اجرا نکړه ممکن جریدمه کیده به (پورتنی اثر) د طب د فیس د اندازی په باره کې باید وویل شی چې دغه اندازه متفاوته وه. خو طبیبانو لومړی سرکی اخستل شوی فیس نه شمیره او حتی په دوهمه قدمه کې به یې په خپل لاس هغه نه اخستلی او دا کار یې د غلام بچه په لاس اخستلی چې د طبیب سره به یو ځای ګرزیده.

لکه چې په اوس وخت کې په ندرت سره لیدل کیږۍ ځینو طبیبانو به د ناروغ سره به چنه وهله او یا کله چې به یې د معاینی او تشخیص وروسته فیس نه تادیه کیده، نو ناروغ ته به یې نسخه نه ورکوله او هغه به یې څیروله. په پخوانیو زمانو کې د دی ډول پیښو زیات مثالونه لیدلای شو.

نقل دی چې د ابن وصیف په نوم یو طبیب د زیاتی چنی وهلو وروسته دی ته حاضر شو چې د (۷۰) درهمو په مقابل کې د یوه چا د سترګو د مروارید اوبه جراحی کړی، داځکه چې ناروغ ادعا کوله چې تر دی اندازی پورته د تادیی وسه نلری، خو د عملیاتو په جریان کې نا څاپه د

هغه له لستوڼی ځخه د سکو ډکه کیسه ولویدله، کله چې ابن وصیف هغه ولیدله د عملیاتو په منځ کې یې د جراحی کار په نیمه پریښود[۱].

۱۷- د درملو څخه خبرتیا او د هغو په تهیه کولو پوهیدنه چې طبیب به تجویز کوله د اهمیت څخه ډکه یوه حرفه شمیرل کیدله. کله چې عربانو په دی یوه شول چې طبابت له درمل جوړولو څخه جلا دی. او هغومره مهم دی، چې د تبحر او تخصص پورې تړاو لری، چې د هغو سرته رسول د هغه چا د پاره میلاو نه دی چې فقط طبابت یې ویلی وی داځکه چې د هغه د اصولو د زده کړی د پاره یې هیڅکله وخت نه درلود. دی ډول افرادو د طبابت حق نه درلود.

۱۸- د عمومی حفظ الصحی (روغتیا ساتنی) پورې مربوط قوانین د خلیفه ګانو په زمانه کې وضع شول او د هغوی د تطبیقولو مسئولین هم د محتسبانو په غاړه واچول شول. په دی قوانینو کې د خوراکی موادو او مشروباتو – د ډله ایزو ناروغیو له سرایت ځخه مخنیوی او عامه سلامتیاوی په دی قوانینو کې درج شوی وی. محتسبانو ته هدایت ورکړ شوی و چې ښه دقت وکړی ترڅو د ځښلو اوبه ککړی نشی. کوځی او په تیرو فرش خیابانونه جارو شی او ځرمن پخوونکی له بازارونو ځخه د باندې د دباغی چاری ترسره کړی داځکه چې دباغت ډیر سخت بوی لری.

۱۹- د جراحی په باب باید وویل شی چې د هغی مطالب ډیر محدود دی او برسیره پر دی جراحان هم تر طبیبانو او درمل جوړونکو ډیر کم وو. د ځینی مذهبی ملحوظاتو له پلوه جراحی ونه کړای شو لکه چې ښایی وده وکړی، ځکه چې د ناروغ لوځول یو ناروا کار ګڼل کیده. ابن سینا عقیده درلودله چې جراحی د هنر یو ډول دی او په کار نه دی چې هغه د طبابت یوه برخه وشمیرل شی، او له دی وخته راوروسته د طبابت او جراحی ترمنځه جلا والی پیل شو اود مغولو تر کلونو وروسته بشپړ شو.

په هر صورت د جراحی په باب ویل کیدای شی چې په کلی ډول جراحان په درو ډلو یا ډولونو باندې ویشل کیږي:

- ☜ د عروقو (رګونو) جراحان یعنی د دوی تخصص په رګ وهلو، وینی ایستلو او د دی رشتی پورې مربوطو مسایلو.
- ☜ دوهمه ډله هغه ده چې د عضلو په جراحی کې تخصص لری. یا په اوسنی عبارت عمومی جراحی وه.

---

۱- دکتر ادوارد براون، طب اسلامي، ۱۹۵۶م ص-۳۹۰

☜ دریمه ډله هغه جراحان وو چې د شکستګی، ترضیضاتو په واقعاتو کې یې تخصص درلود یا په نننۍ اصطلاح تراوماتولوګ او اورتوپید وو.

پر دې برسیره یوه ډله یې د سترګو جراحان هم وو چې په بشپړه توګه د پورتنیو درو ډلو څخه مجزا شمیرل کیدل.

د جراحی ډیر مهم عملیات لکه د اوس وخت په شان د سرطان پوری مربوط د جراحی عملیات وو. ابن سینا د وخیمو تومورونو د شرح کولو په موقع داسی وایي: «یوازنۍ د دی ناروغی چاره او یوازی هغه امید چې د هغی د بهبودۍ په باره کې شته دی هغه دا دی چې د سرطان غده د خپلی ودی په هماغه لومړنۍ مرحله کې غوڅه کړی شی. د دی غدی د پریکولو په عمل کې باید چې هغه پراخه او ژوره له منځه یووړل شی او څه رنګه چې دا کار به دومره کافی تمام هم نه شی نو په کار دی چې د جراحی تر عملیات وروسته د سرطان د غدی لومړنی محل باید و داغل شی او وسوزیږی.

خو د دې کارونو د سرته رسولو وروسته بیاهم ابن سینا زیاتوی چې د دی عملیاتو د نتیجی څخه دومره توقع هم په کار نه ده. دا یوه ښځه مثال راوړی چې د دی تی یې د سرطان د اخته کیدلو له امله ایستلی و، خو له څو کالو وروسته د سرطان نوی غدی په بل تی کې را پیدا شوی.

د جراحی یوه رشته چې د منځنی آسیا خلکو پکې خاص تبحر درلود د سنګ مثانه د تیږی ایستلو جراحی وه. ابن سینا په دی باب لیکلی:

کله چې د درملو درملنه اغیزمنه تمامه نشی او تاسی تصمیم ونیو چې د هغو تیږو څخه د خلاصون په خاطر چې ستا په مثانه کې را جمع شوی دی د جراحی له عمل څخه استفاده وکړی.

...ځینو جراحانو سنګ کلیه (د بډوډو تیږه) هم عملیات کاوه، خو ابن سینا دا کار په بشپړه توګه منسوخ وګڼه. معمولاً په دې حالت کې به صبر کاوه چې تیږه له بډوډی څخه تیره او مثانی ته لاړه شی او بیا یې له مثانی څخه را ایستله.

د سنګ مثانی تر عملیاتو علاوه یوه بله طریقه هم شته دی. لکه چې ابن سینا وایي «د مثانی د هغی تیږی چې د ادرار د جاری کیدلو مخه نیسی. د ایستلو له طریقو څخه یوه دا وه چې یوه نرۍ لوله یې د ادرارو په مجرا کې ورننه ایستله او بیا به یې هغه تیږه پری ماتوله (اوسنی بوژ). وړۍ او

ساده جراحی د سلمانیانو چې دلاکان نومیدل ترسره کیدلې او همدوی وو چې په دملو (دانو) به یې نشتر واهه، هلکان به یې سنتول او حتی د هغوی لوزی (تانسیلونه) به یې هم ایستلی.

د نسایی او ولادی د تداوی په متعلق زیاتی ستونزی موجودی وی. د ابن سینا په قانون کې یو ځانګړی فصل ته د ښځو د امیدوارۍ او زیږیدلو او د ښځو د تناسلی مجرا پوری مربوط مسایل له دی جملی څخه قبض البول ته اختصاص ورکړ شوی و او د جرجانی په ذخیره خوارزم شاهی کې هم د دی موضوعګانی په اړوند یادونی شوی دی.

د جنسی روابطو موضوع په هغه زمانه کې دومره عادی وه چې کله د پوهانو په کتابونو کې د عجیبو لیکنو سره مخامخ کیږو لکه چې ابن سینا د دی ډول د ډیرو زیاتو ساده او عادی مطالبو لیکل د یوه طبیب ټیټوالی نه دی ګڼلی «د نارینه د تناسلی آلی نفوذ او یا د ښځی د تناسلی الی تنګوالی چې له هغو څخه خوندوړی په متعلق د یوه طبیب صحبت کول نه رسوا کوونکی دی او بالخاصه ښه او شایسته دی، ځکه چې دا یو طبیعی کار دی چې زیږولو او زیږیدل ور پوری تړاو لری»[۱].

په وروستنیو کلونو کې د ښځی او نارینه د جنسی روابطو (کوروالی) موضوع په تدریج سره د علومو یوه مستقله رشته وګرزیدله او د علم الباَ په نوم یاده شوه.

د جراحی د ستنی جوړول د ځانګړی صنف په انحصار کې و. دغه خلک د کار تر شروع د مخه او د دی ډول ستنی جوړولو په حرفی د پوهیدلو وروسته به قسم خوړ چې د اوسپنی ستنی به د پولادی ستنو په عوض نه خرڅوی او دواړه ستنی به سره نه مخلوطوی.

---

۱- دکتر ادوارد براون، طب اسلامي، ۱۹۵۶م ص-۴۲۵

## دریم څپرکی

### د افغانستان طبابت د مغل له یرغل نه د شلمی پیړۍ تر لومړیو پوري

د اسلام د سپیڅلی دین ظهور ترمخه او د افغانستان پر خاوری د اعرابو تر حملو مخکي د خراسان مځکی خاصه فرهنګی او علمی وضع درلودله چې دا فرهنګ د یونانی، هندی او ایرانی فرهنګونو یو ترکیب ؤ چې هر یوه د هغی زمانی د افغانستان په علم او فرهنګ باندې خپلی اغیزی غورزولی وی.

«د دې دوری په پیل کې د افغانستان خلک د فرهنګ له پلوه (په افغانستان باندې د اعرابو حملو د پیل راهیسی – مولف، مومني) د ریاضی، طب، نجوم د علومو او الهیاتو او د یونانی علومو او د هندی فلسفی سره آشنایی درلودله، د مختلفو دینونو معبدونو لکه زرتشتی، بودایی، شیوایی، میتراپرستی په بلخ، بغلان، هډی او سیستان کې پیروان درلودل»[1].

د اسلام تر ظهوره را وروسته او د اسلامی مدنیت او فرهنګ د پراختیا پسی په افغانستان کې په فرهنګی وضع کې د یادونی وړ بدلولونه رامنځ ته شول، او په حقیقت کې د نورو اسلامی هېوادونو غوندی د خراسان فرهنګ د اسلامی فرهنګ یوه برخه وګرزیدله او په واقعیت کې اسلامی فرهنګ هم د شرقی هېوادونو د یو فرهنګ ترکیب ؤ لکه چې د دی دوری زیاتره علوم د متمدنو ملتونو د علومو له ترجمو څخه ګټه واخستله افغانی، سریانی، ایرانی، هندی او نور ژباړونکو ډیر غوره اطلاعات له ریاضیاتو، نجوم، طب، طبیعیات، منطق، فلسفی، تاریخ او قصصو او تر سلو څخه په عربی ترجمه او عربی فرهنګ ته وړاندی کول.

په دې وخت کې خراسان چې په حقیقت سره د علومو تکامل او اسلامی فلسفی کانون ؤ نامتو فیلسوفان او عالمان یې د اسلامی او نړیوال

---

۱- افغانستان در قرن وسطي، ۱۳۶۹ ص-۱

ډگرته راوايستل چې د موسی بن جابر خراسانی، ابو مشعر بلخی، ابن قيتبه مروزی، احمد ابن طبيب سرخسی، ابوزيد احمد بن سهل بلخی، ابوالحسن شهيد بلخی، ابو ريحان البيرونی، ابو علی سينا بلخی، ابوبکر محمد بن ذکريايی رازی، ناصر خسرو بلخی او داسی نورو نومونه يادولای شو.

«په خراسانی مستقلو دولتونو کې د علومو د پراختيا د پاره زياتره زمينه برابره شوه او په لسمه پيړۍ کې زياتره علمی او ادبی آثار ايجاد شول. په يوولسمه او دولسمه پيړيو کې د دی پراختيا چټکتيا دومره زياته وه چې افغانستان د علوم او فرهنگ د انکشاف له پلوه د نړۍ د هېوادونو په لومړنۍ قطار کې ودريد»[۱].

په اومه هجری پيړۍ کې چې د ميلادی ديارلسمی پيړۍ سره برابره ده د عربانو تمدن يا په بل عبارت اسلامی تمدن د مغلو د حملی په اثر داسی گوزار وخوړ چې شومی نتيجی يې آن ترننه پوری باقی پاتی دی او فلسفه چې د طب سره هسی تړلی وه چې اوس هم د حکيم عنوان د فيلسوف او طبيب دواړو د پاره استعماليږی او د هارون الرشيد د خلافت د دوری هغه رونق چې د زرين عصر په نوم يې شهرت درلودله لاسه ورکړی ؤ.

د خراسان په خاوره د چنگيز د هجوم سره د ټولنی د مادی او معنوی ژوند په ټولو ساحو کې د يادونی وړ بدلونونه په تيره بيا په معنوی ډگر کې منځ ته راغلل.

څه رنگه چې ښارونه د خاورو سره خاوری شول نو ځکه د پخوانی دوران د فرهنگی او هنری تاسيساتو څخه هيڅ څه پاتی نه شوه، زياتی نه مدرسی وجود درلود او نه کتابتون، نه عالم پاتی شو او نه فاضل، هغو عالمانو او پوهانو چې په ندرت سره ژوندی پاتی شوی وو گاونډيو هېوادونو ته وتښتيدل.

د هېواد ښارونه لکه په بدخشان، تخارستان، بلخ، جزجان، فارياب، مرغاب، مرو، هرات، نيشاپور، سيستان، زابل او کابل ښارونه چې د دی هېواد ۱۵۰۰ کلونو د کار محصول و د بشر د څو زره کلن د تاريخی سير او تکامل د يوی برخی محصول او دا گرده له منځه تللی او د ځان سره هنر، فرهنگ او صنعت وړی ؤ.

---

۱- اثر فوق، ص-۲۲

«څه رنګه چې دا وخت مدرسه، کتابتون او ښار پاتې شوی نه ؤ، نو ژوندی او سلامت پاتې عالمان او پوهان د هند، ایران او نژدی ختیز هېوادونو ته وتښتېدل او یا یې خپله پیاوړتیا د دښمن په خدمت کې ولګوله»[۱].

پروفیسور شلوم مرژه د افغانستان د تاریخ په هکله د ۱۹۶۱ کال په کنفرانس کې داسې وویل: «...افغانستان لکه فارس او چینی ترکستان د نړیوالی تجارتی لویې لاری (د وریښمو لار) پرسر پروت و... د مغلو خرابکارۍ (دیارلسمه پیړۍ) دا مملکت (افغانستان) چې د اسلامی مدنیت په ډېره پرمختللی دوره کې ؤ او د البیرونی، ابن سینا او فردوسي نومونه د هغه ستر یادګار دی په بشپړه توګه له هستی څخه را وغورځاوه»[۲].

یو شمیر انسانان چې په درو او دښتو کې د مغلو د پوځی مرکزونو او عمومی معبرونو څخه لیری او یا په هغو ځایونو کې چې دښمنان ورته رسیدلای نه شول هستوګنه درلودله ویې کولای شو چې په لومړنیو شرایطو او د ځان په اتکأ ژوند وکړی، او ځان وساتی او هم دوی وو چې افغانستان یې له ابدی انقراض څخه وژغوره، او راتلونکی ملت یې تشکیل کړ او په دې ډول سره د افغانستان د څو زره کلن تاریخ لړۍ د راتلونکی سره قطع نه شوله.

او طبابت په هره طریقه چې ؤ د نورو علومو په نسبت یې ښه رونق درلود او د دی دلیل دا و چې د مغلو حاکمانو او آمرانو معالجی او درملنی ته مبرم ضرورت درلودل. که څه هم هغه عالمان او طلاب چې ژوندی پاتی شوی وو او د لاځوان نسل پوری یې تړاو درلود تر یوه وخته پوری یې د علم او فضیلت د کسب صحیح سنت ته دوام ورکړ «خو د طب او تاریخ خپل نسبی مصوونیت د وحشی فاتحانو د تمایلاتو او خواهشاتو چې د خپلی سلامتیا او د شهرت ګټلو په خاطر ؤ مدیون دی»[۳].

او د طبیبانو سره یې د نورو پوهانو او انسانانو په نسبت په کمی بیرحمۍ سره رفتار کاوه. د دی توری دوری له طبیبانو او لیکوالانو څخه یو هم رشیدالدین فضل الله دی چې په کال ۱۲۴۷م په همدان کې چیرته چې ابن سینا ښخ دی، زیږیدلی او د اباقاخان ایلخان مغل د وخت په دربار کې یې د

---

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، مطبعه دولتی کابل، ۱۳۴۰ ص- ۲۳۰

۲- مجله اریانا ۱۰-۱۱ ګنه، انجمن تاریخ ۱۳۴۰ مطبعه دولتی کابل

۳- دکتر ادوارد براون، طب اسلامي، ۱۹۵۶م ص-۱۰۷

طبیب په حیث وظیفه اجرا کوله. او د غازان خان په وخت کې چې مسلمان شوی ؤ د وزارت رتبی ته یې ارتقا وکړه.

«د دوه ویشتو کلونو په اوږدو کې چې د خطیرو او خطرناکو چارو مصدر ؤ، ځکه چې د ایلخانان مغل د وزیرانو په منځ کې ډیر کم وزیران په طبیعی مرگ مړه کیدل»[۱].

هغه شتمنی او اقتدار چې یې په واک کې و له هغوی څخه یې د روغتونونو، کتابتونونو، مدرسو او موقوفاتو په تاسیسولو کې، د علومو د طلابو او پوهانو د علم او تشویق په خاطر په پوره مطلوبه توگه گټه واخستله.

هغه وخت د طبابت او درمل جوړولو عالمان (دا دواړه مسلکه یو تن پرمخ بیولی – مولف، مومني) د دی با وجود چې په هره لحظه کې یې خپل ځان په خطر کې لیده د دی سره یې د خلکو په خدمت کې قرار درلودل او له دی مسلک څخه یې د محتاجانو په درملنه او حتی د مغلو د اربابانو په درملنه کې استفاده کوله او دا عنعنی (طبابت او دواسازی) یې د تدریس او عملی کارونو له لاری راتلونکو نسلونو ته انتقالولی. او ځینو یې په دې لیار کې خپل خوږ ځان له لاسه ورکاوه.

د مغلو د حکامو د قساوت له جملی څخه یو وړوکی مثال داسی راوړل کیدای شی. «...کله چې چغتای خان ناروغ شو او بیا مړ شو، د ده ماندینی (بسلون) امر وکړ چې د هجیر ترکی د خان وزیر او پرستار او مجددالدین د خان معالج طبیب د خپلو ټولو ماشومانو سره له تیغه تیر کړی»[۲].

په هغو هېوادونو کې چې د مغلو له خوا فتح شوی وو، افغانستان د اقتصادی او ټولنیزی خاصی وضعی درلودونکی و، چې ساری یې تر یوی نیمی پیړۍ پوری په آسیا کې و نه لیدل شو په دې مانا چې ټول اقتصادی او فرهنگی ښارونه او مرکزونه یې وران شوی او د وریښمو د لاری کاروانونه د باختر په لویو ښارونو (بلخ، هرات، مرو او نیشاپور) کې استراحت کړی نه ؤ، بلکې د هغو ښارونو د ویرجنو خرابو د پاسه په پوره چوپتیا او افسوس سره تیریدل. په دې کاروانونو کې د مشرق زمین مالونه لکه چینی وریښم،

---

۱- اثر فوق، ص-۱۲۱

۲- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۳۳۱

هندی او د آسیا جنوب شرق درمل، د افغانستان، سیلون او هند کریمه ډېرۍ، د ماورالنهر فرشونه... او داسی نور وړل کیدل.

«باید یادونه وشی چې مغولو د طبابت او تاریخ په ځنګ کې، د نجوم، ستوری پیژندنی او کیمیا سره هم مینه درلودل خو نورو علومو ته یې اعتنا نه کوله، د مغولی دولت په نزد د علم او فضل معیار یوازی په مغولی ژبه پوهیدل او د اویغوری خط ؤ»[۱].

په افغانستان کې د مغلو د تسلط د پای ته رسیدلو سره او په خراسان کې د نیمه مستقل او مستقلو دولتونو د رویکاریدلو سره په تیره بیا د هرات د کرت دولت (۱۳۴۵-۱۳۸۱م) د یوی نیمی پیړۍ په اوږدو کې په تدریج سره ورو ورو یوځل بیا د هرات ښار د یوه ستر فرهنګی او ادبی کانون په توګه را منځ ته شو او د مملکت د علومو او فنونو علمبردار وګرزید.

د علومو د ودی او پراختیا ترڅنګه مدرسی تاسیس، د کرنی او لاسی ضایعو الات ایجاد او طبابت هم نوی ساه واخستله او په همدې وخت کې د وسلی تولید شروع شو او هرات د پخوانی د نساجی صنعت را ژوندی کړ. «دا ده چې د هرات نوی ښار د بلخ او پخوانی مروی په عوض د چین او ماورالنهر د تجارتی قافلو مرکز وګرځید»[۲]. او بدیعه او فرهنګی زیات آثار ایجاد شول او د هرات ښار په دې علمی او فرهنګی خصوصیتونو سره وکړای شول چې حتیٰ د اکرت د کورنۍ د زوال نه وروسته د افغانستان د پایتخت په توګه قرار ونیسی چې دا فرهنګی او علمی نهضت هم د ګوډ تیمور (۱۳۸۰م) د هجوم او بریدونو په وجه یوځل بیا ودرید او د ده اخلافو (ځوارلسمه او پنځلسمه پیړۍ کې) بیا دا مشعل روښانه کړ او هغه ورانۍ چې د ګوډ تیمور په وخت کې منځ ته راغلی وی التیام یې وموند چې د دی دوری د فرهنګی ودی نمونی تر اوسه پوری د ډیری دلچسپی وړ دی.

د تیمور د وختونو د پوهانو له ډلی څخه یو هم کرمانی ابراهیم شاه طبیب ؤ چې متاسفانه د هغه آثار لاس ته رانه وړلای شو. په دې زمانه کې د طبیب او طبابت پوهانو د یو شمیر ناروغیو په هکله معلومات درلودل او هغه یې پیژندل. د دې ادعا د ثبوت د پاره کولای شو چې د افغانستان در مسیر تاریخ ۲۶۹ مخ ته مراجعه وکړو.

---

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۲۳۷

۲- اثر فوق، ص-۲۴۸

دالغ بیګ تر مړینی وروسته په افغانستان کې د تیموری شهزادګانو ترمنځه کورنیو جګړو زور واخیست او خلک له دې وضعی څخه په سپړ.مو راغلل په تیره بیا چې قحطی راغله چې د دی زیان له هغه طاعون ناروغۍ څخه زیات و چې د شهرخ میزرا په وخت کې په هرات کې خپور شوی و.

«د ابوسعید په وخت کې یو ځل بیا په هرات کې ډیره بده قحطی راغله او د دی په تعقیب په ۱۴۶۱م کې هلته د طاعون مرض پیدا شو چې زیات شمیر خلک یې ووژل»[1].

لکه چې یادونه وشوه د تیمور له وخته وروسته علم او فرهنګ بیا په را ژوندی کیدلو پیل وکړ او ورو ورو عالمان او پوهان ډګر ته راتلل چې د کابل د سالنامه ۱۳۱۵ کال په ۴۰۸ مخ کې په نهمه پیړۍ کې د افغانستان د ادبیاتو د تاریخچی په باب داسی معلومات وړاندی شوی دی.

قطب الدین محمد آدم طبیب، شیخ الدین حبیب الله طبیب او سمرقندی نظام الدین عبدالحی طبیب چې د شاهی دربار د خاصو طبیبانو څخه وو د طب په علم او د پیچلو ناروغیو په درملنه کې یې ربنته زیات رښتینولی درلودله. دی عالمانو د سلطان حسین میرزا په وخت کې په هرات کې اوسیدل.

پدې توګه د تیمور د مړکیدو څخه وروسته د ده اولادونه او لمسیان وکړای شول چې ترڅو د دغو مادی او معنوی ورانیو جبران وکړی. د شاهرخ میرزا او سلطان حسین بایقرا چې هرات د دوی پایتخت و ډیرو فضلا او عالمان راټول شول.

طب او طبابت هم د نورو علمی او فرهنګی مشخصاتو په څنګ کې ښه رونق پیدا کړی او اشراف او اعیان او بډایان خپلی درملنی ته ضرورت احساسول چې په دې توګه اطباو ته ډیر حرمت او احترام کول. د دې زمانی طبابت د یونانی، اسلامی طبابت څخه ترکیب شوی او د هند او چین طبابت هم ور باندې تاثیر درلود.

دولت شاه سمرقندی چې تذکره یې د امیر علی شیر په وخت کې تکمیله شویده د هغو عماراتو چې په هرات کې د امیر علی شیر له خوا جوړ شوی دی، په لاندې ډول شرح کوي:

---

۱- اثر فوق، ص-۲۷۱

«جامع مسجد، مدرسه، خانقاه، روغتون او عمومی حمامونه چې دا ټول د انجیل د نهر په څنګ کې اعمار شوی وو»[۱].

د دې څخه جوته کیږی چې د هرات تیموریانو د تسلط په زمانه کې په خاصه توګه د سلطان حسین بایقرا او د هغه پوه وزیر امیر علی شیر نوایي په وخت کې هرات د اطباو د تجمع محل و او لرونکی د روغتون و چې د مجرحینو او ناروغانو درملنه به یې کاوه.

د هغی زمانی طبیبان خواجه رشید الدین، نجیب الدین سمرقندی، ابن نفیس قریشی، قطب الدین شیرازی، علامه شمس الدین، افضل الدین کرمانی، ابو زین کمال او نور دی.

په نتیجه کې ویلای شو چې د ګورګانیانو په وخت کې فرهنګ (۱۴ او ۱۵ پیړۍ) که څه هم د فلسفی له پلوه جامدو چې د مغلو تر حملی مخکینی دوری ته نه رسیده خو د منځنی آسیا فرهنګی مرکز شمیرل کیده او له ایران، هندوستان او ماوراالنهر څخه استادان، عالمان، شاعران او د علم او ادب اهل د هرات ښارته را تلل او د هرات مکتب د دی هېوادونو د مثال نمونه وشمیرل شو.

په لوړو مدرسو کې چې پوه استادان یی درلودل یو ولس زره شاګردان له هر مسلک څخه تدریس کیدل چې طبابت هم د دغو مسلکو څخه و «خو په اروپایی هېوادونو کې له مدرسی او مکتب څخه کومه خبره نه وه او هلته په منظم شکل د علومو په مختلفو ځانګو کې تدریس جریان نه درلود، چې دا موضوع په هغه زمانه کې چې هنوز په اروپا کې خصوصی او اشرافی تحصیلات وو، زیات ارزښت درلود»[۲].

په دې توګه کله چې مغول دی خاوری ته راننوتل د طبابت له مخی یې لکه مخکنی فاتحان یعنی عربان څه نه درلودل چې د دی سیمی طبیبانو ته یې ور زده کړی، خو بیا هم په بشپړه توګه د طبابت له علم څخه بې خبره نه و، او پخپله د تداوی د طریقو د یوی برخی درلودونکی وو چې زیات و کم جالب وو. خو په دې ځانګه کې د معلوماتو او پرمختګ اندازه ډیره ناڅیزه وه.

۱- پوهندوی دوکتور محمد انور ترابي، طب در ګسترده تاریخ، ۱۳۸۵ شاهمامه هالند، ص-۱۶۶
۲- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۲۷۷

لکه چې د مخه یې یادونه وشوه د چنګیزیانو د قساوتونو څخه د اهل طب او طبابت په مقابل کې زیات مثالونه ښایی ولیکل شی لکه کله چې چنګیز خان د هرات په لور وخوزید او د هغه ځای په عامو وژلو کې یې نجیب الدین سمرقندی چې د یو شمیر کتابونو په تیره بیا د درمل پیژندنی په برخه کې لیکوال و هم وواژه.

د دې عالم لیکنی په سراسر اسلامی نړۍ کې زیات شهرت درلود. او مخصوصاً د «الاسباب و العلامات» په نوم د ده کتاب تر ټولو زیات نوم درلود.

په دې قتل عامونو کې یوازی د فخرالدین رازی زامنو نجات موندلی و. د مغولو د لومړۍ حملی څخه لږ وروسته یې د ستور ورکړ ترڅو چې د عامو وژنو په جریان کې نه یوازی د طبیبانو، آهنګرانو او صنعتګرانو سره څوک څه کارونه لری بلکې د هغوی سره مرسته هم کیده او بیا وروسته د مالیاتو ورکولو څخه هم معاف شول، او دومره موده لاتیره نه وه چې د مغولو په دولت کې د منځنی آسیا عالمانو ډیر مقامونه تر لاسه کړل، طب خپل خاص رونق وموند چې دا دی دلته د دوی په هکله یو څه مکث کیږي:

له فخرالدین رازی مشهور عالم او طبیب څخه یادونه شوی او باید وویل شی چې ده د ویترنرۍ سره خاصه مینه لرله او پخپل جامع العلوم نومی کتاب کې یې یو فصل ښکاری حیواناتو او د حیواناتو د ناروغیو د یوی برخی د درملنی په اړوند مختص کړی دی.

هغه څه چې د مغولو د استیلا په وخت کې تر بحث لاندې نیول شوی دی هغه د جنین د جنسیت او جنین پیژندنه ده. په دې مورد کې ابن سینا عقیده درلودله: چې د هغی سر منشأ نه یوازی په نطفه کې نغښتلی شوی بلکې د مورو پلار د وضعی پوری هم تړاو لری.

ځنی کسان یوازی د نارینه اولاد صاحب کیږی او په مقابل کې نور دلونږو.

«د هغه سړی چې اولاد یې یوازی هلکان وی هغه د ډیرو راوتلو عضلو درلودونکی نه دی خو دومره ډیر کمزوری هم نه وی. د دې ډول کسانو رګونه برجسته او مزاج یې تود وی هلک زیږونکی ښځه هم، داسی ده»[۱].

۱- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ص-۴۹۰

ابن سینا د جنین د خاورینی منشأ، چې د حضرت آدم(ع) د پیدایښت د کیفیت شاخص دی د نادیده نیولو په ترڅ کې د جنین او د هغه د پیدایښت په متعلق نظر لري: کله چې د نطفی پرمخ د رحم خوله چې نارینه په هغی کې منی غورځوی وتړل شی نو لومړنۍ مرحله را رسیږی. په دې ترتیب چې په لومړۍ سرکې د هغی په منځ کې حفره منځته راځی، چې د زړه ځای دی.

وروسته په ښۍ خوا او په پورته خوا کې دوه آماسه (پړسوب) را ښوکندیږی. که څه هم سر او آخر کې سره بیل دی خو له یوه وخت وروسته – یو ځای کیږی، اما بالاخره یو له بله بیلیږی، روښانه او ښرګنده کیږی، لومړنۍ لخته ده چې قلب (زړه) جوړوی او دوهم د ځیګر بنسټ دی. د دې آماسونو (پړسوبونو) پیدایښت د جنین د ودی دویم مرحله ده. د جنین دریمه مرحله د اصلی اندامونو د تکوین او د زړه په فعالیت د راتلو مرحله ده او اندامونه په تدریج سره بشپړیږی.

منصور وایي: چې په شپږ ورځنی سقط شوی جنین کې زړه، ځیګر او ماغزه ښکاره دی. خو ابن سینا او د طبیبانو نور شمیر د قرآن عظیم الشان د مندرجاتو په پام کې نیولو سره د دیرشو ورځو په عدد عقیده لری. منصور او امام فخرالدین رازی عقیده درلودله چې زړه لومړنی اندام دی چې د تشخیص وړ دی. خو ناف (نوم) لومړنی اندام دی چې وده کوی. او رازی عقیده درلودله، ځیګر لومړی عضوه ده چې را ښرګندیږی.

حقیقت دا دی چې ابن سینا په دی کې چې د بدن کوم یو غړی لومړی پیدا کیږی شک او تردید درلود. او په دې هکله یې مطالب ګنګ دی. دې وایي لومړنۍ اندام چې شکل نیسی او د تشخیص وړګرزی ناف (نوم) دی.

«خو د زړه، سږو او مغزو پړسوب د نوم د بند د تشکل ترنیولو د مخه ظاهریږی. په داسی حال کې چې هغوی د نوم د بشپړیدو وروسته هغه تکمیلیږی. واقعیت دا دی لومړنی غړی چې په جنین کې منځ ته رازی قلب دی»[۱].

د اناتومی له مخی باید وویل شی د منصور د تشریح کتاب او د هغه نور آثار چې کاملاً مشهور دی، د اناتومی په برخه کې یوهان معمولاً په کور کورانه ډول د یونانیانو له تشریح څخه استفاده کول. د دی کار اساس د سقراط په واسطه ایښودل شوی دی.

---

۱- اثر فوق، ص-۴۹۱

نوموړی د چرگی د بچی د جنین د وضعی په څیړنی کی، د انسان د جنین په باره کې ولیکل چې تر ډیری مودی پوری د ټولو د منلو وړ و. چې په پای کې غیاث الدین سبزواری (شین ډنډي) د بطلان لومړۍ کرښه په دې اشتباهی عقیده وکښله او دی ویل: «هغه دلایل چې د چورگوړی او د انسان د جنینو تر منځه ورته والی په باب لیکلی دی فوق العاده کمزوری او نا سم دی ځکه چې د انسان او د چرگی تر منځه هیڅ ډول شباهت نشته دي»[۱].

د هرات د تیموریانو د وروستنی دوری او د صفویانو د دولت، له نامتو طبیبانو څخه محمد حسین نور بخش بهاءالدوله و چې د سیمی او هندی استادانو څخه یې په ری او هرات کې د طبابت د زده کړو وروسته د هندی طب سره زیاته علاقه پیدا کړه. نوموړی یو وخت هم د سلطان حسین میرزا د دربار له ملازمانو څخه و او د دی پاچا تر مړینی وروسته ری ته راستون شو، او د هغه ښار د طبیبانو په سرکی ودرید. نوموړی خپل یوازنی کتاب چې خلاصة التجارب نومیږی په ری کې ولیکه او په خپل ټول عمر کې یې د اسلامی طب ټول کتابونه مطالعه کړل چې خپل تجارب یې په دې کتاب کې ذکر کړی دی. ده په دغه خپل کتاب کې دولس کرته د سقراط نوم دیرش واره د جالینوس نوم او اوه ویشت کرته د ابن سینا نوم اولس ځلی د رازی نوم اخستلی دی. پر دې برسیره یې د ثابت بن قره، سید اسمعیل جرجانی، ابن بیطار او د طبابت د علم د نورو خبرگانو مطالب بیان کړی دی. نوموړی د خوتی اسهال د ناروغی په وجه مړ شو چې حاجی خلیفه د ده مړینه په کال ۱۵۰۷م کې درج کړی دی.

ده پخپل کتاب کې بیلا بیل مرضونه تشریح کړی دی لکه د توری ټوخلی (پخولی – سیاه سرفه) د خپریدلو په باب د ده توضیح بهاءالدوله په دې اړوند لیکی:

د پخولی او نورو ناروغیو ډولونه د هوا د خرابۍ په علت او کله هم د سږو د ناراحتۍ له امله چې د ککړی هوا استنشاق په اثر پیدا کیږی، دوه کرته دا ناروغی د هوا د ککړتیا له امله پیدا شوه او د دی سبب شوه چې ټول خلک پری اخته شول، پرته له دی چې د ذکام نښی پکې ولیدل شی.

ټوخی به دومره زور راته چې د کانگی کولو پوری نه ودریده، ناروغان ورځ په ورځ کمزوری کیدل، د زړو او کوچنیانو زیات شمیر به بې حاله شول او حتی په لومړی خپریدلو کې ځنی یې مړه کړه. بالاخره یو

۱- اثر فوق، ص-۴۹۴

هندی طبیب توصیه وکړه چې ټول خلک دی یو مثقال او له هغه څه زیات اومه زنجبیل په اوبو کې حل کړی او بیا دی وخوری.

دویمه عمومی نیونه یې په پسرلی کې را څرګنده شوه چې د لومړی وار څخه د تلقاتو شمیر بیخی زیات ؤ او خلکو به د خپلی تداوۍ د پاره وینی رانیول، جولاب به یې خوړل او زنجبیل به یې مصرف کاوه او داسی نور.

«زه پخپله او ټوله کورنۍ می په دی ناروغی اخته شوو، خو په پورتنی طریقه می وکړای شول چې د څو میاشتو په اوږدو کې ځان تداوی کړم، خو تر هغې پوری چې خپله آب و هوا می نه وه بدله کړې په بشپړه توګه می روغتیا حاصله نه کړه»[1].

د مغلو او صفویانو دوره د درمل جوړولو طلایی زمانی ګڼل کیږی. د تاریخی اسنادو له مخی په فارسی باندې د درمل پیژندنی لومړنی کتاب ابو منصور موفق هروی ولیکه او هغه یې په ۹۷۵م کې پای ته ورساوه. دا کتاب چې الابنیه عن حقایق الادویه نومیږی او ابو منصور هغه سلطان منصور بن نوح سامانی پاچا ته اهدا کړی دی. په دې کتاب کې ۵۸۵ ډوله درمل توضیح شویدی چې د هندی، ایرانی، سریانی او یونانی دواګانو مجموعه ده. د هغه خطی نسخه په ویانا کې ده او اسدی شاعر په ۱۵۰۵م د هغه له مخی یو نقل تهیه کړی دی.

د درملو پیژندلو او جوړولو په برخه کې درمل جوړونکی هغه کتاب ته مخه وکړه او د ډول ډول ناروغیو د تداوۍ په خاطر د خاصو درملو د میندلو د پاره هڅی ورځنۍ موضوع وه چې په دی ترڅ کې چوب چینی (ریشه چینی) یا ژن شین د یو فوق العاده موثر تریاق په توګه د طبیبانو له خوا ومنل شو او دومره موده لاتیره نه وه چې ډول ډول دواګانو په ځانګړو خواصو سره زیاتښت پیدا کړ.

د ژان شین (د حیات ریشه) د ریشی څخه په لومړی کرت د عماد الدین نومی په کتاب کې یادونه شوی ده او ده پخپله سریزه کې لیکلی دي: دا ماده وروسته ایران ته راوړل شوی ده. نوموړی عقیده درلودله چې دا درمل د ټولو هغو ناروغیو د پاره مداوا ده چې د معدی، د لوزالمعدی او یرقان د ضایعاتو څخه پیدا شوی وی. حتی ده تصور کاوه چې د دی په واسطه سرطان هم تداوی کیدلای شی. د جلدی، د سرلغړ کیدل (طاسی سر)، جرب، استسقا، قلنج، او د رعشی په ناروغیو کې له هغی څخه استفاده کیدلای شی.

---

۱- داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ص-۵۱۱

همدارنګه په دغه زمانه کې د خر مهرې یا زهر مهرې (تیږی ته ورته ماده ده چې ځنې وخت دوا بنه خوړونکو حیواناتو چې آهو (غرڅه) ته ورته ده په لاس راځي) څخه یادونه شوی ده.

د دې مادی شهرت د آسیا او اروپا په سراسرو سیمو کې خپور دی او زیاتره خلک د نړۍ په زیاتو هېوادونو کې د هغې په معجزه آسا اغیزی باندې عقیده لری او ابن سینا د قانون په کتاب کې څو کرته د هغه خاصیتونو ته اشاره کړی ده.

د دې دورې د طبابت د نورو بیلګو څخه د هندی طب نه استفاده ده، وایي چې په لومړی سرکې د افغانستان او ایران (منځنی آسیا) طبابت د یونان پر طب ولاړو او بیا د عباسیانو په زمانه کې د یونان، پخوانی ایران او هند طبابت سره ټول ګډ شول او یو نوی جامع سیستم یې منځ ته راوړ. هندیانو ځنی کتابونه ترجمه کړل او هم پخپله په دې ژبه طبی کتابونه ولیکل خو وروسته په هندی کتابونو استناد کم شو.

د صفویانو په زمانه کې هندی طب او هندی طبیبان د پوهانو او د دی سیمی د طبیبانو د پاملرنی وړ وګرزیدل. بهاءالدین له یو شمیر هغو هندی طبیبانو یادونه کړی چې په ری او هرات کې اوسیدل او همداشان یی ویلی دي: چې د هندوانو زیات شمیر د معالجی د پاره ایران ته راتلل. له دی جملی څخه د هغو مرضونو او زخمونو چې په پخوانیو کتابونو کې یې یادونه شوی ده د نار فارسی په نوم یو زخم دی چې د معمولی سفلیس سره زیات ورته والی لری.

ابن سینا د خپل قانون په څلورم کتاب کې هغه شرح کړی او راتلونکو لیکوالانو هم د ده له وینا وو څخه یادونه کړې ده. یو زخم شته چې ملتهب دی او د «دمل» سره مشابه دی بهاءالدین د دی ناروغی او د هغه د درملنی په متعلق مفصل معلومات وړاندی کړی دی. څو موده وروسته یو بل کتاب تالیف شو چې د «شانکر» درملنه پکې شرح شوې ده. په دې کتاب کې د لومړی ځل د پاره دا ناروغی فرنګیه یا آبله فرنګی (فرنګی تناکه) بلل شوی ده.

دا کتاب په ۱۵۱۱م کې په هرات کې لیکل شوی دی او نوم یې جوامع الفواید دی. د دې کتاب لیکوال یوسف بن محمد بن یوسف دی چې د سلطان بابر په زمانه کې وزیرید. د دې پلار هم د نامتو طبیبانو څخه و چې د بحرالجواهر یا جواهرالغات د کتاب صاحب دی، او هغه یې سلطان جلال الدین ملک دینار ته هدیه کړی دی. د دې کتاب څو نسخی د اروپا په

موزيمونو او کتابخانو او د کابل په ملی آرشيف (مولف، مومنی) کې ساتل کيږی. د دې کتاب يوه برخه په عربی ده او د لغاتو او ځنی اصطلاحاتو يو فرهنګ دی چې په هغه کې طبی او صنعتی لغتونه او د ګياه پيژندنی اصطلاح راوړل شوی دی.

يوسف د پلار پر خلاف ډير کتابونه تاليف کړی دی چې له نيکه مرغه زيات شمير يې مونږ ته را پاتی دی کتابونه يې زياتره په نظم دی. ډير مشهور غير طبی کتاب بديع الانشأ دی چې خپل زوی لپاره يی ليکلی دی، او طبی ډير مشهور کتاب يې فوايد الاخيار دی چې په ۱۵۰۷م کې ليکلی دی. نور کتابونه يې رياض الادويه، علاج الامراض او يوسفی طب دی. (وروستی کتاب هم په ملی ارشيف کې شته دی – مولف، مومنی) يوسف د جلدی امراضو په مبحث کې سفليس يې په مفصل ډول تر ځيړنی لاندې نيولی دی. او درملنه يې سيماب (جيوه) ډير مجرب ښودل شوی دی چې په لاندنيو بيتو کې وايي:

در دفع فرنګ چی درويش و چه شاه ـــــ بـــــــــايد په حديث بنده نيکخواه

يا از حب سيماب خورد يـــا سفوف ـــــ يا دود کند جيوه سخت شد کوتـــاه[1]

هيربريت چې په ايران کې د شرقی هند د شرکت د کارمندانو څخه ؤ طبيبانو ته ليکی: چې هغوی د پوهانو له آثاره لکه بقراط، جالينوس، ابن رشد، فارابی، اين سينا، ابو اسحق، ابو علی محمد عبدالله بن الاديب، ابوبکر رازی، غزالی او مشعری بلخی او نورو څخه استفاده کوی.

په دې دوره کې ښوونه او روزنه موجوده وه او ادبيات، تاريخ، نجوم او طب د ممتازو طبقاتو له خوا زياتره هرکلی کيده. خو ادبيات لکه د مغلو د دوری د مخه په شان لوړ کيفيت نه درلود. ځکه چې د مغلو د دوری فسادونو او وحشت د افغانستان د خلکو په عقلونو باندې ناوړه اغيزی غورځولی وی چې د هغه زيږنده نوميدی او ستومانتيا، د ژوند او د دنيا تحقير او آخرت ته پاملرنه وه. په دې شرايطو کې تصوف ته ميلان زياتيږی چې وروسته تصوف او عرفان د قلندری، مفتخوری، له ژوندانه بيزاری او په سپکه ورته کتل په ډول سرمشق شوی، شعر او ادب د نصيحتونو، پند او توصيی، د ژوند څخه د بدبينی په چوکات کې غورځيدلی و. څرګنده ده چې دی روش د

۱- يوسف، کتاب طب يوسفي، چاپ سنګی در هند، مارچ ۱۹۱۳م، ص-۵۸

طبابت په وده ناوړه اغيزه کړی خلک و همونو او خرافاتو ته ورکښيل شوی او د علم او پوهی دروازی تړل شوی دی.

زمونږ په وطن کې د ناروغانو د معالجی غير علمی رواجو اغلباً په همدې وخت کې را منځ ته شوی او تر اوسه دوام لری. «خرافات او اوهام، جادو باندې عقيده، نذرو نياز د مغلو د هماغی دوری ميراث و»[1].

افغانستان د شپاړسمی ميلادی پېړۍ راهيسی د باندنيو هېوادونو تاخت و تاز لاندې راغی چې د دی پېړۍ له لومړنيو څخه شروع شو او تراتلسمی پېړۍ پورې دوام وموند.

شيبانی دولت په ماوراالنهر کې په ۱۵۰۰م، صفوی دولت په ۱۵۰۲م په ايران کې او بابری دولت په ۱۵۲۵ په هند کې تشکيل شو.

د پرديو هېوادونو د حملاتو او د هېواد، تجزيه کيدو او انحطاط صورت وموند، مدرسی له مينځه لاړی او کوم مشوق هم پاتی نه شو او که چيرته کوم عالم په دې خاوره کې پيدا کيده هغه هم هندوستان ته تښتيده، ځکه چې هند په دې زمانه کې د علم او پوهی خريدار ؤ.

زمونږ په هېواد کې خارجی لاس وهنو ډول ډول شکلونه درلودل او په سياسی سبوتاژونو کې زياتره د طبيبانو څخه پراخه استفاده کيدله چې کيدای شی د انګليسانو، روسانو او هنديانو نومونه واخستل شی. دلته يو شمير مثالونه راوړل کيږی چې د طبيبانو په واسطه زمونږ په هېواد کې د سياسی لاس وهنو او تروريستی فعاليتونو بيلګې دی.

د يوه تن انګليس له قوله تيمور شاه په ۱۷۹۳م کې ممکن د زهرو په واسطه مسموم شوی وی.[2] په همدې ډول د ۱۸۴۶ کال په ژمی کې وزير محمد اکبر خان د ملاريا تبی ونيو او د يوه تن هندی طبيب د زهرو په ګوليو مسموم شو او څو ساعته وروسته د انګليسی د دولت په ګټه يې له جهانه سترګی پټی کړې[3].

امير شير علی خان چې په مزار شريف کې کله چې د روسيې د دولت سره د مذاکراتو انتظار ايسته او د انګليس پر ضد د پريکونی جګړی د

---

۱- مير غلام محمد غبار، افغانستان در مسير تاريخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۲۷۷

۲- سرفريز ستنلر، وزير مختار برتيانيه در کابل ۱۹۴۱م، سال طبع ۱۹۵۰ لندن

۳- مير غلام محمد غبار، افغانستان در مسير تاريخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۳۵۶

پاره يې تياری نيوه په ناڅاپي ډول مړ شو. او ټولو ويل چې مسموم شوی دی، البته دا پلا د ده معالج طبيب روسی ؤ[۱].

د هزارجاتو په پاڅون کې يوه هندۍ زړه ښځه وه چې ځان يې په ګياه پيژندونکی معرفی کړی او په هزارجاتو کې ګرزيدله، څرګنده ده چې د هزارجاتو دغه پاڅون ته دی لارښونه کوله. مير مسجدی خان د ۱۸۴۱م د نوامبر په ۲۶ مسموم او مړ شو چې د ده په دی ناڅاپي مړينه کې هم د خارجيانو لاس ؤ.

يو تن هندی د احمد جان خان حکيم په نوم سپه سالار غلام حيدر خان څرخی ته د طبيب په عنوان هيڅکله له ده څخه بيل نه شو، دی د هغه فعاليت په اساس چې په نورستان کې کړی و لومړۍ کلنل او بيا په کابل کې د سان او ځيری د دفتر مشر شو[۲].

د امير حبيب الله خان د سلطنت په دوره کې د دی ډول مشکوکو اشخاصو شمير مخ په زيائيدو شو. په معارف او صحيه کې يې نفوذ وکړ او حتی د امير حبيب الله خان روغتيا او ځان د هندی ډاکتر الله جويا خان په لاس کې وو چې د افغانستان د غند مشرۍ رتبه يې درلود.

الله جويا به غير صحی او مقوی درمل په امير باندې خوړل ترڅو چې له طبيعی حالته راووت او نور يې د دولت چارو ته رسيدګی و نه کړای شو.

همداشان د امير حبيب الله خان په دوره کې د لاهور د کالجونو د متعلمينو يوه پنځلس کسيزه ډله د مهاجرينو او فراريانو په نوم له هنده کابل ته راغلل. او وروسته يو زيات شمير هندی افغانان او هنديان کابل ته راغلل چې له دی ډلی څخه داکتر فقير محمد خان بنويی، داکتر نور محمد خان، داکتر قريشی، داکتر سيد عبدالغنی شاه خان، داکتر محمد علی خان، داکتر جواهری، داکتر عبيدالله خان، داکتر سيد رشيدالدين خان، داکتر عبدالرووف خان، داکتر احمد علی خان، داکتر عبدالمجيد خان، داکتر دلاور خان، داکتر هاشمی او د حکيم اسلام خان نومونه يادولای شو.

افغانستان ته د هندوانو دا ډول راتګ د هند او پاکستان تر آزادی پوری مخ په زياتيدو و. دی کې شک نشته چې ځينو يې په صادقانه توګه د نظامی او ملکی طبابت له پاره په پاک زړه کار کاوه خو ځينو يې د

---

۱- اثر فوق، ص-۳۷۷
۲- اثر فوق، ص-۳۵۹

افغانستان وګټو پر ضد او یا یې جاسوسی وظیفه اجرا کوله او ځینو یې د خپلو درواغو او پور پاګندو په خپرولو سره د دولت وتلی غړی بدنامول چې له دی جملې څخه مولوی نجف علی خان یادولای شو. چې په خپله رساله کې یې د ځینو په باب د مدحی او ذم شعرونه ویلی دی او د خپلو ناولو ارزوګانو په خاطر یې د شاه امان الله په دوره کې د کابل د ښار او د هغه د اطراف پاک لمنی خلک چې په هغه وخت کې حتی د فحاشی نوم چا نه پیژانده بدنام کړل.

از جراثیم تفرج اکثری گشته مریض

در نواح شهر کابل بد هوا بس ناگوار

ځینو یې نه یوازی د افغانستان د ګټو پر ضد بلکی د هندوستان د ملی مصالحو پر ضد هم عمل کاوه. مثلاً د خپلواکی تر جګړی وروسته مولوی ظفر حسین خان مهاجر د هند د انقلابی جمعیت غړی په کابل کې پکتیا ولایت ته ولیږل شو چې د داکتر فقیر محمد خان بیطار په شان د افغانستان سپه سالار (محمد نادر خان) سره خدمت وکړی حال دا چې د هغه حزبی اسناد د انګلیس دولت لاس ته ورغلل.

په همدې ډول خارجی طبیبانو د خپلو مسلکی دندو د اجراکولو د پاره چې د خپل مملکت د هیئتونو سره او یا یې په یوځی قطعاتو کې وظیفه اجرا کوله څرګنده ده چې د خپلو وظیفو تر څنګه یې په افغانستان کې د خپلو هېوادونو د مروجه طبابت د خپرولو په چارو کې بې اغیزی نه وو او په مناسب محل کې ډله ایز طبابت د هغوی له خوا زمونږ په هېواد کې شلمی پیړی په اوایلو کې میراث پاتی شو چې د دی طبیبانو یو شمیر معرفی کوو:

داکتر برایدن یوازنی سړی ؤ چې د انګلیس د عسکرو د پنځلسو زرو عسکرو له جملې څخه زخمی په خپل زخمی آس جلال آباد ته ورسید.

«دکتر د ف د انګلیس جراح د دی جنګ له د هشت څخه خپل رګ په شلولو سره انتحار وکړ»[1]. په کال ۱۸۷۸م هغه لوی هئیت چې د امیر شیر علی خان په وخت کې له روسیی څخه کابل ته راغی د داکتر یوراسکی

۱- میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۴۶۱

په نامه هم په هئیت کې شامل و او کله چې امیر د نزلی په ناروغی او د ملا په درد اخته شو نوموړی داکتر د امیر د طبیبانو سره یو ځای د هغه درملنه وکړه.

د گندمک تر معاهدی یوه میاشت وروسته (۲۶ می ۱۸۷۹م) کیوناری د انگلیس د سفیر په توگه کابل ته راغی چې د نورو اشخاصو په خواکی داکتر کیلی طبیب هم ورسره ملگری و.

د امیر عبدالرحمن خان په زمانه کې یو انگلیسی هئیت هرات ته لاړ چې یو انگلیسی طبیب هم ورسره ملگری و او کله چې دیورند د معاهدی په خاطر کابل ته راغی د شپږو تنو افسرانو په جمله کې یو تن طبیب دوکتور فن په نوم هم ورسره ملگری و.

لکه چې مخکې وویل شو خارجی طبیبانو چې زیاترو یې د خپل دولت سیاست پیاده کاوه، د دوی ځنی البته په صادقانه ډول د محتاجانو په تداوی مصروف وو او ځینو یې حتی په ډیرو ناوړو او زیاتو بدو اعمالو ته لاس پوری کاوه او زمونږ خلک یې په مخدره موادو معتاد کړی دی. مثلاً د امیر شیر علی خان په دوره کې د مزار شریف په ښار کې یو مجهول الهویه سړی پیدا شو چې د ښار بهر کې اوسیده او هره اونۍ یې تغاره پرسر کې په ښار کې گرزیده او په هغی کې به یې نذرتو لاوه دی سړی (تغاره شاه) ته به ځوک ورغلل کوکنار، چرس او تریاک به یی ورته وړاندی کول.[1]

امیر عبدالرحمن خان د شنبی په ورځ ۱۹۰۱م له دی نړۍ څخه سترگی پټی کړی دی. تاریخ شاهدی ورکوی چې نوموړی د امیر حبیب الله خان له خوا مسموم شوی دی.

ځینو خارجی طبیبانو د افغانستان د واقعاتو د روښانه کولو په برخه کې هم یو شمیر تالیفات کړی دی. لکه چې یو تن چې له ۱۸۳۹-۱۸۴۰م پوری په افغانستان باندې د اندوس د مشهور لښکر په برید کې ملگری و. انگلیس جیمس انکن سن د بنگال د لښکر د جراحی مدیر و چې د برتانیه په متهاجم لښکر کې یې د سرطبیب دنده په غاړه درلودله، نوموړی پوستر (بصیر) مورخ او زمان پیژندونکی و چې خپل کتاب کې (په افغانستان کې لشکر کشی) ولیکه چې په کال ۱۸۴۲م کله چې جگړه پای ته ورسیدله دغه کتاب په لندن کې چاپ شو. دا کتاب له هر پلوه د زښتی زیاتی توجه او استفاری وړ دی ځکه چې د جنگ رینبی او د هیواد او خلکو اوضاع، د

۱- اثر فوق، ص-۶۰۶

شخصیتونو، مواضعو او داسی نورو په باب ډیر څرګند معلومات پکی وړاندی شوی دی. او په نولسمه پیړۍ کې د افغانستان په هکله په زړه پوری معلومات لري[۱].

دا جراح د هغه وخت د شاهی بالاحصار په هکله هم شرحی لری.

۱- پوهاند عبدالحی حبیبي، پنجاه مقاله، مطبعه دولتي، کابل ۱۳۶۲ ص-۱۰۸

## ځلورم څپرکی

## د افغانستان طبابت د شلمی پیړی له لومړیو څخه تر ۱۳۸۰ پوری

### د امیر حبیب الله خان په دوره کې

څرنګه چې لیدل کیږی د ابدالی احمد شاه د زمانی څخه تر امیر حبیب الله خان دوران د طب په برخه کې کوم پرمختګ په سترګو نه لیدل کیږی. حتی د امیر عبدالرحمن خان حکومت په زمانه کې پخپله د نقرص په ناروغی اخته و د طبیب او داکتر په نوم چې لږ تر لږه ناروغانو ته طبی مرستی ورسوی وجود نه درلود. د امیر عبدالرحمن خان مخصوص طبیب مورخ او ادیب میرزا ابراهم خان و. او امیر هیڅ یو بهرنی طبیب باندې اعتماد نه درلود چې د هغه درملنه وکړی.

خو د افغان او انګلیس د دویمی جګړی څخه وروسته په کال ۱۲۵۹ (۱۸۸۰م) کې د عصری طبابت او ملکی او نظامی روغتونو ته توجه پیدا شوه او په کال ۱۸۹۷م سردار حبیب الله خان او نصر الله خان په باغ بالا کې یو روغتون جوړ کړ چې مصارف یې خپله دوی په غاړه اخیستی وه. خو مخکې له هغه څخه په کال ۱۸۹۴ کې د لومړی ځل لپاره یو درملتون پرانستل شوی و.

امیر حبیب الله خان (۱۹۰۱-۱۹۱۹م) په افغانستان کې د نوی معارف او فرهنګ بنسټ کیښود. ده په ۱۹۰۲ کې چې د افغانستان خلک وچکالی او د کولرا ناروغی تهدیدول د سراج الملته والدین لقب ځان ته غوره کړی و او په یو عام مجلس کې وویل «چی د یوه دولت او ملت ترقی پرته د علم له

ترقۍ څخه ناشونی دی. او ما تصمیم نیولی دی چې په مملکت کې دی ښوونځی تاسیس شی»[۱].

د امیر حبیب الله خان د تمدن غوښتنی په اساس و چې د محبوسینو کوتوالی په کتاب کې یې په خپل قلم داسی ولیکل «سر له دی نیټی څخه (۱۳۳۰هـ ق د ذلعقدی ۲۹) د انسان ړندول منع دی او د دی پرځای دولس کاله بند، د غوږ و د غوځولو په عوض شپږ کاله حبس او د لاسونو د پرې کولو په عوض کې په داسی حال کې چې غیر شرعی وی لس کاله بند مقرر شو».

امیر حبیب الله خان د خپل سلطنت په پیل کې دوه تنه هندی داکتران (جراحان) د غلام نبی او غلام محمد په نومونو کابل ته را استخدام کړل چې دوی د شاهی کورنۍ د ناروغانو د درملنی چاری په غاړه درلودلی. څرګنده ده چې د «امیر حبیب الله خان تر سلطنت نه د مخه جراحی د سلمانیانو په واسطه په غیر فنی او عنعنوی ډول اجرا کیدله»[۲].

دې دواړو جراحانو کولای شو چې ساده عملیات لکه د مثانی تیږه، کترکت او داسی نور عملیات اجرا کاندی.

حسین قلی خان چې د هډوکو د ماتیدلو په صورت کې د شکسته بندی کار له پلاره په میراث وړی و د دی دواړو ډاکترانو تر نظر لاندې زیاتی تجربی ترلاسه کړی، هماغه وه چې د حسین قلی خان تر څارنی لاندې د جراحی یو لومړنی کورس پرانستل شو او په هغه وخت کې د دی کورس د شاګردانو شمیر څلویښت تنه وو.

په کال ۱۹۰۳م کې په کابل کې لومړنی لیسه د حبیبی په نوم پرانستل شوه چې دری درجی یعنی ابتدائیه، رشدیه او اعدادی یې درلودلی. ابتدائیه څلور کاله وه، رشدیه دری کاله وه چې د نورو مضمونونو په خوا کې حفظ الصحه (روغتیا ساتنه) هم تدریس کیدله او اعدادیه هم دری کاله وه چې حکمت، طبیعی او کیمیا پکې تدریس کیدل.

---

۱ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۷۰۰

۲ - پوهندوی داکتر علوم طب محمد نادر هادی، جراحی عمومی، ۱۳۶۴ ص-۱

د معارف په تشکیلاتو کې چې کوچنی و یو لابراتوار د بیت الحکمه په نوم او یو بیت العلاج (شفاخانه)، یو دفتر چې دوه تنه کاتبان یې درلودل او د هندی مشهورو طبیبانو څخه داکتر عبدالغنی خان او دوه ورونه یې وو[۱].

څه رنګه چې په دغه زمانه کې نری رنځ د ډیرو خطرناکو ناروغیو څخه شمیرل کیده نو دا ده چې د دې ناروغی سره سم او منطقی برخورد په افغانستان کې د نولسمی پیړۍ په وروستیو کې صورت وموند او دا هغه وخت ؤ چې د امیرانو ماڼی ته انګلیسی، روسی، ترکی او هندی دوکتورانو لاره پیدا کړی وه او هغوی د لومړی ځل د پاره د نری رنځ د تشخیص او درملنی د پاره له علمی برخورده کار اخستلی و.

«د امیر حبیب الله خان د دربار دوکتوران د نری رنځ د ناروغۍ معالجی د پاره د یوی مکفی، ارزښتناکی خوړو، بشپړ استراحت، اقلیمی تداوی یعنی په آزاده هوا کې ګرزیدل توصیه کړی وو»[۲].

په ۱۹۱۰م کې په کابل کې یتیم خانه (دارلاتیام) هم تاسیس شو چې هلته د صحی وضعی څارنه هم کیدله. په ۱۹۱۱م د کابل ملکی روغتون (د باغر خان په قلعه کې چې د میوند د روغتون په نوم یادیږی – مولف، مومنی) تاسیس او د ترکی داکترانو په واسطه فعال شو. «د دی روغتون مدیر داکتر منیر عزت (منیربیګ) نومیده چې یو ماهر جراح و»[۳]. په ۱۹۱۴ کې ځینی د ګیډی عملیاتونه د منیر بیګ له خوا اجرا کیدل. دی روغتون ۲۵ دایمی بستری او پنځه یې احتیاطی بستری لرلی. په دې روغتون کې د ننکیو د اوبو پرځای چې پخوا له هند څخه واردیدلی د خوسی څخه دغه د چیچک اوبه استحصالیدلی او د بقری (غوا) جدری تلقیح صورت نیوه.

«په لومړی کال کې د بستر شویو شمیر ۱۹۵ تنه، د وفیاتو شمیر ۱۸ تنه او د مراجعینو شمیر ۲۹۴۶۶ تنه و او په دویم کال یې شمیر ۵۱۸۲۹ تنو ته ور پورته شو»[٤].

پردې روغتون برسیره تر دی کوچنی یوه ځانګړی روغتون هم پرانستل شو چې په هغه کې هندی داکترانو کار کاوه (دا روغتون هماغه د

۱ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۷۰۲
۲ - پوهنوال دوکتور عبدالعلیم کریم او د مولفینو ډله، کتاب توبرکلوز، ۱۳۶۱ ص-۲۴
۳ - افغانستان له ۱۵۰۴ څخه تر نن ورځی پوری ۱۳۶۸، ص-۲۱۹
٤ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۷۰۵

پل محمود خان او یا د اردو دویم لمبر روغتون دی چې د شاهی ارګ پورې یې تړاو درلود – مولف، مومنی).

البته دې روغتونونو په کابل کې موقعیت درلود خو د هغوی ګاونډیو اوسیدونکو تری استفاده نه شوه کولای.

که څه هم د وبا ناروغی به هم خپریدله، لکه چې د کولرا په استیلا کې په ۱۹۱۵م کال یوازی د کابل په ښار کې په ۴۱ ورځو کې ۱۴۲۲ تنه په دې ناروغی اخته او له دی جملی څخه ۸۸۳ تنه له منځه لاړل په داسی حال کې چې دی وبا دری میاشتی دوام درلود.

همداشان د ۱۹۱۸ کال په انفلوانزا کې په افغانستان کې زیات شمیر خلک تلف شول. د ده خدایداد په کلی کې چې دری سوه تنه نفوس یې درلود ۲۵۰ تنه یی هلاک شول. په پغمان کې په ځلورو ورځو کې ۱۵۰۰ تنه تلف شول. البته په لغمان، کونړ، لوګر، پکتیا او د هېواد په نورو ولایتونو کې دا تلفات زیات وو، خو څه رنګه چې د کابل احصائیه نه اخستله کیدله نو یې د تلفاتو شمیر مجهول پاتی شوی دی.

له مصیبته په ډکو داسی ورځو کې د کابل طبیبانو چې د پخوانی طب څخه یې کار اخسته په صمیمانه ډول د خپلی وسی په اندازه د خلکو په خدمت کې زیار ایسته چې له دی جملی څخه د مرزا عبدالقدیر خان، مرزا عبدالطیف خان، مرزا تاج محمد خان، مرزا محمداسحق خان او څو نورو تنو نومونه یادولای شو[1].

د امیر حبیب الله خان په وخت کې د کابل ښاریانو د پاره د صحی اوبو د تهیه کولو په خاطر له پغمان څخه د اوبو رسولو د نل اساس کیښودل شو.

د امیر حبیب الله خان د داکترانو مشران لاندې کسان وو:

| | |
|---|---|
| غلام نبی خان | د دربار داکتر |
| اله جویا خان | د پوځ داکتر |
| غلام محمد خان | د حرم سرای داکتر |
| منیر بیګ | د روغتون امر او د کابل ښار داکتر و. |

۱ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۷۰۵

«د امیر په وخت کې ځنې طبي بوټي صادر شول چې په هغه وخت کې به روسیې ته صادریدل او د بید انجیر، کنځلې، زیرې، کولمو او تریاکو څخه عبارت وو او وارداتو یې زیاتره د صنعتي لوازمو اقلام و او له هندوستان څخه یې د نورو شیانو په خواکې درمل واردوله»[۱].

د محترم کاندید اکادمیسن پوهاند عبدالرحیم خوشدل سره چې په ۱۳۶۸/۸/۱۰ کال کې د افغانستان د معاصر طب او فارمسي په باره کې یوه مرکه کړې چې هغه وویل: «د امیر حبیب الله خان د سلطنت په وروستیو کې یو هندي طبیب چې اعلی جویا خان نومیده افغانستان ته استخدام شوی و چې په حقیقت کې د سلطنتي کورنۍ او د دربار خاص طبیب او ځیني معتبر اشخاص به یې هم معالجه کول. د دې طبیب په واسطه په ارګ کې یو درملتون پرانستل شو چې د عطارخانې په نوم یادیده چې تر وروستیو پورې په دې نامه یادیده. په هغه زمانه کې د دې دواخانې چارې میر علی شاه خان پرمخ بیولې او د طبیب په توګه یې هم وظیفه اجرا کوله.

تر ده وروسته یو شمیر نور هندي داکتران هم په اردو کې استخدام شول چې له نور محمد خان، داکتر قریشي او نورو څخه عبارت وو. دوی د بیطاریې د صحي یو کورس پرانیست او په ملکي ساحه کې یې د محمد حسین خان په نوم د کمپودرې او دواخانې په څانګه کې تربیه کړ، چې بیا وروسته د قلعه باغر خان (اوس د میوند روغتون په نوم) په ملکي روغتون کې د کمپودر په حیث د دې درملتون چارې پرمخ بیولې. او بیا وروسته د هغه وخت د عامې روغتیا د هدایت له مخې د محمد حسین له خوا د کمپودرۍ ځنې کورسونه پرانستل شو چې هغه د خلیفه محمد حسین لقب ځانته ونیو».

څرنګه چې د کمپودرانو سویه په ابتدائي سطح او ټیټه وه نو د عرفان د مجلې د ۱۳۱۱هـ کال د لیکنې له مخې د طب پوهنځی تاسیس شو چې د هغې په خواکې په همدې کال د درمل جوړلو عالي مکتب هم تاسیس شو.

دا پوهنځی او عالي ښوونځی د اولسو تنو ترکي پروفیسورانو او یو تن د کیمیا داخلي استاد د انور علی خان په نوم په دارالامان کې چې د دارالفنون په نوم یې شهرت درلود په تدریس بوخت وو، چې د ترکي استادانو له دغو اولسو تنو پروفیسورانو له ډلې څخه یوولس تنه د درمل جوړولو او کیمیا د څانګې استادان وو.

۱ - افغانستان له ۱۵۰۴ څخه تر نن ورځې پورې ۱۳۶۸، ص-۲۲۲

د ۱۳۱۶ کال د عرفان د مجلی د لیکنی له مخی د دغو فارغانو لومړۍ ډله د طب د پوهنځی د اتو تنو داکترانو او درمل جوړولو د عالی ښوونځی څخه د دوو تنو فارغانو څخه مشتمله وه چې ټولنی ته وړاندی شول.

د درمل جوړو عالی لیسی تر ۱۳۲۷ کال پوری د بکلوریا په سویه لس دوری فارغی کړی. د کابل پوهنتون د فرانسوی استادانو په پیشنهاد او په هېواد کې د فارمسی امورو د خاص اهمیت له مخی د درمل جوړولو عالی لیسه لغوه او د فارمسی پوهنځی د تاسیسیدلو پیشنهاد یې وکړ. دی پوهنځی د ۳۰ کلونو په موده کې نه یوازی افغانی هلکان او نجونی تربیه کړی بلکې د خارجی هېوادونو لکه ایران، ترکیی او فلسطین نجونی او هلکان یی روزلی دی.

## د غازي امیر امان الله خان په زمانه کې

امیر امان الله خان چې په افغانستان کې د پرمختګ او نهضت غوښتونکی و، غوښته یې چې طب ته لازیات رونق ورکړي. هماغه و چې د المان او ترکیې څخه یې باتجربه طبیبان راوبلل ترڅو د هندي تداوي میتود د اروپایي تداوي په سبک واړوي.

امیر امان الله خان د هغو مذاکراتو په ترڅ کې چې د ترکي طبیبانو لکه رفقي بیګ او دوکتور فواد بیګ سره ترسره کړل ارزوی یې درلودله چې په کابل کې یو طبي ښوونځی تاسیس کړي، خو د برتانیه د امپریالیزم د توطئې په اساس دا پاچا چې د بنیادي ریفورم غوښتونکی و له وطنه تبعید شو او د ضرورت له مخې په کال ۱۳۱۱هـ.ش د طب لومړني پوهنځي په افغانستان کې د علم او پوهې د لوړو زده کړو لومړنی کانون د اتو تنو محصلینو په درلودلو سره بیا تاسیس شو[۱].

د دې د پاره چې افغانستان ته د ترکي دوکتورانو له راتګ څخه یوه ښه صفحه تشکیله شوې وي «افغانستان کې ترکي دوکتوران» هغې مقالې ته مراجعه کوو چې د پروفیسور جنرال دوکتور کمال روزبای له خوا لیکلې شوې او د کاندید اکادمیسن پوهاند دوکتور فقیر محمد زمري له خوا ترجمه او د «کار» د مجلې د ۱۳۶۹ کال په ۶-۷ ګڼه (میزان او عقرب) په ګڼو چاپ شوې ده:

«د دې دوو ورونو او مسلمانو هېوادونو (ترکیه او افغانستان) ترمنځه دوستانه اړیکې په تیره بیا کلتوري، فرهنګي او نظامي مناسبات، له انګلیس څخه د افغانستان د استقلال تر استرداد او د ترکیې د جمهوري رژیم تر تاسیس وروسته شروع شول. که څه هم د امیر حبیب الله خان سراج په وخت کې د یوه تن عسکري دوکتور څخه چې مسلک یې جراحي وه او د منیر بیګ (چې مونږ د امیر حبیب الله خان په دوره کې د منیر عزت په نامه ثبت کړی و) یادونه کړې وه، خو د نوموړي په باره کې زیات معلومات نشته دي. د هغې اوازې له مخې چې د ده په برخه کې په کابل کې خپره شوه، نوموړي دوکتور د جراحي په عملیاتو کې د فوق العاده ستونزو سره مخامخ و او خپل عملیات یې په هغه وخت کې د یوه میز د پاسه چې د شهزادګانو پورې مربوط و ترسره کول. د ده د ترکي میرمنې د مړینې وروسته یې د یوې افغانۍ نجلۍ سره واده وکړ، چې بیا وروسته د ده د مړینې څخه یې دغه افغانۍ میرمنې خپل زامن ترکیې ته بوتلل چې یویې هلته خبریال شوی و.

---

۱ - دوکتور محمد نادر هادی، جراحی عمومی بخش تاریخ تکامل جراحی، ۱۳۶۴ کابل، ص-۸

تر منیر بیګ نه وروسته یو بل ځوان دوکتور چې په حقیقت کې یو انقلابی او روشنفکر ؤ او فهیم بیګ نومیده د سلطان عبدالحمید په زمانه کې یې قاهرې ته مهاجرت کړی او له هغه ځایه د محمود خان طرزی (د امیر امان الله خان خسر مولف، مومني) په مرسته افغانستان ته راغی او نوموړی په ډیره لنډه موده کې د طبابت په ډګر کې خپل ډیر لوړ شهرت ته ورسید او د شاهی کورنۍ د مخصوص داکتر په حیث مقرر شو. په پغمان کې یې یو مجلل کور ودان کړ او په انتیکوګران بیو وسایلو یې ښکلی کړ، چې بالاخره په یوه روحی بحران اخته شو. ده خپله ټوله شتمنی د طبابت په چارو کې ولګوله، دا ده چې ټوله دارایی له لاسه ورکړه او د طبابت چارې یې هم پریښودلی او په خپګان یې سر شو. د ترکیی د هغه وخت د سفارت په مرسته او مساعدت په هغه سفارت کې د ترجمان په توګه مقرر شو او د ستونزو څخه نجات وموند.

د ۱۹۲۱م کال د مارچ په لومړیو د تماسونو په پیل کیدلو د دواړو هېوادونو ترمنځه اړیکی ډیرې ښې شوې او بالاخره په ۱۹۲۳م کې د افغانستان د وخت حکومت د طبابت په ډګر او دفاعی چارو کې د پروژو د طرح کولو او بشپړولو په خاطر فنی پرسونل ته ضرورت احساس کړ، له همدې امله خارجی هېوادونو ته د یو شمیر شاګردانو لیږل او په مختلفو ځانګو کې د هغو د زده کړو بشپړیده تر بحث لاندې ونیول شو. دا وه چې د افغانی شاګردانو یوه ډله چې له هلکانو او نجونو څخه متشکله وه ترکیی ته ولیږل شول.

د روغتیا او سلامتیا له پلوه د خلکو په سرنوشت کې د دوکتورانو د بریاوو په درک کولو سره خپله عالمانه نظریه او اندیشه د وخت پاچا وړاندی کړه او بالاخره د طبی ښوونځی په تاسیسولو بریالی شو.

په دې ترتیب د ۱۹۲۸ د می د ۲۵ نیټی د دوستی او همکاری د تړون له مخې د دواړو هېوادونو دوستانه ژورو اړیکو لاقوت او ټینګښت وموند او ترکانو د افغانستان د اردو د پوځی زده کړو او روغتیایی چارو کې د یادونی وړ ونډه واخستله. افغانی محصلان او محصلانی په ترکیه او نورو اروپایی هېوادونو کې په کال ۱۹۲۷ کې په زده کړو بوخت شول. په دې وخت کې «جمال پاشاه، بدری بیګ، ضیأ بیګ، جنرال فخرالدین پاشاه، جواد بیګ او جنرال کاظم پاشاه دا ګرده د ترکیی کارپوه شخصیتونه وو چې افغانستان ته یې خدمت کاوه»[1].

[1] - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۷۸۸

خو د امان الله خان په وخت کې د داکترانو مشر، لوی طبی مشر – ترکی منیر بیګ او د ملکی چارو لوی داکتر – فهیم بیګ د امان الله خان داکتر رفقی بای وو.

په همدې ډول د ۱۹۲۲ د اپریل په ۲۸ نیټه د افغانستان او فرانسی ترمنځه د سیاسی اړیکو د دوستۍ قرارداد وتړل شو چې فرانسویانو هم د افغانستان په فرهنګی او روغتیایی څانګو د یادونی وړ اغیزمنه برخه واخستله او افغانی طلاب په فرانسه کې په زده کړو بوخت شول.

د افغانستان د اساسی قانون په ۱۰۴ ماده کې (۱۹۲۱م) د روغتیایی خدمتونو په ډګر کې د ۱۲ فقرو په د ننه څرګندونی ځای شوی وی چې د خلکو د پاره په پراخه توګه د روغتیایی خدمتونو موضوع احتوا کاوه.

په همدې شان د افغانستان د لومړی اساسی قانون د ۶۸ مادی له مخی په فرهنګی چارو کې تر لومړنی درجی پوری زده کړه په اجباری ډول تامینیده. په پلازمینه کې د حبیبیی د لیسی، د امانی او امان د لیسو برسیره د فرانسوی، جرمنی پروفیسورانو او داخلی استادانو په واسطه تاسیس شول.

په همدې ډول د طبیه او مستوراتو مکتب او تر ۳۲۲ ابتدایی مکتبونو څخه زیات د هیواد په ټولو ولایتونو کې تاسیس شول چې د حفظ الصحی (روغتیا ساتنه) او روغتیا مسایل هم په درسی پروګرامونو کې شامل وو.

په ۱۹۲۵م په کابل کې د مستوراتو روغتون تاسیس شو چې دوکتوران یې خارجیان وو. «په دغه زمانه کې په عمومی ډول په روغتیایی او پوځی چارو کې ترکانو او د معارف په چارو کې فرانسویانو کار کاوه»[1].

د ۱۳۰۲ کال د دلوی د ۱۵ نیټی د افغانستان د اساسیه تشکیلاتو د نظام نامی د پنځمی مادی مطابق د اتو په شمیر وزارتونه موجود وو.

«د دی نظام نامی په شپږمه ماده کې داسی یادونه شوی وه: د طبییه مستقله اداره لکه نورو وزارتونو په شان د همایونی د اشرف حضور په مستقیمه توګه مسئوله پیژندل کیږی»[2].

د دې نظام نامی په اومه ماده کې د حربیی وزارت د تشکیلاتو په باره کې راغلی دی چې د هغه تشکیل کې د طبیه مدیریت موجود دی. «په ۱۹۱۹ کې د افغانستان اجرائیه قوه په هسی ډول و چې د طبییه یو مستقل

---

۱ - دوکتور محمد انور ترابی، پیدایش و انکشاف طبابت (مقاله)، ص-۳
۲ - د افغانستان د علیه دولت اساسی نظام نامه د میزان ۱۴ کال ۱۳۰۲

مدیریت تشکیل شو چې د هېواد روغتیایی چارې یې په لاس کې وې او په مرکز او ولایتونو کې د روغتونونو او صحیی مستقلو مدیریتونو په تاسیسولو یې لاس پورې کړ چې د صحی مستقل مدیر سردار محمد کبیر خان ؤ»[۱].

په هغه زمانه کې په هېواد کې (۹) اداری واحدونه موجود وو چې پنځه ولایتونه او څلور اعلی حکومتونه یې تشکیلاوه او په دې نهو واړو اداری واحدونو کې د صحیی مدیریتونه شامل او فعالیت یې درلودل.

په لنډه توګه ویل کیدای شی چې اعلحضرت امان الله خان په دوره کې په کابل او ولایتونو کې ملکی او پوځی روغتونونه تاسیس شول.

کابل ته د اکسریز ماشین وارد شو، دارالمجانین او دارالاتیام په فعالیت پیل وکړ او د پغمان په بیګتوت کې سناتوریم تاسیس شو.

«د شلمی پیړۍ په لومړیو کې د اعلحضرت امان الله خان د امر له مخې د پغمان د ولسوالۍ د بیګتوت په کلی کې په نری رنځ اخته وو ناروغانو د تداوی د پاره لومړنی مخصوص سناتوریم د تهداب ډبره کیښودله شوه، خو متاسفانه د طبی کدرونو د نشتوالی له امله نوموړی سناتوریم په کار شروع و نه کړای شو او بیکاره پاتی شو»[۲].

د اعلحضرت امان الله خان په دوره کې د سوداګرۍ زیات شرکتونه تاسیس شول چې له دې جملې څخه یې یو په کابل کې د درملو تجارتی شرکت و.

شاه امان الله خان په هېواد کې د علمی – فرهنګی او اقتصادی پراخو پروګرامونو طرحی مطرح کړې او غوښتل یې چې په ډیر لنډ وخت کې افغانستان د ودې او پراختیا ډیرو لوړو مدارجو ته ورسیږی لکه چې په کال ۱۹۲۸م د پغمان د لویې جرګې تر ختمیدو څخه وروسته د کابل د ستور په چمن کې د ملکی او نظامی لوړ رتبه مامورینو او د افغانستان د یو شمیر مشهورو شخصیتونو په ګډون یو لوی مجلس تشکیل شو چې په دې مجلس کې د حکومت د راتلونکی ودې او پراختیا پروګرام تشریح شو او هغه څه چې د طبابت او د افغانستان خلکو ته د روغتیایی خدمتونه د عرضه کولو په

---

۱ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۷۹۵

۲ - پوهنوال دوکتور عبدالعلیم کریم او د مولفینو ډله، کتاب توبرکلوز، ۱۳۶۱ ص-۲۴

باره کې وو ویی ویل: «د ښځینه روغتونونو پراختیا او نړیوالو سره صلیب احادیو کې د افغانستان شمولیت»[۱].

په افغانستان کې د روغتونونو په تاسیسیدلو سره په افغانستان کې د عصری طبابت زړی راوټو کیدل او همدارنګه د درملو د تجارتی شرکت تاسیس کیدو هم تر یوی اندازی پوری د درمل جوړولو په چارو کې بدلون رامنځ ته کړ. لکه چې د طبی بوټو د راټولولو چاری تنظیم شوی او خارج ته صادر شول او د اړتیا وړ درمل له باندینیو هېوادونو څخه تورید شول.

د روغتونونو په درملتونونو کې تراوسه پوری متریک سیستم راغلی نه و. او زیاتره درملونه ګلنیکی درملونه وو چې پخپله په درملتونونو کې تهیه او اعمالیدل.

د دې د پاره چې د خلکو د روغتیا سره د امان الله خان د علاقمندی په متعلق مویوه کوچنی شمه وړاندی کړی وی د ده په هغه سفر کې چې کندهار ته یې کړی و «اعلحضرت امان الله خان غازی له وینا وو له کتاب څخه یوه وینا را نقلوو(دا کتاب سر محقق نصرالله سوبمن او محقق فرهاد ظریفی په واسطه په ۱۳۷۰ کې تهیه، تدوین او چاپ شوی دي).

«کسانیکه به تکلیف و زحمات سر دچار باشند به آنها معاونت و همدردی، مریضان را پرستاری و تیمارداری و درماندگان را دستگیری و دلداری نمائید که نتیجه و ثمره هر کدام ازین عملیات و رفتار اتحاد و اتفاق را بوجود می آورد» (خطبه ۷ عقرب ۱۳۰۴ روز جمعه در جامع فرقه نبوی).

د طبیه د تفتیش په باره کې وایي «بعد از انکه مفتشین لایحه تفتیش خود را حاضر آوردند یک روز خودم به اداره طبیه و شفاخانه رفتم، تفتیش نمودم. مدیر شفاخانه کاهل به نظر رسید و در راپورت که به مرکز داده عده مریضان را بیشتر نشان داده بود. اگر چه این افزونی موجب خللی نه می شد چونکه تداوی رایگان است مدیر موقوف گردید، داکتر در تداوی جدیت بکار نبرده بود یک هفته از معاش او قطع شد، از سبب نبودن تحویلدار مخصوص برای آن به تحویلدار اغذیه محول نموده است و این کار از کم توجهی مدیریت مستقله مرکز است به قطع سه روزه معاش مدیریت مستقله طبیه امر دادم، باقی از حیث عمومی کار و احوال طبیه قندهار که هنوز در

---

۱ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۷۹۹

بدو امر است و نو تشکیل شده بود، بعضی سهویات و غلطی های جزوی که ملاحظه شده اصلاح گردید. (ص۳۱ پورتنی کتاب)

د امان الله خان له نطقونو او بیاناتو څخه څرګندیږي چې د افغانستان په اردو کې پوځی ګرځنده روغتونونه هم موجود وو. په پورتنی خطبه کې امان الله خان داسی وایي:

هغه څوک چې زخمیان کیږی بی له ځنډه په پوځی ګرځنده روغتونونو کې تر معالجی لاندې نیول کیږی. د کندهار په دې سفر کې امان الله خان د ښاروالی ستاینه داسی کړی وه «بلدیه شرکتی است که از طرف اهالی تشکیل میشود. وظیفه او بوجود آوردن صفایی و زیبایی شهر و فراهم آوردن موجبات حفظ الصحه و نگرانی خرید و فروش و نرخ اشیایی معموله و غیره است» (ص۶۸ مذکرات روز جمعه ۱۴ عقرب ۱۳۰۴ در سلام خانه ارگ قندهار).

شاه امان الله خان د خپل سفر په پای کې نیتجه ګیری ترسره کړی او د نوموړی کال د عقرب په ۲۲ نیټه د کندهار د وګړو، دولتی کارمندانو او د هغه ولایت وسله وال پوځ په وړاندی د یوی لنډی مقدمی وروسته یې تر ټولو د مخه طبی چاری تر غور لاندې ونیولی او په دې برخه کې یې وویل چې دا دی د هغی متن وړاندی کیږي:

«مدیر شفاخانه شما از کار نبود چنانچه که می شاید در ایفای وظایف خود اظهار فعالیت ننموده است در سال گذشته مریض ها زیادتر به شفاخانه آمده معالجه شده اند و امسال بجای اینکه زیاده معالجه می شدند کمتر شده اند اگر چه در موقع استفسار آنها اینطور جواب دادند که پارسال به واسطه افتتاح شفاخانه بیشتر نفری دوامی بردند و امسال چون اکثریت صحت دارند کمتر دوا گرفته اند. لیکن بدین جواب نباید یقین کرد، زیرا پارسال بواسطه افتتاح شفاخانه و ابتدای کار ممکن است کمتر نفری از آن اطلاع و خبر داشته برای علاج آماده باشند و امسال چون ممکن از شفاخانه و طرز معالجه آن اطلاع یافته اند می بایست نه تنها از شهر بلکه از اطراف و جوانب هم یکی بعد دیگری برای علاج حاضر شده یوماً فیوماً در تعداد شان زیادت به نظر می آمد و علاوتاً امراض این مملکت اکثریه امراض موسمی است که بلاناغه در موقع گرمی و هر کس نوبت خود را حتمی است در تب، چشم دردی و دانه و ریزش و دیگر امراض جلدی بگذراند.

بهر صورت هیچ یک دلیل معقولی نیست به قلت نفری شفاخانه دیده نمی شود، بجز اینکه ترتیبات و کار وایی مدیر شفاخانه اینطور نبود که

موجب مزید اثر و رسوخ زهر دل عزیزی شفاخانه می شد و هر روز در تعداد معالجه شده گان می افزود. علاوه برآن دیگر اغلاط جز وی نیز در شفاخانه تان به نظرم رسید که بیان نمودن آن بسیار وقت را می گیرد.

لیکن برای تسلی شما اینقدر می گویم که هیچ غدری و خیانتی در شفاخانه ندیدم برای اصلاح این خرابی و رفع این غلطی فقط به موقوفی مدیر شفاخانه اکتفی کردم. از داکتر شفاخانه بملاحظه ام پیوست که کورکورانه بهمرای مدیر در راپورت هایکه به کابل می فرستاد امضا نموده است و تقریباً سه هزار نفر را بیشتر به کابل رپورت داده اند. لذا نظر به این غفلت او که اولین مرتبه از و سر زده به موجب قانون یک هفته تنخواه او را قطع میکنم. بعضی چیز های دیگر هم نسبت به او شنیده ام اگر حقیقت داشته باشد البته گناه سخت است، خیر درین قدر مجلس بزرگ همین قدر سزا اگر عقل داشته باشد برایش مرگ است باید آینده چنین نکند.

یک خرابی دیگریکه در طبیه قندهار به نظرم رسیده که هر کس نام خود را طبیب مانده جان های شیرین شما را که به نظرم بسیار عزیز و قدردار و گران است تلف میکند. بنابرین یک نفر طبیب دانسته که دارای شهادت نامه باشد از کابل می فرستم تا به اتفاق یک جمعیت که من آنها را انتخاب خواهم کرد امتحان این طبیب ها را که خطر جان شما ملت عزیزم میباشند بگیرند.

اگر اهلیت و لیاقت علمی داشتند همانا که شهادت نامه های خود را گرفته معالجه اهالی را خواهند کرد، والی حتمی است دوکان های خود را تخته نموده دیگر کار و غریبی بنمایند و ملت عزیزم را دچار زحمت نه نمایند و اگر آینده در قندهار بدون شهادتنامه کسی به معالجه احدی اقدام کرده بود البته که بر طبق نظام نامه جزای عمومی مجازات خواهند دید.

یک چیز بسیار دیگری هم دیدم که روی کوچه ها و بازار ها هر کس نشسته به روی و گلو و پشت گردن و دست و پای اهالی شاخک شانده خون آنها را بدون تشخیص مرض و دانستن فایده و ضرر آن می کشند. شما خبر ندارید که خون های شما بالای من چقدر گران و قیمت دار است، حتی میان خون خویش و از شما هیچ تفاوتی نمی بینم و علاوه برآن شاخک و پاکی و دیگر اسباب آنهایکه خون می کشند به اصول درست پاک و صاف و نظیف نمی شود و همان شاخک و پاکی ناپاکی را بدان خون یک مریض را کشیده اند با دیگر مریض نیز استعمال می نمایند. باین وسیله امراض ساریه و متعدی یکی بوجود دیگر نقل مینماید. گمان میکنم که شما مضرات ضرر

و اضرار این شاخک چسپانی را بخوبی نخواهید فهمید. بطور مثال به شما میگویم در عوام این متل مشهور است به پاکی که سر کل را بتراشند نباید سر دیگری را تراشند والا آن هم کل میشود. حتماً همان مرض ساری و متعدی بوجود او هم لاحق میشود. بواسطه یک ناجور یک عالم ناجور می شود، لهذا منع نمودم تا آینده بدون اجازه و هدایت داکتر احدی به کشیدن خون تان اقدام نکند. و از خدا خواسته ام که این خون های حرارت ناک شما در راه خدا و اعلی کلمته الله ریختانده شود، نه اینکه جت زن های چتل و مردار بذریعه شاخک و پاکی چتل و مردار در روی کوچه و بازار خون های تانرا بریزاند.

بسیار خواهش داشتم تا شفاخانه شما از آن موضع که بین عمارات بوده آب و هوا و فضای درست ندارد به یک موضع خوش آب و هوا درست تبدیل شود.

اینک دولت سرای را به شفاخانه دادم درینجا بیائید و در آینده اگر امکان داشت یک شفاخانه بسیار اعلی برای شما خواهم ساخت. از خدای خود خواسته ام که همیشه دروازه های شفاخانه تان بند و همه تان صحت و عافیت بوده خرسند باشند (ص۹۵ اثر فوق).

د پوځی چارو د طبابت په باره کې محمد سرور خان کمپودر چې د ده کارونو هیڅ اساس او ترتیب نه درلود او د ملکی روغتون چاری په کراتو نسبت دی ته ډیری ښی وی د نظامی خدمت څخه طرد شو او د روغتون تحویلدار ۴۰ ورځی حبس شو.

لکه چې پورته وویل شو له یوی خوانه د خلکو روغتیا ته د شاه امان الله خان علاقمندی را جلب شوی ده، له بلې خوانه د هغی دوری د طبابت په باره کې یوه کوچنۍ شمه زمونږ په واک کې راغله چې د هغی زمانی طبابت په څه ډول ؤ.

وروسته له هغی چې امیر امان الله خان افغانستان پریښود او کورنۍ اله ګوله پیل شوه نو څرګنده ده چې هره کورنۍ جګړه پر خلکو باندې ډیر زیات مصیبتونه تحمیلوی.

## د محمد نادر خان او اعلحضرت محمد ظاهر شاه په زمانه کې

کله چې په ۱۳۰۸هـ.ش کې محمد نادر خان د مملکت چارې په خپل لاس کې نیسې په هېواد کې اصلاحي ریفورمونه شروع کیږي او په لومړي سرکې د خرابیو بیا ودانول شاملیږي. فرهنګي، علمي او اقتصادي اصلاحاتو ته اقدام کیږي، چې په دې ترتیب د ۱۳۱۱ د جدي د دریمې نیټې د افغانستان د علیه دولت اساسي اصول منځ ته راغلل چې په دې اثر کې هم له ۱۳۱۱هـ.ش کال را وروسته د افغانستان د طبابت او فارمسي مسایل تر بحث او څېړنې لاندې نیولای شو.

د پورتنۍ کال په اجرأتو کې د طبیه مستقل مدیر جلالتماب محمد اکبر خان و داسې یادونه شوې وه: په نادر شاهي عصر کې د طبیه مستقل مدیریت پراختیا وموند له او هغه نوې تاسیسات چې د وطن د پاره ګټور وو پرانستل شول او ځنې نیمګړتیاوې اصلاح او بیا تکمیلي شوې چې له دې جملې څخه د معاون داکترې د طبي مکتب تاسیسیدل دي چې د دوکتورۍ فن یکې زده کیده او د زده کړې موده یې دوه کاله وه، همداشان د کمپوندرې د ښوونځي او د پرستارۍ د مکتب تاسیسول، د مستوراتو روغتون د پاره د قابلو تعلیم او تربیه کول، د ناروغانو د معاینې او تداوې د پاره دیسپانسر، د درملو تحلیل، تجزیه او ترکیب، د متخصصینو دوکتورانو استخدامول، د وړیا (مجاني) روغتون او د طبي مکتب د دویم ټولګي تاسیس. (د ۱۳۱۱هـ.ش د سالنامې په حواله)

د طبي فاکولتې د تاسیس په باب داسې یادونه شویده چې له نیکه مرغه د ۱۳۰۷ کال د کورنیو الوګولو په پای او د نادرې ځلانده دولت په راختو سره ګورو چې د افغانستان په مملکت کې د دارالفنون د یوې څانګې پرانستل د طبي پوهنځي په نوم د دلکشا په ماڼۍ کې رسماً ترسره شول.

د افغانستان د دارالفنون د طبي پوهنځي افتتاح کول د نادر شاهي حکومت د فوق العاده تاریخي کارونو څخه شمیرل کیږي چې نه یوازې د هېواد اوسنی نسل بلکې د مملکت راتلونکې تاریخ به په ډېره قدرداني سره د تاجدار موجد نوم د افغانستان د شلمې پیړۍ د ډېرو غورو پېښو په ردیف کې نقل او یاد کړي. (د پورتنۍ سالنامې په حواله)

څرنګه چې د لوړو زده کړو د لومړنۍ موسسې (طب پوهنځي) تاسیس چې په افغانستان کې د معاصر طبابت او فارمسي د تاریخ مبداء او د زیات اهمیت وړ ده چې په راتلونکې کې یې د افغانستان د خلکو د اوسنۍ او راتلونکې ژوند سره یې کلکه غوټه خوړلې ده، نو له دې امله دا ایجابوي چې

د طب د پوهنځی او د درمل جوړولو د شوونځی تاسیس، د ترکی او نورو هیوادونو د متخصصانو نقش په باره کې یوڅه معلومات وړاندی شی.

دا دی د دی موضوع په اړوند د ۱۳۱۶ کال د قوس – حوت د میاشتو د آئینه عرفان له مجلی او د کار د مجلو د ۱۳۶۹ کال د شپږمی او اومی گڼی یوڅه معلومات چې په مفصل ډول پکې منعکس شوی دی په لاندې ډول اقتباس کیږي:

د طبی او د درمل جوړولو پوهنځی د فارغ التحصیلانو د دیپلومونو د ویشلو په مجلس کې چې د وخت د پوهنې وزارت له خوا جوړ شوی و داسی جریان وړاندی شوی دي:

په دې مجلس کې صدراعظم شاه محمود خان، حربیه وزیر او نور وزیران د کابل په شاهی دربار کې د ترکیی لوی سفیر بای ممدوح شوکت، د پوهنې وزارت اراکین (د طب پوهنځی او د لوړو زده کړو نوری موسسی تر ۱۳۵۵ (۱۹۷۶م) پوری پوهنې وزارت سره تړاو درلود – مولف، مومنی) طلاب او مامورینو گډون کړی وو.

په دی مجلس کې د معارف وزیر سردار محمد نعیم خان، د پوهنځی رئیس پروفیسور بای حسن رشاد او صدراعظم خبری وکړی. همداشان فقیر محمد خان (پوځی محصل – مولف، مومنی) د فارغ شوو طلابو په نمایندگی خپله وینا واوروله.

سردار محمد نعیم خان د پوهنې وزیر په خپله بیانیه کې د طب د پوهنځی څخه چې ۱۳۱۱ کال د عقرب په میاشت کې تاسیس شوی او د شهید اعلحضرت له یادگارونو څخه دی او د هغی د معلومانو لکه رفقی بیگ او پروفیسور حسن رشاد بیگ له زیار ایستلو څخه یادونه وکړه.

بای حسن رشاد د پوهنځی رئیس د خپلی وینا په ترڅ کې وویل: چې د شهید محمد نادر خان له خوانه د طب د پوهنځی د تاسیس فرمان صادر شوی و، د هغه وخت د معارف وزیر علی محمد خان د شاهی طبیب دوکتور رفقی کامل بیگ سره مشوره کړی، لازم اساسات او قرار یې تثبیت کړی او شهید اعلحضرت ته یې وړاندی کړ، نو ځکه د ۱۳۱۱ د لړم په لومړی نیټه د دلکشا په ماڼۍ کې په خپله د همایونی ذات تر ریاست لاندې د دی پوهنځی د افتتاح مراسم پر ځای شول او د دی اداری او موسسی چاری دی بنده ته ورکړ شوی، بالاخره د مسافی دلیری والی له کبله د ۱۳۱۲ کال د قوس په پنځمه نیټه خپلی وظیفی ته ورسیدای شوم.

په هغه ورځ د اداری د هئیت او د طلابو د اباتی مخصوص ځای د دوو دایرو، د کیمیا د دوو لابراتوارونو د پاره له دوو کوټو، د بیولوژی د لابراتوار د پاره له دوو کوټو چې ټول یوه نیمه بنا وه عبارت وو. ده زیاته کړه چې د دې روغتیایی موسسی د ایجادیدلو په لار کې د دوقتور (دوکتور) زهدی بیګ جان فشانه هڅی پوره عامل بولم.

د طب د پوهنځی لابراتوارونه په علی آباد کې د عصری او فنی اصولو مطابق په ډیره چټکتیا او مخصوص فعالیت سره جوړ شول، سږ کال یی د تشریح او فزیولوژی لابراتوار هم بشپړ کړی او د راتلونکی کال د پاره هم د کیمیا او باقترلوژی (باکترلوژی) لابراتوار د تکړه مهندس (اویر مایستر هربیرمان) په واسطه تیار شوی او د پوهنځی دایری ته وړاندی شوی دی.

ده زیاته کړه هغه ژمنه چې رفقی بیګ کړی نن یې پری وفا کړی او عملی شوی او د کابل د طب د پوهنځی د تاسیس ورځ د ۱۳۱۱ کال د عقرب لومړی نیټه او د هغی د فارغ التحصیلانو د دپلومونو د ویشلو ورځ د ۱۳۱۶ د قوس ۲۹ ورځ به په زرینو لیکونو سره ثبت شی.

له دې مقدمی څخه څرګندیږی چې طب پوهنځی خپلو لوړو درجوته رسیدلی دی. دا ډله ځوان دوقتوران او دواسازان چې په هر هېواد کې چې دی درجی ته د رسیدلو په خاطر باید شپږ کاله زیار وباسی خو د هغو د خپل ذکاوت له مخی او د دوی د معلمینو د زحمت کشیو په نتیجه کې یې په پنځو کلونو کې د زده کړی مراحل طی کړی دی.

د دې دوری فارغ التحصیلان عبارت دی له: محمد اسمعیل خان، عبدالرحمن خان، فقیر محمد خان (نظامی فارغ)، عبدالغنی خان، نوروز علی خان، میر غلام حسین خان (نظامی فارغ)، محمد اسمعیل خان، عبدالرحیم خان، محمد رسول خان او محمد حیدر خان (ټول لس تنه) چې دا دواړه وروستنی دوکتوران دواسازان وو.

په پورتنی بیانیه کې د ځوانو فارغ التحصیلانو د زیار ایستنی څخه هم قدر دانی شویده. بای حسن رشاد د پوهنځی رئیس په همدی توګه زیاتوي:

بې مورده نه ده چې د لومړنیو تشکیلاتو او د محترم وزارت د طب د پوهنځی د معلمینو د بست له مخی چې په خپل غوره خدمت او غیرت سره امتیاز لری هم یادونه وکړم او هغوی په لاندې ډول دي:

۱- نور الله کیمیاګر (غیر عضوی، تحلیلی او صنعتی کیمیا).

۲- موسیومونو (فزیک).

۳- مولوی علی اخترخان بیولوژی (د فارماتو غتونه وی).

۴- صلاح الدین بیګ کیمیاګر (درمل جوړولو په فن کې، د دواسازی په کیمیا او د سپنچاری په فن کې او د تحلیلی او مقداری کیمیا په فن کې).

۵- دوقتور صایب بیګ کیمیاګر (عضوی او حیاتی کیمیا).

۶- او پراتور دوقتور نوری کامل بیګ (تشریح).

۷- دوکتور توفیق خلیل بیګ (آمبرولوژی، انساج ماتالوژی).

۸- پروفیسور دوقتور حسن رشاد بیګ (فسیولوژی).

۹- دوقتور زهدی بیګ (باقترلوژی، حفظ الصحه).

۱۰- دوقتور ادیب تومرقان بیک (فارمقودینامی، تدوای).

۱۱- دوقتور یعقوب چلپی بیګ (ناروغی او خارجه سریریات).

۱۲- دوقتور نوزاد اشرف بیګ (مرضونه او عصبی او عقلیه سریریات).

۱۳- دوقتور والتر (دولادت فن او نسایی ناروغی).

۱۴- دوقتور اشرف بیګ (مرضونه او عصبی او عقلیه سریریات).

۱۵- دوقتور فواد بیګ (مرضونه او عینیه سریریات).

۱۶- دوقتور حکمت بیګ (دغوږونو، ستونی او پوزی ناروغی).

۱۷- دوکتور عبدالرحمن بیګ (جلدیه او افر نجیه ناروغی).

۱۸- دوقتور شاکر بیګ (عدلی توفیتورلوژی طب).

پر دې ذواتو برسیره د یوه یوه سمستر د پاره لاندنیو استادانو هم وظیفه اجرا کړی ده:

۱- کیمیاګر انور علی خان.

۲- دوقتور ربیع حکمت بیګ.

۳- دوقتور نورزاد طوق کوز.

۴- دوقتورس زاهده خانم.

او مادام فریسه (فزیک)، پروفیسور کیمیاګر عمر شوکت بیګ دوه دوه تحصیلی سنی د کیمیا کرسی اشتغال کړی او خدمت یې کړی دی.

په راپوری وینا کې زیاته شویده:

د عمر شوکت بیګ په نسبت د طب پوهنځی مربوط د درمل جوړولو ښوونځی یې تشکیل کړی دی. خپله وجدانی وظیفه شمیرم چې په ځانګړی توګه له هغه څخه تشکر وکړم.

د پوهنځی رئیس وویل: چې د لابراتوار صنفونو د نظری او عملی لوستونو برسیره چې د پوهنځی په وروستیو دوو کلونو کې یې د ښار په هریوه روغتون کې باید د سریریات د صنف وظیفه اجرا کوله هم داسی وشول، خو د وظیفی د اسانتیا د پاره په علی آباد کې د ملکی روغتون پرمخ هم د عصبی او عقلی ناروغیو د پاره یوه نوی ودانۍ جوړه کړی شوه، چې د دی صحیی موسسی د ایجادولو په چارو کې باید دوقتور نورزاد او اشرف بیګ مهم عاملین معرفی شی.

په دې بیانیه کې د عامی روغتیا د وزیر غلام یحی خان څخه هم په قدردانۍ یادونه شوی وه.

تر ده وروسته د پوهنځی رئیس د دپلوم د اهمیت په باره کې چې شاګردانو ته د طبابت حق ورکوی یو څو ټکی خپل نظر څرګند کړ. ده د فارغ التحصیلانو څخه د خپلو توقعاتو په متعلق وویل:

تاسی په یقین سره وکتل چې د دی موسسی تاسیسیدل د زیاتو ستونزو د ګاللو په نتیجه کې ترسره شوی او زمونږ محبوب حکومت په دې هکله هر ډول فداکارۍ منلی دی.

د پوهنځی رئیس د دیپلوم پر اهمیت باندې خبری وکړی چې په لومړۍ څپرکی کې ذکر شوی دی.

همداشان ده د ریاست د مرستیال دوقتور نورالحق چې څلور کاله یې په پوره صبر او متانت مقاوت کړی او د ځینو درسونو د ترجمانی دنده یې هم په خپله غاړه اخستلی د ده له غوره خدمتونو څخه د زړه له کومی مننه کوم.

د وخت د صدراعظم په بیانیه کې د طبی پوهنځی بریاوی د ترکی پروفیسورانو زیار ګاللو نتیجه بلل شوی او ویل شوی دي: په رښتیا سره چې زمونږ ترکی وروڼه چې زمونږ اسلامی وروڼه دی زمونږ سره یې غمشریکی درلودلی د افغانانو په شان یې په عسکری او معارف کې خدمت کړی دی.

لکه چې وویل شو فقیر محمد خان هم د فارغ التحصیلانو په نمایندګی یوه مفصله بیانیه ورکړه چې د هغی یوه کمه برخه را اخلو «...د شهید اعلحضرت د ډیرو قیمتی او تاریخی اقداماتو په لړ کې یو هم د طبی فاکولتی تاسیس دی چې د ۱۳۱۱ کال د عقرب په لومړی نیټه په خپل موجودیت مشرفه شوه په ابتدا کې د هغی د ریاست په کفالت محترم جناب رفقی کامل بیګ د همایونی مبارک له حضوره مقرر شو او بیا وروسته یوازی دانشمند محترم جناب پروفیسور حسن رشاد بیګ د دی لوړی موسسی د ریاست عهده دار شو». نوموړی د هغو پروفیسورانو او استادانو چې په بیلا بیلو برخو کې یې تدریس کړی دی یو یو نومونه واخستل شو او مننه یی تری وکړه.

د بری لیکونو د ویشلو د مجلس وروستی موضوع د طبی او دواسازی تحلیف نامو ترسره کول وو چې په لومړۍ څپرکی کې ورڅخه یادونه شوی ده.

بیځایه به نه وی چې د کابل د طب پوهنځی او ولایاتو طبی پوهنځیو پر تاسیسیدلو باندې رڼا واچوله شي:

په کال ۱۳۵۹ د کابل د طب پوهنځی د ابو علی سینا دولتی طب انستیتوت په نامه تغییر وخوړ چې په هغه کې معالجوی طب، ستوماتولوژی، اطفال او نظامی طب پوهنځی شامل شول. د شدیدو جنګونو له کبله طب انستیتوت د څو مودی لپاره د عامی روغتیا وزارت پوری وتړل شو. د طب انستیتوت په دغه زمانه کې د دوو زرو څخه زیات محصلین درلود.

په کال ۱۳۸۲ کې د طب انستیتوت د کابل طبی پوهنتون ته ارتقا وکړه چې مستقیاً د لوړو تحصیلاتو وزارت په تشکیل کې شامل شو. او د معالجوی طب، ستوماتولوژی او نرسنګ پوهنځی د پوهنتون په تشکیل کې موجود دی. په ۱۳۸۹ کال کې نظامی طب پوهنځی بیا د کابل طبی پوهنتون تشکیل کې شامل شو.

په کال ۱۳۴۲ په ننګرهار (جلال آباد) کې د طب پوهنځی پرانستل شو. چې وروسته نور پوهنځی په کې زیات شول او د ننګرهار پوهنتون تشکیل شو.

په کال ۱۳۳۶ د نسوانو (ښځو) دری پوهنځی یعنی د ادبیاتو، ساینس او د نسوانو د طب پوهنځی موجود وو.

په ۱۳۳۸ کال د ثور په ۱۹ نیټه د فارمسی پوهنځی تاسیس شو چې د فارمکولوژی، فارموستیک، میکروبیالوژی، فارمکودینامی، توکسیکولوژی، فارمسی شمیک، فارمکوګنوزی، بیوشیمی او غذایی موادو دیپارتمنتونه یې لرل.

په کال ۱۳۵۲ کې د وترنری پوهنځی د کابل پوهنتون په چوکاټ کې پرانستل شو.

په کال ۱۳۶۷ کې د بلخ پوهنتون تشکیل شو چې اوس د طب پوهنځی لری.

په کال ۱۳۶۷ کې د هرات پوهنتون تشکیل شو چې اوس د طب پوهنځی لری.

په کال ۱۳۶۷ د قندهار پوهنتون چې څلور پوهنځی لری تاسیس شو چې طب پوهنځی هم د هغو پوهنځیو په جمله کې دی.

په کال ۱۳۸۱ د افغان پوهنتون د سرحد پوری غاړی څخه خوست ته انتقال شو چې د طب پوهنځی لری.

همدارنګه د البیرونی پوهنتون هم د طب پوهنځی په خپل تشکیل کې لری.

په افغانستان کې د ترکی دوکتورانو د بحث په ادامه باید زیاته شی چې رفقی بیګ د کابل د طب په پوهنځی کې د درسی چارو د پرمخ بیولو په خاطر، پروفیسور دوکتور حسن رشاد (سفندم) د استانبول د پوهنتون له استادانو څخه چې په ۱۹۳۳ کې د یونیورستی له ریفورم وروسته د علمی کدر څخه د باندې پاتی شوی و د جلدی ناروغیو د استاد په حیث او همداشان پروفیسور دوکتور عمر شوکت (ونجل) یې د بیو کیمیا د پروفیسور په حیث کابل ته راوغوښتل شو او د دوی پسی یې په کلنیکونو کې د درسی چارو د پاره پروفیسور دوکتور زهیتو برګه او خلیل بیګ هم کابل ته راوبلل او د دې

ترځنگه یې د طب د پوهنځی د بیولوژی د مضمون تدریس د علی اختر په نوم یو هندی پروفیسور چې مسلمان سړی ؤ وسپاره.

باید وویل شی چې دی وخته پوری د طبابت چاری د هندی دوکتورانو او افغانی محلی طبیبانو له خوا اجرا کیدلی. د ترکی دوکتورانو په خواکی چې د مخه تری یادونه وشوه د جلدی ناروغیو تدریس د دوکتور عمر درمان د نورو استادانو ترځنگه د طب په پوهنځی کې پرمخ بیوه.

د باکتریولوژی پروفیسور زهیتو برگه د باکترلوژیکی انستیتوت په تاسیسولو چې هر ډول معاینات یې اجرا کولای شول بریالی شو.

په دې انستیتوت کې د لومړی ځل د پاره د محلی واکسینونو مختلف ډولونه د دی جملی څخه د لیونی سپی د مرض واکسین په کابل کې تهیه کیدل.

د طب د هغو دوکتورانو چې په پوهنځی کې یې د ټاکلی خدمت موده پوره کیدله د هغوی په عوض یې له ترکیی څخه دوکتوران استخدامول لکه چې:

- د عدلی طب پروفیسور په حیث دوکتور شاکر تورال.
- د غوږونو ستونی او پوزی په سرویس کې دوکتور حکمت ارگون د فارمکولوژی او فزیولوژی استاد.
- په داخله سرویس کې دوکتور حسن تومرقان او دوکتور فاروق الحان.
- په عقلی او عصبی سرویس کې دوکتور یعقوب چلبی.
- د جراحی په سرویس کې دوکتور جواد ذکایی.
- په اناتومی کې دوکتور ادمام اتام.

دوکتور واحد همزه گوغن په ۱۹۴۲ د دوکتور ذکایی (چې د تیفو په ناروغی اخته او مړ شو) پر ځای کابل ته راولیږل شو او دوکتور نوری رشتو یا سبز وظیفه اجرا کوله.

په افغانستان کې د مړی جسد باندې مساعی نه ترسره کیدله او اوتو پسی هم منع و. پروفیسور همزه گوغن خپل افغانی شاگردان د هند د بمبئ په ښار کې د (J.J) روغتون ته لیږل چې هلته د مړی جسد باندې تطبیقات ترسره کیدل او اناتومی درسونه به یی په تطبیقی ډول زده کول. د دې مشکل

د حل له پاره دوکتور ذهتو برگه د وخت د معارف وزارت د اوتوپسی په هکله او د تشخيص او د اناتومی د زده کولو لپاره پر مړی باندې د څيړنی د پاره پيشنهاد وړاندی کړ. د افغانستان دينی علماو او روحانيونو د يوی فتوی د صادرولو په ترڅ کې پر مړی د څيړنی اجازه ورکړه چې تر اوتوپسی وروسته به جسد په خپل حالت راوړی. لومړی اوتوپسی د هغه سړی پر جسد د دوکتور غالب گوکر له خوا صورت وموند چې د مرمۍ د فير په واسطه هلاک شوی و.

ترکی نجونو چې پلرونه يی په افغانستان کې وظيفه اجرا کوله د صدراعظم په امر د طب په پوهنځی کې منل شوی خو په دې شرط چې د هلکانو سره به په ټولگی کې درسونه د قره قلی خولۍ په سر کولو سره تعقيبوی. ترکی نجونو به د افغانی هلکانو سره په داسی حال کې چې سپينی چپنی به يی اغوستلی وی درسونه يې لوستل.

په افغانستان کې د ترکی دوکتورانو مقاولی، د طب په پوهنځی کې د تدريس د پرمخ بيولو او د هغه پوهنځی پراختيا په نظر کې نيولو سره او همداشان د هغو مصروفيتونو سره چې په روغتون کې يې درلودل، ځينی وخت به تمديديدل. لکه چې د اردو د صحی چارو سلاکار پروفيسور دوکتور سوريا تنای چې له ۲-۳ کلونو پوری مقاوله کړی وه د ده د کار نيته د پنځو کلونو د پاره اوږده کړای شوه. نوموړی وروسته ترکيی ته لاړ او بيا وروسته په ۱۹۵۴ کې مکرراً د طب پوهنځی ته د هستوپاتولوژی د پروفيسور په حيث کابل ته راغی، د همدې سره په نږدی وخت کې دوکتور غياث اون سال د عقلی او عصبی پروفيسور په حيث، دوکتور ترگوت اقسوی د راديولوژی د پروفيسور په حيث، دوچنت دوکتور ديندار برقان د فارمکولوژی د پروفيسور په حيث د کابل د طب پوهنځی ته راغلل او په تدريس يې پيل وکړ.

(دوکتور ديندار برقان په ۱۹۶۳ د کابل پوهنتون د فارمسی په پوهنځی کې هم زما استاد ؤ – مولف، مومنی) په همدې ډول دوکتور ډگرمن نجاتی اورال د داخله متخصص په حيث د داخله په کلنيک کې په کار پيل وکړ.

پوهنځی د وخت په تيريدلو سره پراختيا موندله، تشخيصی لابراتوارونه، او د هستوپاتولوژی موزيم، طبی ريفرنسی کتابتون، اناتومی موزيم، د اناتومی د تطبيقاتو د اجرا کولو په خاطر د جسد ساتنه، تياره او د طب د شاگردانو د استفادی وړ وگرزيدله.

داکتر محمد حسن شرق کله چې محصل و د ترکی استادانو په تیره بیا د ثریا بیګ په هکله لیکلی «پروفیسور ثریا بیګ ترکی بود او در جمله وظایف دیگری که داشت طبیب شفاخانه هم بود. او از جمله استادان ترکی ما بود که بی نهایت علاقه به پیشرفت و آینده شاگردانش داشتند. در فاکولته طبی و مکتب طبی هم استاد بود. برای اینکه زمینه تحصیلات عالی را به تعدادی از بچه های لایق فراهم کرده باشد خیلی می کوشید»[1].

د افغانستان د وخت دولت او د خلکو اکثریت د ترکی دوکتورانو څخه راضی وو. په لومړنیو مرحلو کې کله به چې کابل ته راتلل په باجه خانې سره په خاصو مراسمو دوی هرکلی کیده.

فقط تر ۱۹۴۳ وروسته ورځ په ورځ وضعی تغییر وموند او دا هغه وخت و چې یو شمیر محصلین اروپا ته تللی وو او تر تحصیل وروسته بیرته افغانستان ته راستانه شوی وو، نو د ترکی دوکتورانو په نسبت هغه پخوانی صمیمیت پاتی نشو او کله چې به په افغانستان کې د ترکی دوکتورانو د خدمت موده پای ته رسیدله، پر ځای به یې بل شخص افغانستان ته نه رالیږل کیده.

د افغانستان حکومت د خپل صحی کدرونو د تکمیل په خاطر نورو هېوادونو لکه فرانسی ته مراجعه وکړه، په دې توګه د ترکانو په ځای چې هغوی هم په افغانستان کې د طبی تاسیساتو موسس وو خپل ځای یې فرانسویانو ته پریښود.

«د ښه والی او خراب والی څخه که تیرشو او که په دی تړاو په مجموعی ډول قضاوت وشی نو د یادونی وړ دی چې د افغانستان خلک د ترکانو سره مینه لری او علاقمندی یې درلودله چې د ترکی متخصصینو د پاره هر ډول مادی او معنوی مرستی برابری کړی او د هغوی سره د یوه مسلمان ورور په څیر برخورد وکړي»[2].

په همدې شان په ۱۳۱۱ رفقی بیګ په علی آباد کې سناتوریم (دری پوړیز د شپیتو ناروغانو د پاره) چې ډیره ښه موسسه وه او د اعلحضرت محمد نادر شاه غازی له خوا د ساری ناروغیو د اخته کسانو د پاره تاسیس شو. څرنګه چې دا موسسه هم په افغانستان کې د لومړنیو خیریه موسسو له جملې څخه ده نودا ایجابوی چې د دی موسسی په اړوند او په افغانستان کې

---

۱ - دوکتور محمد حسن شرق، کرباس پوش های برهنه پا از ۱۳۱۰-۱۳۷۰ هـ.ش، ص-۳۳

۲ - پروفیسور جنرال کمال روزبای، مجله کار اورګان شورای مرکزی اتحادیه ملی کارکنان افغانستان، ۱۳۶۹ ص-۵

د توبرکلوز (نرۍ رنځ) د ناروغۍ د درملنې په باره کې يو څه زيات معلومات ورکړ شي.

## د علی آباد سناتوريم

د کابل په ښار کې د طب د پوهنځی تهداب او بنسټ په ۱۳۱۱ کې کيښودل شو او دا هغه لومړنۍ مرکز و چې په علمی کيفيت او سم ډول يې د هېواد د پاره دوکتوران روزل او طبی کدرونو ته يې روزنه ورکوله.

په عين وخت کې د خاصو مراسمو په ترڅ کې د توبرکلوز د ناروغانو د درملنې او معالجی د پاره د لومړنی سناتوريم د تهداب تيږه کيښودل شوه، البته دا سناتوريم د علی آباد په بڼ کې د رفقی سناتوريم په نوم تهداب ګذاری شو.

د څو کلونو په اوږدو کې دا سناتوريم د هېواد هغه يوازنی مرجع وه چې په نری رنځ اخته ناروغان پکې معالجه کيدل، د فتيزياتری وتلی کدرونه دلته تربيه کيدل او علاوه پردی د ناروغۍ د تشخيص او تداوی د پاره له ډيرو نوو ميتودونو څخه استفاده کيدله، دا سناتوريم د طب پوهنځی د لومړی رئيس ترکی دوکتور چې رفقی بيګ نوميده تهداب ګذاری شوی ؤ.

د ده وړانديز له مخی د سناتوريم د ودانۍ د پاره ۹۷۵۰۰ مترو مربع په شاوخوا کې يوه ساحه تخصيص شوه چې په هغی کې صحی اوبه موجودی وی او پردی برسيره يو لوی باغ چې ۳۰۰۰ متر مربع مساحت يې درلود هم موجود ؤ چې په دې باغ کې به ناروغانو د ورځی زياتره برخه تيروله او چکری به يې په کې وهلی. د سناتوريم تعمير په مودرن شکل ودان شوی و چې کافی لمر، برېښنا او د مرکز ګرمی سيستم يی درلود.

په دې سناتوريم کې د ۳۲ تنو په شاوخوا کې کار کاوه چې نيمايی يې طبی پرسونل ؤ. د بسترو شمير شپيته (۶۰) وی چې د اکسريز د کوټو، عمومی لابراتوار، باکترلوژيک او مديکل ريکارډ درلودونکی ؤ.

څرګنده ده چې په هغه وخت کې د ناروغانو درملنه په سيمپوماتيک يا عرضی تداوی پوری محدوده وه چې د دې ترڅنګه د ناروغانو د پاره د سناتوريم غذايی رژيم توصيه کيده. دلته د درملنې په خاطر د مکفی غذا لکه سوپونو (ښوروا) ډولونه، د چرګو هګی، پنير، کوچ، شيدی، ماسته يعنی هغه خواړه چې زياته کالوری او پروتين يې درلودل توصيه کيدله.

د افغانی طبی کدرونو د نشتوالی له مخی له ۱۳۱۱ تر ۱۳۲۵ پوری په دې سناتوریم کې ترکی دوکتوران لکه بدری بیګ، ګلی بیګ او داسی نورو کار کاوه. له ۱۳۲۵ راهیسی هغه وخت چې د فرانسی طبی تیم د طب په پوهنځی کې په تدریس لګیا و په دې سناتوریم کې هم فرانسوی دوکتوران لکه پروفیسور بلانژی او نورو وظیفه درلودله.

د دې برسیره د پورتنی درملنی د توبرکلوز د ناروغانو په درملنه کې له ویتامینونو، کلسیم کلوراید او یو شمیر نورو درملو څخه کار اخیست. یعنی هغوی د عرضی تداوی په خواکی د ضد حساسیت درملنه هم پرمخ بیوله.

ستریپتومایسین په هغه زمانه کې یوه کم یافته او ګران بیه درمل و او صرف د نری رنځ د ناروغانو د درملنی د پاره د ارتشاحی په شکل د نری رنځ یو آفت درلودونکی و کار اخستل کیده. لکه چې په ۱۳۳۶ کې ۳۱۵ ګرامه ستریپتومایسین استعمال شوی و.

څو کاله وروسته زمونږ په هېواد کې د نری رنځ د ناروغی د درملنی د پاره له ایزونیازید (INH) او وروسته له P.A.S څخه استفاده وشوله.

د تداوی پروسی له ۵-۶ اونیو پوری احتوا کوله او بیا د یوه کال د پاره یې په پولی کلنیک کې معالجی دوام درلود. او د هرو دوو میاشتو په منځ کې رادیولوژیک او باکترلوژیک معاینات اجرا کیدل. له دی تداوی څخه یوازی د کابل خلکو ګټه اخستله حال دا چې د نورو ولایتونو اوسیدونکی تری محروم وو او د عملی خوانه طبی مرستی په نورو ولایتونو کې هیڅ نه وی.

تقریباً د علی آباد د سناتوریم د ایجادیدلو سره په یوه وخت کې د میرمنو سناتوریم د شلو بسترو په درلودلو د نری رنځ د ناروغۍ د تداوی د پاره جوړ شوی ؤ، چې په دی دواړو سناتوریمونو کې د دوکتورانو یو واحد ګروپ کار کاوه.

اوس د میرمنو د نری رنځ سناتوریم او یا (۷۰) بستری لری چې افغانی دوکتوران په دواړو سناتوریمونو کې فعالیت کوی او په کال کې د ۴۰۰-۶۰۰ په شاوخوا کې د نری رنځ د ناروغی پیښنی تداوی شوی دی.

د نری رنځ د ناروغی پر ضد په مجادله کې عمده او اساسی ونډه د توبرکلوز ملی انستیتوت اخلی چې د لومړی ځل د پاره په ۱۳۳۳ د نرۍ د

روغتیایی اداری (WHO) د تصمیم او مرستو له پلوه د کابل د نری رنځ د مجادلی مرکز تاسیس شو.

د نړۍ روغتیایی سازمان د مسلکی کدرونو د روزلو، پلان گذاری او د نری رنځ پرضد د مجادلی اساساتو په برخه کې زیاتی مرستی ترسره کړی دی. لکه چې د دی سازمان له خوا د توبرکلوز یو تن سلاکار او متخصص داکتر نیومان او د ده سره ملگری هئیت د کابل د نری رنځ د مجادلی په مرکز کې ډیر گټور خدمتونه ترسره کړی دی.

د دې موسسی د پروگرام فعالیت په کابل کې منحصر پاتی نه شو بلکې د هېواد په نورو ولایتونو اوسیمو کې د نری رنځ پر ضد د مجادلی پروگرام شروع شو.

په دې کلونو کې د لومړی ځل د پاره د توبرکولین تست رواج وموند چې د نری رنځ د ناروغی د تشخیص د پاره تری کار واخستل شو، د هغو چا په نزد چې د توبرکولین تست مثبت و د سږی را دیالوژیک معاینات او د بلغمو باکترلوژیک معاینی به یې اجرا کولی او دکومو اشخاصو په نزد چې دا تست منفی و نود (BCG) بی سی جی واکسین به یې ورته تطبیقول.

د کابل د شیوکیو په کلی کې یو صحی اپیدیمولوژیک مرکز ودان شو چې موخه یې په هېواد کې د نری رنځ د ناروغی د اپیدیمولوژیکی څیړنو ترسره کول.

اپیدیمولوژیکو نتیجو وښودله چې د کلی له ۳۰۰۰ اوسیدونکو څخه ۱۰۳ تنه په فعال نری رنځ اخته و چې دا رقم د هېواد په نفوسو کې د نری رنځ د پراخو خپریدلو یو لوی رقم په گوته کوی.

په ۱۳٥۰ د نری رنځ د ناروغانو د پاره اساسی څیره چې تر ننه پوری رواج لری طرح ریزی شوه او د هغی له مخی حمله وی تداوی متقطع تداوی او ورځنی تداوی ترسره کیدله.

تر ۱۳٥۱ پوری په اساسی ډول د نری رنځ د ناروغی پر ضد کوښښونه یوازی د کابل په ښار کې تر سره کیدل، حال دا چې له ۱۳٥۲ کال وروسته د کابل له ښار برسیره د نری رنځ د رنځوری پر ضد سخته مبادره د هېواد په ولایتونو کې هم پیل شوه.

په ۱۳٥۴ کې د نری رنځ د ملی پروگرام د چارو د څیړنی او بهتر کیدلو په منظور د نری رنځ ملی انستیتوت تاسیس شو. او په همدې کال په افغانستان کې د نړۍ روغتیایی سازمان له خوا د نری رنځ د ناروغی د

کنترول په مقصد په هېواد کې ملی پروګرام پیل شو چې په دی پروګرام کې د بی سی جی د واکسین د تطبیق په واسطه د نری رنځ د ناروغی پر ضد د هېواد په نفوس کې د معافیت ایجاد شامل و.

په ۱۳۵۷ کال د کابل په ښار کې د نری رنځ د ملی انستیتوت د نوی تعمیر بنسټ کیښود (زه هم دغه محفل ته بلل شوی وم – مومنی) چې دا ودانی د جاپان د دولت په تخنیکی او اقتصادی مرستو آباده شوی ده.

د نری رنځ د ملی انستیتوت اساسی او عمده دندی په لاندې ډول دي:

- د هېواد د اوسیدونکو په منځ کې د کتلوی معافیت ایجاد.
- د نری رنځ په ناروغی د اخته کسانو د پیښنو تحری.
- په وړیا توګه د نری رنځ د ناروغانو تداوی د امبولاتور په شکل او یو څه د خوراکی موادو ویشل.
- د نری رنځ پر ضد د مبارزی په باره کې په ولایتونو کې د ناحیوی صحی مرکزونو تنظیم او لارښوونه.
- د دوکتورانو او د منځنی طب د پرسونل د تربیتی او روزلو چاری.

د دې انستیتوت په تشکیل کې د اپیدیمولوژی، احصائیی، د توبرکلوز د ارزیابی او کنترول، د کلچر تحقیقات، د خلکو په منځ کې د صحی زده کړو د خپرولو په منظور، بصری تنویر، تبلیغ او ترینِنګ څانګی شاملی دی.

په ۱۳۵۷ د ۹۳۰۰۰ ناروغانو په شاوخوا کې ناروغان د امبولاتور په شکل په وړیا توګه تداوی شول او وړیا خوراکی مواد ورته وویشل شو.

د ۱۳۵۷ د ثور د انقلاب د لومړیو کلونو را وروسته د یوه میلون اشخاصو په شاوخوا کې او ۱۴۰۰۰۰ کوچنینانو ته د بی سی جی واکسین تطبیق شو او د هېواد ۴۸۰۰۰ تنو اوسیدونکی په شاوخوا کې د نری رنځ د ناروغی په غرض معاینه شول، او له زرو تنو زیاتو طبی پرسونل په سیمینارونو کې ګډون کړی دی.

په ۱۳۵۸ د لومړنی پنځه کلن پلان بنسټ کیښودل شو چې په دې پلان کې د (۱۳۵۸-۱۳۶۲) د نری رنځ پر ضد د مبارزی ملی پروګرام د نوموړی موسسی په غاړه کیښودل شو.

په ۱۳۶۰ د نرى رنځ د ناروغى د اهميت له کبله چې يوه ټولنيزه نارغى ده وپتيل شوه چې د کابل د طب په انستيتوت کې د نرى رنځ د يوه ځانګړى مضمون په توګه تدريس شى.

لکه چې يادونه وشوه دا ناروغى يوه ټولنيزه ناروغى ده، د معافيت، تداوى او نورو پورى مربوط مسايل او د هغى د خپريدلو څخه د مخنيوى تدبيرونه د توبرکلوز د ملى انستيتوت په غاړه دى. او د بلې خوانه د نرى رنځ هغه ناروغان چې په فعال توبرکلوز اخته دى په وسله وال پوځ کې له خدمت څخه معافيږى. نوله دى کبله د وسله وال پوځ د منسوبانو په نزد د دى ناروغى د تثبيت او تشخيص نه وروسته وسله وال په صفوفو کې له شموليته معاف شميرل کيږى او د نرى رنځ سره د مبارزى ارګان ته ور پيژندل کيږى.

په ۱۳۵۷-۱۳۵۸ کلونو کې د اردو د صحيى رياست په نرى رنځ اخته ناروغان به يې د کابل په مرکز کې رسماً د توبرکلوز ملى انستيتوت ته ور معرفى کول او هغو چې په ولسواليو او اطرافو کې هستوګنه درلودله برسيره پرهغه پيژندليک (معرفى خط) چې د ولايتونو او ولسواليو صحى مرکزونو ته به ناروغ سړى ته ورکول کيده او د رسمى مکتوب پواسطه به ور معرفى کيده. د ولايتونو او ولسواليو د صحى ارګانونو له لارى به هغه تعقبيدل او د تداوى او کنترول لاندې به نيول کيدل.

### د روغتيا په اړوند خپرونى او د کلونو له مخى واقعات

که چيرته د هېواد د صحى جريدو تاريخ ته مراجعه وشى ليدل کيږى چې «مجموعه صحيه» لومړى د ۱۳۰۶ د ليندى په لومړۍ نيټه تاسيس شوه خو د يو وخت د پاره په تعويق ولويدله چې د دوهمى نشراتى دورى پيل يې د ۱۳۱۰ د غبرګولى ۳۰ وه چې د عبدالرشيد لطيفى په مديريت تدوين او خپريدله[۱].

موږ د ۱۳۱۱ کال د لاس ته راوړنى په اړوند مخکى لنډ معلومات وړاندى کړل. تر دى وروسته هڅه کيږى ترڅو چې د طبى جرياناتو او پيښو په باب د امکان په صورت سال وار وړاندى شى.

۱ - ۱۳۱۱ کال سالنامه ، ص-۱۵۶

لکه چې په ۱۳۱۲هـ ش کې طبیه مستقل مدیریت د روغتیا ریاست ته لوړ کړی شو چې رئیس یی جلالتماب محمد اکبر خان، د ملکی روغتون مدیر ص عبدالغفار خان او د طبی مکتب منتظم ص غلام سرور خان ؤ. په دې کال کې مشاورین له رفقی بیګ، فواد بیګ (سرطبیب) او دلسو دوکتورانو څخه عبارت وو، چې یو یې ترکی ربیع حکمت بیګ و.

په دې کال (۱۳۱۲ زمری میاشت) د رفقی بیګ سناتوریم افتتاح شو (د سالنامی ۱۳۱۲ کال ۱۸۲ مخ).

په ۱۳۱۳ د پاچا د ارادی له مخی د صحیی ریاست وزارت ته پورته شو (د ۱۳۱۳ سالنامی ۱۰۰ مخ). د صحیی وزارت تشکیلات په دې کال کې دومره پراخ نه ؤ:

- وزیر ع،ج غلام یحیٰ خان
- معین
- د مشاوریت او ترجمانۍ د دایری مدیر
- د محاسبی مدیر – محمد محسن خان
- د مامورینو د دایری سرکاتب – ص محمد ابراهیم خان
- د تفتیش د دایری سرکاتب – ص فقیر محمد خان
- د اوراقو د دایری سرکاتب – ص عبدالرووف خان

په همدی شان د پوهنی وزارت د صحیه تشکیل هم دومره پراخ نه و:

- د لابراتوار د دایری مامور – داکتر انور علی خان
- د پوهنی د روغتون داکتر – عزتمند احمد علی خان
- د طبی پوهنځی رئیس – عزتمند دوکتور حسن رشاد بیګ
- د طبیه مکتب منتظم – ص عبدالله خان

په دې کال کې د هېواد په یو شمیر ولایتونو کې روغتونونه موجود وو:

- د قندهار په ولایت کې – د روغتون مدیر ص میرولی خان
- د هرات په ولایت کې – د روغتون مدیر حاجی عبدالرحمن خان

- ☜ د مزار شریف په ولایت کې – د روغتون مدیر ص محمد رحیم خان
- ☜ د مشرقی اعلی حکومت کې – د روغتون مدیر ص موجود نه و
- ☜ د جنوبی اعلی حکومت او د میمنی د روغتون طبیه مدیران نه وټاکل شوی.
- ☜ د فراه او چخانسور د طبیه مامور – ص محمد ابراهیم خان و

افغانستان په دې کال د تریاکو او مخدره درملو د نړیوال کنفرانس په مشاورتی کومیټه کې شامل شو، چې په نړیوالو سازمانونو کې او د جهان خلکو ته د افغانستان د پیژندنی په باره کې یو لوی قدم واخستل شو. همداشان لکه چې څرګنده ده د افغانستان پخوانی حکومتونو د مخدره موادو د استعمال پر ضد مبارزه یې په خپل قوت وړاندی بیولی ده.

په کال ۱۳۱۳ د پوهنی وزارت چې د عمومی روغتیا او موجوده نسل روزنی په ترقی کې، حتی د نباتاتو او حیواناتو په روزلو کې خاصه پاملرنه درلودله، په پام کې درلوده چې د هغو د مکتبونو شمیر زیات کړی او مخصوص ښوونځی ورته اصلاح کړی، له دی امله د کرنی د مکتب، د طبی مکتب، دواسازی او کیمیاګری مکتب په تکامل کې لازم ترتیبات ونیول شو.

د طبی نباتاتو له پلوه افغانستان ډیر شتمن دی ځکه چې د ټولو تودو سیمو، مدیترانه یې، بری او بحری نباتات را ټو کیدلی چې تنوع یی هم زیاته ده. نو ځکه سپیرکۍ (جواني)، بادیان، زوف، ترخ، جدوار، بیش، کچه ماچو (سګ انګورک)، خطمی، خبازی، شاه تره، ګاوزبان، بیدمشک، داتوره، کاکوتی، ژاوله (ساجق)، اسفرزه، خاکشیر (جلال آباد)، شیر خشت (هرات)، هنګ (شمالی ولایتونه)، ګندلی (چې د فروزی ګنده تری لاس ته راځی) او داسی نور چې له دې جملی څخه د افغانستان طبی نباتات دی.

د افغانستان خود روی حبوبات او نباتات چې په طبابت کې له هغو څخه استفاده کیږی راټول شوی او نمونی یې بهرته لیږل شوی.

باید وویل شی چې زیره (ځنکۍ) د افغانستان د صادراتو له ډیرو غورو اقلامو څخه دی. تریاک (اپین)، شیر خشت او تر نجبین، هنګ (انګوزه) او نور طبی نباتات لکه سرغنۍ (عناب)، جوانی، بادیان، خریری

(سمارق)، ژاوله (ساجق)، توره میٰ، د زردالو زړی او داسی نور په پراگنده ډول بهرته صادریږي[۱].

د پورتنی مأخذ په ۱۰۰ مخ کې د روغتیایی چارو په هکله داسی راغلی دی.

طبی ښوونځی چې په ۱۳۱۰ تاسیس او پرانستل شوی و په دې کال کې له محصلینو څخه ازموینه واخستل شوه او بری لیکونه ورته ورکړ شو.

د قابلگۍ کورس څخه هم ازموینه واخستل شوه، ۱۴ تنه فارغ او د بری لیک په اخستلو بریالی شول. د کمیستی ښوونځی په مرکزی درملتون کې تاسیس چې اوس یې محصلین لس تنه دی. دې زده کوونکی د کیمیاگری او کیمیا د فن په ځانگه کې په نظری او عملی صورت زده کړه کړی. د دې ښوونځی د تنظیم چاری د پوهنی وزارت او روغتیا وزارت تر نظر لاندې په گډه سره پرمخ بیول شوی دی.

د درمل جوړولو کورس د هغو محصلینو د پاره چې په روغتونونو کې یې د درمل جوړولو شغل درلود او له دی فن څخه اگاه نه وو، نو په مرکزی درملتون کې یو اساسی کورس د جناب پروفیسور عمر شوکت بیگ په معلمۍ او د کمیستی د ښوونځی د معلمینو له خوا تاسیس شو، چې نوموړو محصلینو د درمل جوړولو د فن نظری برخه په نوموړی کورس کې بشپړه کړی او په دې وسیله گویا په نظری او عملی ډول په دې فن کې د معلوماتو درلودونکی شوی دی. په دې کورس کې شل تنه شامل وو چې په په راتلونکی کې د هغه د پراختیا پلان سنجول شوی دی.

په همدې توگه د مرکز او ولایتونو د روغتیایی موسساتو د تفتیش او بررسۍ په خاطر د صحیی په وزارت کې د پلټنی یوه نوی اداره تشکیله شوه چې د روغتیایی چارو په لا ښه کولو کې یې د یادونی وړ رول لوبولی دی.

همداشان ځرگنده شوی ده چې د نسوانو د سناتوریم کار چې په افغانستان کې یې وجود نه درلود او د علی آباد ملکی روغتون چې د رفقی سناتوریم په خواکی جوړیږی بشپړ شوی او په نژدی وخت کې پرانستل کیږی.

برسیره په هغو معاینه خانو چې د مخه د کابل په ښار کې موجودی وی، ځلور کتنځی د ښار په گوښه کې نوی په عصری توگه تاسیس شوی.

---

۱ - مجله سالنامه کابل ۱۳۱۳، جغرافیه اقتصادی افغانستان، ص-۱۷۱

په دې کتنځو کې هغه ناروغان چې روغتونونو ته تلای نه شی، معاینه او تر درملنی لاندې نیول کیدل.

په نوموړی مجله کې زیات شویدي: چې اوس په ټولو ولایتونو او اعلی حکومتونو کې منظمی شفاخانی جوړی شوی او هر ډول ناروغی پکې معالجه کیږی.

په همدې توګه د (انتانی د ناروغۍ) کتاب چې ۶۰۰ مخونه او تصویرونه لری او تر دی وخته پوری زمونږ په وطن کې یې ساری نه دی چاپ شوی په همدی کال کې چاپ شو او مولف یی بای دوکتور ربیع حکمت دی. دا کتاب د وخت د روغتیا وزارت په لګښت چاپ شوی ؤ.

د لومړی ځل د پاره د درملتونونو د چارو تنظیم په خاطر د درملتونونو د اصولنامی په نوم اصولنامه د روغتیا وزارت له خوا تدوین شوی ده.

هغه څه چې په ۱۳۱۴ کال د بحثونو وړ و او د روغتیا وزارت نور فعالیتونه د خپل شعاع لاندې نیسی د درمل جوړولو د ښوونځی تاسیس دی چې دی موضوع د ۱۳۱۴ د ثور د میاشتی د آئینه عرفان د مجلی له ۵۱-۵۲ مخونو پوری پوره انعکاس موندلی دی او څه رنګه چې دا عالی ښوونحی (چې د مخه د درمل جوړولو کورسونه موجود وو) د درمل جوړولو د عصری زده کړو درلودونکی لومړنی موسسه ده، چې د هغی په باب تفصیل سره بحث بې مورده نه دی.

نن ورځ بیا د مملکت د اړتیاو د لیری کولو په سلسله کې یوه بله کړۍ ور زیاته شوه او د المتوکل علی الله محمد ظاهر شاه د ځلانده عصر د عمومی صحت په نوم د مملکت په روغتیایی او ملی موسسو باندې یوه بله موسسه هم منځ ته راغله چې د دواسازی او کیمیاګری د ښوونځی له تاسیس څخه عبارت دی.

د دې ښوونځی څخه د تاسیسیدلو موخه دا ده چې پر اوسنیو دواسازانو باندې د درمل جوړولو یوه بله ډله د اسپنچاری د فن مطابق چمتو کوی او د بلې خوانه د اوسنیو درمل جوړونکو شمیر به پری زیات شی.

...د ضرورت په وخت کې فوراً د وطن د نباتی او معدنی مالزمی څخه ګټوره دوا استحصالول، درملو معافیت او صحت د کیمیاوی تحلیل او معاینی له مخی پیژندل، او د هغو ضررونو څخه د دوا ساتنه چې د نور او د وخت په تیریدلو سره په ځینو دواګانو کې پیدا کیږی. او د مرکبه درملو په

نسبت د ناروغانو د نه اطمینان څخه مخنیوی کول، او د هغه نظافت تامینول چې د اوسنۍ حفظ الصحی او طبابت قانون غوښتنه ده. او د هغی ورځنی دوا تیارول چې د یوه ناروغ د وجود د پاره مشخصه ده او داسی نور.

دا هغه نکتی دی چې هر دواساز یې په ټاکلی وخت کې په اساسی او سمه توګه زده کړی. د غوییی په ۲۷ د شنبی په ورځ تر ماسپښین وروسته په دروبجو دا ښوونځی د دواسازی په پرتمینه موسسه کې پرانستل شو.

محترم عمر شوکت بیګ د دې فن متخصص، د درسونو او د تحصیل د مودی او د زده کوونکو د دندو په باب زیاتی علمی او فنی څرګندونی وکړی.

د لوستونو اساسی مواد یی داسی وښودل:

غیر عضوی کیمیا، تحلیلی کیمیا، عضوی کیمیا، د طبی نباتاتو او حیواناتو د اسپنچاری فن، فارمقوقنوزی (فارمکوګنوزی)، حیاتی کیمیا، غذایی کیمیا او غذایی تحلیلات، شیمی، فزیک، توکسیکولوژی او اسپنچاری تحلیلات.

دې ښوونځی دوی شعبی درلودلی یوه یې درمل جوړول او کیمیاګری او بله یې یوازی عملی دواسازی وه، د دواسازی او کیمیاګری په څانګه کې د تحصیل موده دری کاله او د عملی دواسازی په څانګه کې د زده کړی موده نه میاشتی وه.

د حیاتی، غذایی، صنعتی کیمیا، شیمی او فزیک په استثنا پورتنی مضمونونه په ګډه سره د دوو شعبو د پاره تدریس کیږی او دا مضمونونه به د دویمی شعبی د پاره تدریس شی.

شوکت بیګ په اخر کې زده کوونکو ته وویل: ای د افغان ذکی اولاده ستاسی راتلونکی وظیفه د زده کړی په موده کې دا ده که چیرته غواړئ چې په دې برخه ستاسی مهربان حکومت او غیور ملت ممنون او پخپله تاسی په دې مملکت کې بریالی شئ لومړئ باید د حاضرئ پابندو اوسئ او دوهم د مکتب د قوانینو او دریم د هغو افکارو پابند اوسئ چې مستقیماً ستاسی په مسلک تکیه کوی.

دا لیسه چې د طب د پوهنځی سره تاسیس شوی وه تر ۱۳۲۷ پوری یې لس دوری درمل جوړونکی ټولنی ته وړاندی کړی دی.

تردی د مخه یوه شخص چې محمد حسین خان نومیده او بیا په خلیفه محمد حسین مسميٰ شو د قلعه باغر خان په روغتون (میوند روغتون) کې د کمپودرۍ او د دواخانی د چارو کورس بیرته کړی و. دا سړی د هندی متخصصینو په واسطه چې د دفاع وزارت د صحیه او وترنری په مدیریت کې (پل محمود خان روغتون) وظیفه درلودله. او د نور محمد خان او داکتر قریشی په نومونو څخه یی زده کړه کړی وه.

څه رنګه چې د فارغانو سویه ټیټه وه هماغه و چې د طب د پوهنځی په خواکی د دواسازی عالی ښوونځی افتتاح شو.

دا به ډیره ګرانه وی چې د طبی او دواسازی مسایلو ټول جریانات په هر کال کې تعقیب شی خو ښایی په افغانستان کې د طبابت ځینی پیښی او لویې لاس ته راوړنی تر بررسۍ لاندې ونیول شی چې له دی جملی څخه د ۱۳۱۵ کال پیښی د کابل د سالنامی په حواله اقتباس شی.

د عامی روغتیا د وزارت په تشکیل کې بدلونونه رامنځ ته شول چې د تیرو کلونو په نسبت زیات پراخ وو چې په لاندې ډول دي:

- وزیر: ع،ج غلام یحيٰ خان
- د ملکی روغتون مدیر: ص عبدالغفار خان
- د ملکی روغتون سرطبیب: ص دوکتور ربیع حکمت بیګ
- د مستوراتو د روغتون مدیره: ص زینب بیګم
- د عمومی دواخانی د مدیر کفیل: ص محمد علی خان
- د اکسریز او رادیولوژی د شعبی مرستیال: ص عزیز الله خان
- د غاښونو دوکتور: عزتمند محی الدین بیګ
- د غاښونو دوکتورس: عزتمند خانم بای محی الدین
- د غاښونو دوکتور: ص عبدالله خان
- د رفقی سناتوریم د سرطبیب کفیل: عزتمند خانم نوزاد بیګ
- د رفقی سناتوریم فنی او اداری معاون: ص محمد عمر خان
- د عقلیه او عصبیه ناروغیو د روغتون سر طبیب: ص قیوم خان

- ☜ د مستوراتو د سناتوریم فنی او اداری معاون: ص محمد موسی خان
- ☜ د مستوراتو د سناتوریم ماموره: ص روح افزا بیگم
- ☜ په شهرارا کې واقع کتنځی مرستیال: ص محمد ابراهیم خان
- ☜ د چنداول د هزاره ګانو قلعه کې واقع کتنځی مرستیال: عزتمند داکتر کرم الهی خان
- ☜ په بالاحصار کې پروت کتنځی مرستیال: ص محمد موسی خان

په ګردو ولایتونو او اعلی حکومتونو او حتی په اسمار کې (چې د لویی ولسوالی په دولتی تشکیل کې و) د صحیه مدیریتونه موجود وو چې د صحیی د دغو مدیریتونو د کفیلانو نومونه هم ذکر شوی دی.

د افغانستان نماینده د ۱۳۱۵ کال د جوزا له ۱۸ د سرطان تر ۴ نیټی (۸-۲۶ جون ۱۹۳۶) په هغه کنفرانس کې چې د مخدره درملو د غیر مشروع تجارت د انسداد په باره کې منعقد شوی شامل شو.

همداشان هغه قرارداد چې نوموړی کنفرانس کې د مخدره ادویی د نامشروع تجارت د مخنیوی د پاره عقد شوی دی د افغانستان د مطبوعه حکومت تر غور لاندې دی.

په همدې کال ۱۳۱۵ د تریاکو شرکت د یو ملیون پنځه سوو زرو افغانیو په پانګه د تریاکو د اصولی صادراتو د پاره په فعالیت پیل کړی دی. دا شرکت د نړیوالو مقرراتو مطابق ؤ او په هرات کې تاسیس شوی ؤ چې ټول صادارات یې نوی ټنه ؤ. هغه مکتبی علمی آثار چې په دې کال کې تالیف شوی دي:

- ☜ پسیکولوژی «علم الروح» عسکری کتاب د محترم احمد الله پوپلزایی تالیف اوژباړه.
- ☜ تحلیلی کیمیا کتاب: لیکوال پروفیسور توماس انګیزی – د طب د فاکولتی د متعلم محمد عظیم خان ژباړه.
- ☜ فزیولوژی (علم تشریح): د انګریزی عالم سترلنګ تالیف په دوو جلدو کې، د طب د فاکولتی د متعلم محترم عبدالرحمن خان ژباړه.

- ☜ د عمومي او مرکزي لابراتوار (کیمیاوي تجزیه خانه) تعمیر چې له درو کالو را پدې خوا تر کار لاندې ؤ جوړیدنه یې بشپړه شوې ده.
- ☜ همداشان د طبي پوهنځی د تعمیر بنا او دارالفنون چې څلور کاله یې د دارالفنون په بیلا بیلو بناګانو کې خپلې لوست خونې، لابراتوارونه دایر کړي او اجراکول د ټولو ملحقاتو سره یې کار شروع شوی دی.
- ☜ د دې د پاره چې زمونږ ګران هېواد افراد د ساري ناروغیو لکه سفلیس، وبا، شري او نورو وخیمو اثراتو څخه آګاه شي او د هغوی په مقابل کې د دفاع په طریقه وپوهیږي د عامې روغتیا وزارت داسې وپتیله چې په هره میاشت کې د متخصصو ډاکترانو له خوا دې بې له انقطاع څخه کنفرانسونه دایر او خپلو ګډون کوونکو ته دې لازم توضیحات ورکړل شي. په کال ۱۳۱۵ کې دوه صحي کنفرانسونه ورکړ شو او د هغوی نسخې او طبع شوي نقلونه یې د هېواد ولایتونو او اعلی حکومتونو او نورو ته ولیږل شول.

همداشان څه رنګه چې ساري ناروغۍ لکه وچکۍ (تیفوئید – محرقه)، شري (سرخکان)، کوی (چیچک) او نوري په بشري کتلو کې د کال په هره موقع کې موجودې وې او د ځینو کورنیو غړي تر حملې لاندې نیسي، نو د دې لپاره چې کورنۍ وپوهیږي د دې ډول ناروغانو سره څنګه چلند وشي نو تجویز ونیول شو، چې د قابله ګۍ د ټولګې یو شمیر متعلمانې د صحي نماینده ګانو په نوم تر تعلیم لاندې ونیسي.

د دوی د کورس د پاره دري میاشتې ټاکل شوي او د دوی وظیفه په دې ناروغیو اخته کورنیو ته صحي تبلیغ او ارشاد وکړي ترڅو چې د ناروغ سره لازم رفتار وکړای شي.

باید وویل شي چې په ایبک کې حمای لکه دار خپره شوی او د هغې د دفع کولو خبر د ۱۳۱۵ د ثور په شلمه خبر ورکړی شو ؤ د ایبکود ځینو خلکو کالي سوزول شوي چې د هغوی بیه (قیمت) ورته ورکړ شو.

همداشان د وبا (کولرا) ناروغي په زرمت کې خپره شوه خو ډیر ژر یې مخه ونیول شوه. په دې کال کې د عامې روغتیا د وزارت له مهمو اقداماتو څخه دا دي:

☜ په ټول افغانستان کې د ملاریا د ناروغی سروی پیل شوه.

☜ د وچکۍ، وبا او لیونی سپی د واکسینونو په خواکی چې د دارالفنون په یوه ودانۍ کې پخوا تهیه کیدل اوس د کوی واکسین هم اعمالیږی. او د چیچکو د اوبو په تطبیق سره په ټولو ولایتونو او اعلی حکومتونو کې تر یوی اندازی د دی موزی ناروغی د تلفاتو څخه مخنیوی شوی دی.

په دې کال کې د کابل ښار ۱۲۴۶ تنو کسبه کارانو صحی معاینه ترسره شوی، معدنی اوبه د تجزیی لاندې نیول شوی او خلکو ته د استفادی د پاره ورکړ شوی دی، د حمامونو د ښه والی په غرض تدبیرونه نیول شوی د عملو په ګذر او ده افغانانو د میدانی د حمام شاه ته دوه حلقی کوهیان کندل شوی، د قلعه باغر خان او باغ علی مردان حمامونه په عصری ډول بشپړ شوی دی.

همداشان وپتیله شوه چې د کابل په ښار کې درملتونونه دی ۲۴ ساعته بیرته وی، او په شاهی جاده کې په عمومی دواخانه کې یو باب مرکزی درملتون پرانستل شو او د عامی روغتیا وزارت د خلکو د ضرورت له مخی درملتونونه اوغابښ جوړونکی معاینه خانی د کابل ښار په بیلا بیلو ځایونو کې ویشل شوی دی.

د درملتونونو اصولنامی د اصولی مرحلو تر تیرولو او د ملوکانه اعلحضرت تر توشیح وروسته د هېواد ټولو برخو ته ولیږل شوی او د نوموړی اصولنامی د مندرجو موادو د تطبیقیدل عمومو درملتونو ته توصیه او تر اجرا لاندې ونیول شوی.

همداشان د مخدره درملو د کنترول په باره کې چې تر دی وروسته سوداګر واردولای نه شی د عامی روغتیا د وزارت له خوا مقررات وضع شوی دی. او د مخدره درملو د تورید او د هغی د مصرفولو د صورت په هکله د عامی روغتیا وزارت یوه اصولنامه ترتیب کړی ده.

د هغو داکترانو لست چې د نسخی ورکولو اجازه لری درملتونونو ته لیږل شوی دی.

په عمومی درملتونونو کې د مقطرو اوبو جوړول پیل شوی او په ښاری درملتونونو کې خرځیږی. څرنګه چې درملتونونو د ضرورت له مخی یو شمیر درمل جوړونکو ته احساسیده، له دی امله یی کمپودری شاګردان له ملکی روغتون او اوسنیو مرکزی روغتونونو څخه د دوکتور

انور علی خان د تعلیم لاندې ونیول او په ټاکلو ورځو د کمپودری کورس یې مجدداً په عمومی درملتون کې پرانستلی دی.

په ولایتونو کې مستعد اشخاص وهڅول شول چې درملتونونه جوړ کړی او په دې اساس په دی کال کې د هرات، قندهار، مشرقی، جنوبی، میمنی، شمالی او غزنی ولایتونو په مرکزونو کې درملتونونه افتتاح او په کار یې پیل وکړ.

د اعلحضرت محمد ظاهر شاه د فرمان په اساس یو سل زره افغانۍ د روغتیایی چارو او روغتون د پاره بخښل شوی. او د علیا حضرتی ملکی معظمی د فرمان له مخی په پام کې دی د مملکت روغتیایی چاری په ډیره لویه پیمانه تامین شی، تصمیم می نیولی دی یو سلو شپږ دیرش زره افغانۍ خپل او د اعلحضرت د خویندو معاشونه د دربار له وزارت څخه واخلم او د مستوراتو د روغتون د ضروریاتو د رفع کولو د پاره دی ولګیږی.

په همدې توګه د صدارت عظمی د تشویق او د روغتیا وزارت د تحریک او اقداماتو په اثر یوه زیاته اندازه روپۍ د اعانی په ډول د عصری روغتونونو د جوړولو په خاطر له ولایتونو او حکومتونو څخه راټولی شوی دی، چې په دې اساس د کندهار په ولایت او د هغه په مربوطه حکومت کې (ارزګان، قلات او پشت رود)، د هرات په ولایت او حکومتونو کې (بادغیستان، غورات، غوریان او سبزوار)، مزار شریف، شبرغان، قطغن، مشرقی، کونړونو، میمنی، لوګر د شمالی لوی حکومت او دایزنګی کې روغتیایی مرکزونه او روغتونونه په کال ۱۳۱۶ په فعالیت شروع وکړی.

څه رنګه چې د مملکت زیاترو سیمو کې وطنی جراحانو په غیر فنی صورت د جراحی مهم عملیات اجرا کول نو د روغتیا وزارت دوی تر ازموینی لاندې ونیول، هغه چا چې د دی کار وړتیا نه درلودله، د شغل کولو مخنیوی یې وشو او هغه کسان چې نسبتاً پخپله یې زده کړه کړی وه هغوی یی د تحصیل د پاره متخصصینو ته کښینول ترڅو چې تر زده کړی وروسته اجازه نامه ترلاسه کړی.

په همدې ترتیب په ۱۳۱۵ کال کې په لغمان کې یو روغتون او په علی آباد کې د ۱۳۱۵ کال د عقرب ۹ د یکشنبی په ورځ د عقلیه او عصبیه روغتون نوی ودانی پرانستل شوه.

د دې کال د غبرګولی په ۲۵ د دارالفنون (دارالامان) په سیمه کې د میرمنو سناتوریم افتتاح شو. د ښځو د غاښ جوړولو موسسه د کابل په ده

افغانانو کې پرانستل شوه او د دی موسسو مامورین او مستخدمین مقرر شول.

باید زیاته شی چې د روغتیا وزارت په مرکز کې یوه کتابخانه جوړه شوه.

د داخل بستر ناروغانو فیس کم کړی شو، د طبی مکتب دوهمه دوره فارغه او په ولایتونو وویشل شول. د هغو له جملی څخه دوه تنه د لوړو زده کړو په خاطر د طب په پوهنځی کې شامل او د نوی او عصری اکسریز د تورید د پاره اقدامات تر سره شول چې په راتلونکی کال کې وارد شی.

د ګرشک، بدخشان، کونړونو او اسمار په لویو حکومتونو کې صحیه ماموریتونه افتتاح شول، او د مستوراتو د روغتون د پاره المانی دوکتورس اوشو یستر (پرستار) استخدام شوه. په دې سنه کې د «د درمل خرڅولو د ملی افغان شرکت په نوم» د درمل خرڅولو یو شرکت د لب دریا د خیابان د نوی جادی په بازار کې چې د ښار یوه مرکزی نقطه شمیرل کیږی تاسیس شو.

د ۱۳۱۶ هغه مهمی پیښی د دی کال د کلیزی په ۶۶۶ مخ کې تری یادونه شوی ده په لاندې ډول دي:

☜ د عظمی صدارت په عمارت کې د دی کال د لیندی ۲۹ د سه شنبی په ورځ د طبی پوهنځی د فارغ التحصیلانو شهادتنامی وویشل شوی چې په دی هکله د مخه مفصل معلومات وړاندی شوی دی.

«لکه چې مخکی ورته اشاره وشوه زموږ په هیواد کې د جراحی عملیات په ابتدایی شکل اجرا کیدل او زیاترو سلمانیانو دا دندی په تیره بیا د سنت کولو وظیفی په غاړه درلودلی، چې د دی ستونزی د لیری کولو او عصری جراحۍ د ایجادولو په خاطر په ۱۳۱۷ کې یو تن ترکی جراح چې خپل تحصیلات یې په المان کې بشپړ کړی و استخدام شو»[۱].

دې دوکتور عصری جراحی په افغانستان کې رامنځ ته کړه، د جراحی ستاف په هغه وخت کې د درو تنو د طب د پوهنځی د فارغ التحصیلانو افغانی دوکتورانو څخه عبارت ؤ لکه دوکتور اسلم، دوکتور عظیم، دوکتور میر حسین او دوکتور کرام الدین چې د طب د دریم ټولګی

۱ - داکتر محمد نادر هادی، جراحی عمومی، ۱۳۶۴ ص۱ـ ۸

محصل و او په همدې ترتیب په دې ډله کې ترکی دوکتور فاروق بیګ هم شامل و.

د جراحی مختلفی شعبی لکه غوږ، اوستونی او سترګی چې تردی وخته پوری سره یو ځای وی یو د بل څخه جلا کړی شوی. په دې وخت کې مهم عملیاتونه لکه ګسترو انسترو ستومی اجرا کیدل.

همدارنګه په ۱۳۱۷ (۱۹۳۸) کال کې د امراض چشم په نوم یو کتاب چې شل فصلونه او ۷۸۷ مخونه لری په رنګه توګه د ترکی داکتر (دوقتور فواد اسمعیل طوغار) له خوا تالیف شوی او د وزارت معارف له خوا د کابل ښار په مطبعه عمومی کې چاپ شو دی. (دغه کتاب د دوچنت جنرال متین دیلی چې د ترکیی د ستردرستیز د روغتیایی چارو رئیس وو ماته په کال ۱۳۸۲ کې ډالی شوی دی - مولف، مومنی)

هغه موضوعات چې د نادری دولت او د محمد ظاهر شاه تر وخته پوری (۱۳۱۱-۱۳۱۸) نظام نامی خپری شوی وی په ۱۳۱۸ کال چاپ شول. همداشان د دی کال د وری د میاشتی په ۱۹ نیټه په افغانستان کې د درملتونونو اصولنامه د دری سوو ټوکو په تعداد چاپ شوه. دغه اصولنامه څلور فصله او دوه څلویښت مادی لری چې نمره یې ۳۰/۲۹ وه.

په دې اصولنامه کې ټول هغه مسایل طرح شوی وو چې د فارمسی مسلک له نظره د درملتونونو د خلاصولو، د درملتون کړنی او نورشیان پکې لیکل شوی و چې تر ډیری مودی پوری د تطبیق وړ وه.

د ډیرو کلونو په اوږدو کې، د اقتصادی شرایطو او د فنی د کادرونو د موجودیت په اثر د طبابت او درمل جوړولو په چارو کې نسبی پراختیاوی منځ ته راغلی دی.

د پوهنتون د ریاست په هکله باید وویل شی چې د طب پوهنځی د ۱۳۱۱ کال د عقرب په میاشت کې افتتاح او د هغه د تاسیس په لومړیو کلونو کې یعنی د ۱۳۲۵ کال د جدی تر میاشتی پوری د ۱۴ کلونو د پاره د طب د پوهنځی اداری او تدریسی چاری د ترکی پروفیسورانو له خوا اداره کیدلی.

خو په نوموړی نیټه فرانسوی پروفیسوران رویکار شول او د پروژی لایحه چې د وزیرانو د عالی مجلس د تصویب او د پاچا د منظوری په اساس د ۱۳۳۲ تر پای پوری یې لازم فعالیتونه تر سره کول مرعی الاجرا وه.

د وخت د ذیصلاح مقاماتو د ثوابدید له مخی پخوانۍ پروژه د جدی میاشت کې لغو او نوی لایحه رویکار شوه چې د دی په اساس د طب پخوانی

پوهنځی تجزیه شو او دوه ځانګړی ریاستونه چې یو یی د پوهنتون د روغتیایی موسساتو او بل یې د طب د پوهنځی د ریاست په نوم چې د ښځینه او نارینه پرستاری مکتب او د پوهنځی د لوست خونو برخه، لابراتوارونه، اداری او تدریسی دایری پکې شاملی وی تشکیل شو.

د طب د فاکولتی ریاست تر ۱۳۳۲ کال پوری ۱۵۴ تنه دوکتوران فارغ کړی دی. د دې کال د تلی میاشتی په وروستیو کې د ترکی د جمهوری حکومت څلور تنه پروفیسوران د طب د پوهنځی تعلیمی کرسۍ د اشغال د پاره استخدام شوی چې دوچنت ندار برکن د فارمکولوژی پروفیسور په دې جمله کې شامل وو.

د تشکیلاتو له نقطه نظره د مخکنیو کلونو په پرتله پراختیاوی په کې شته دی. خو د ټولو برخو یې یادونه شوی نه ده، چې دلته د ۱۳۳۳ کال د عامی روغتیا وزارت تشکیل په دې ډول و.

د روغتیا وزیر: ع،ج داکتر غلام فاروق

معین: ع،ص داکتر عبدالظاهر

د ملاریا د مجادلی رئیس: ع، ص داکتر عبدالرحیم

د پوهنی وزارت سرطبیب: ع سید غلام رضا او داکتران یې ص عبدالغنی او ص محمد یونس دی.

د پوهنی په وزارت کې په دې سنه کې ۱۲۹٦۸ تنه متعلمان او متعلمانی معاینه او تداوی شوی، د ۸۲۹۴ په شمیر متعلمین او متعلمانی د محرقی ضد واکسیناسیون، ۱۸۱۱ تنه پانسمان او ۲۴۱۹۲ تنه د پوهنی وزارت په روغتون کې معاینه، تداوی او معالجه شوی دی. او همداشان د ۱۱۲۵ تنو د پاره د ویتامین ګولۍ ورکړ شوی دی.

بل ریاست یې چې د روغتیایی (صحی) موسساتو په نامه بیل شوی دی چې د کالنی په ۲۱۰ مخ کې تری یادونه شوی ده د هغه په سرکې محمد عمر خان درمل جوړونکی وظیفه اجرا کوله.

په دې موسسه کې زرقی محلولات هم تهیه کیدل او د صحی موسساتو روغتونونو ته توزیع کیدل. دا ستره دواخانه د ریاست د ګردو روغتونونو سره کلی ارتباط درلود او د اړوندو څانګو د ضرورت وړ مواد له همدې دیپو څخه تهیه او تر اجرا لاندې نیول کیدل.

د ۱۳۳۳ کال د تلې په میاشت کې د روغتیا په وزارت کې د فنی محاسبې مدیریت په کار پیل کړی چې درمل او لوازم یې ولایتونو ته لیږلی دی.

د بلخی ابن سینا د درملو عمومي دیپو د ۱۳۳۳ کال لومړۍ څخه د یوې تجارتې موسسې په شکل تبدیل او د یوې ځانګړې اساسنامې په اساس چې د وزیرانو د عالی شورا له خوا تصویب او د پاچا له خوا صحه شوې وه د نوموړې موسسې په واک کې ورکړ شو چې اړوندې دندې اجرا کړې.

د فارمسۍ د چارو ریاست د خپل کار په پیل کې د درملو او طبي استهلاکي سامان آلاتو د تورید د پاره چې د وخت د عامې روغتیا پورې تړاو درلود په ۱۳۳۱ کې د درمل واکۍ په نوم مدیریت ایجاد کړ او ورو ورو یې د ضرورت له مخې په ۱۳۳۳ په لومړنۍ پانګې چې ۳۱ ملیونه افغانۍ کېدلې د درملو د عمومي دیپو په نوم د یوې دولتي بشپړې تصدۍ په صورت د وخت د عامې روغتیا وزارت تر اثر لاندې تغییر شکل وموند چې په هغه وخت کې دی تصدۍ د روغتونونو او دولتي روغتیایي څانګو د درملو طبي استهلاکي سامان آلاتو د اکمال وظیفه په غاړه درلودله.

دغه موسسه کې لاندې کمیټو فعالیت درلود:

الف: د موسسې عالی شورا له پنځو تنو څخه متشکله وه چې د عامې روغتیا وزیر د رئیس په توګه، د مالیې وزیر، د موسسې رئیس دوکتور عبدالظاهر، د صحی موسساتو رئیس دوکتور فقیر محمد شفا او همدارنګه د قوای مرکز د روغتون د جراحی دوکتور محمد قاسم عسکریار د غړو په توګه.

ب: د اداری مجلس: د ۱۳۳۳ کال د غبرګولی په میاشت کې یې غړی شپږ تنه مقرر شول.

ج: د نظار هئیت: په دې هئیت کې څلور تنه شامل وو، چې د ملی دفاع وزارت د عینیاتو مدیر دواساز ټولمیشر محمد یاسین هم په دې هئیت کې شامل و.

د معامله لرونکی کمپنی ګانو سره د درملو او صحی مالزمی تورید په هسی شان و چې د مشهورو کمپنیو سره به مفاهمه کیدله لومړی به یې د درملو او صحی مالزمی قیمت ځانته معلوماوه او بیایې د اداری مجلس تر تصویب وروسته د دیپو ګانو د ریاست د کمیت او کیفیت له مخې اجرات کول.

د موسسی په اداری تشکیل کې د پلټنی مدیریت، د خرڅلاو مدیریت، د تحریراتو ماموریت، د پانو ماموریت او د لابراتوار مدیریت شامل و.

دې موسسی په ۱۳۳۳ کې پنځه لکه دوه اتیا زره افغانۍ د بازار او خارج د خریداری په نسبت د زرقی محلولاتو له بابته ګټه ښودلی وه. چې ټول تولیدات یې په دې ډول وو:

- ګلوکوز سیروم ۲۰ سی سی شل فیصده ۸۰۰۰ امپول
- ګلوکوز سیروم ۵۰ سی سی پنځه فیصده ۲۰۰۰ امپول
- فزیولوژیک سیروم ۵۰۰ سی سی اته فی هزار ۸۰۰۰ بوتل
- د انتی بیوتیک او سلفامیدونو لګښت په ۱۳۳۳ کې په لاندې ډول محاسبه شوی دي:
  - ستریپتومایسین ۱۲ کیلو ګرام
  - پنسلین ۸۰۰۰ ملیون
  - ارومایسین ۲۵۰ ملی ګرامه ۳۰۰ بوتله
  - تیرامایسین ۲۵۰ ملی ګرامه ۲۵۰ بوتله
  - کلورمایسین ۲۵۰ ملی ګرامه ۱۵۰ بوتله
  - سلفامید تابلیت ۲۰۰۰۰۰ دانی
  - سلفامید امپول ۴۰۰۰۰ دانی

پر دې برسیره یوه زیاته اندازه ویتامینونه، هورمونونه او نور چې له بهر څخه تورید شوی و هم مصرف شوی دی.

له ۱۳۳۰-۱۳۳۳ پورې د ادویی د دیپو ریاست دوه لوی تعمیرونه یویی د میوند د جادی په لومړۍ برخه کې د سردار محمد هاشم خان د ادویه فروشی په نوم او بل یې چې د ادویی د دیپو ریاست الحاقیه وه (د څلورمی کارتی درملتون) تکمیل شوی وو.

په دې درملتونونو کې د هغو د تاسیس له وخته تر اوږدو کلونو پورې د ترکیبی درملو زیات اقلام جوړشوی دی. په دې ودانیو کې چې پراخه ساحه یې درلودله او ټول هغه موازین او مقررات چې د یوه درملتون د پاره لازم دی په نظر کې نیول شوی وو.

افغانستان د یوه هغسې اقلیم درلودونکی دی چې د حاری، مدیترانی اوو چې سیمی نباتات پکې راټو کیدلی او د افغانستان طبی نباتات له یوه پلوه ډول ډول دی او د بلې خوانه د ښه کیفیت درلودونکی دی، نو له دی امله د طبی نباتاتو صادارت د سوادګری د عمده اقلامو څخه ګڼل کیږی. د نمونی په ډول د ۱۳۳۵ کال د جدی د میاشتی د اردو د مجلی کالنی کتلای شو چې د افغانستان د مختصری جغرافیه د موضوع په ۱۹ مخ کې یې انعکاس موندلی دي[۱].

په دې برخه کې د افغانستان د صادراتو او وارداتو په هکله داسی نظر اچول شوی دی.

**صادرات:**

درمل او طبی نباتات: له دې ډول نباتاتو او درملو څخه له بدخشان، جلال آباد او هرات څخه تریاک، شیرخشت او ترنجبین، له هرات څخه هنګ (انجه)، له شمالی ولایتونو څخه د کابل په لار صادریږی.

پردې برسیره غرني خود رویه نباتات او بوټی چې د خلکو له خوانه راټولیږی او بهرته لیږل کیږی. په دې وروستیو کې (۱۳۳۵) د همدې منظور د پاره «د بوټو شرکت» په نوم یو شرکت تاسیس چې د اداری مرکز یې په کابل کې دی.

**واردات:** آلات، طبی او کیمیاوی درمل، له انګلستان، المان، فرانسی، جاپان، امریکا او نورو څخه واردیږی.

لکه چې مخکې یادونه شوی چې د درمل جوړولو کورسونو او ښوونځیو ډیر کلونه دوام درلود ترڅو چې په کال ۱۳۳۸ کې د کابل د طب پوهنځی په ځنګ کې د لومړنی پنځه کلن پلان د تطبیق په خاطر چې د هغه وخت دولت لسانسه فارمسستانو ته مبرم ضرورت درلود، د فارمسی پوهنځی تاسیس شو.

پوهنځی د لاندې اهدافو د سرته رسولو په موخه تاسیس شو:

۱- په عصری، علمی او تخنیکی اصولو د درملو په تورید، تولید، توزیع او کنترول کې فعاله برخه اخستل.

---

۱ ـ سالنامه صحیه اردو ماه جدی سال ۱۳۳۵ ص-۱۹

۲- د دولتی، روغتونونو، ښاری روغتونونو او نورو موسساتو مسلکی او فنی چارو پرمخ بیول.

۳- د ناروغیو د تشخیص د لارښوونی او مرستی په خاطر د بیولوژیکی موادو تجزیه او تحلیل، باکترلوژیکی معاینات، میکروبیولوژی او پرازیتی لابراتوارونو کې فنی او مسلکی چاری پرمخ بیول.

۴- په لابراتوارونو کې د غذایی موادو، سمی، معدنی او طبی اوبو د عامی روغتیا له نظره تجزیه کولو کې فعالیت.

۵- د هېواد طبی بوټو مطالعه او ښی عرضی او بهره برداری طریقی لټول چې په نیتجه کې د هېواد د ملی اقتصاد تقویه کولو په خاطر د بوټو فعال پرنسیبونه استخراج او د طبی بوټو صنایع منځ ته راوړل.

پوهنځی د طبی بوټو، فارمسوتیک، میکروبیولوژی، توکسیکولوژی، تحلیلی او عضوی کیمیا، بیوشیمی او تغذی، فارمسوتیک او میکروبیولوژی دیپاتمنتونو څخه عبارت و.

لومړی دوره فارغان یې په کال ۱۳۴۱ کې صورت موندلی او د ۱۳۸۱ کال تر آخره پوری (جنوری ۲۰۰۳) ۱۷۶۴ تنه فارغان یې ټولنی ته وړاندی کړی دی.

په دې پوهنځی کې برسیره پر افغانی هلکانو او نجونو فلسطینی، ایرانی، عراقی او د دیوریند د کرښی پوری غاړه محصلینو تحصیل کړی دی.

که چیرته په فشرده توګه د عامی روغتیا وزارت دندی وشمیرو هغه عبارت دی د روغتونونو د شبکو له تاسیس، د سناتوریمو د تاسیس، حفظ الصحوی تبلیغات، او د طبیبانو او طبی منځنی پرسونل روزنه او استخدام دی.

مونږ دلته د پورتنی موضوع په اړوند د افغانستان د طبابت او فارمسی منظره تر سیموو «په افغانستان کې د پنځلسو ملیونو د عامی روغتیا تر نظر لاندې د ۱۳۴۰ (۱۹۶۱م) د رسمی احصائیی مطابق د ۵۹ روغتونونو، پنځو زایشګاوو، د توبرکلوز د پنځو سناتوریمونو، ۱۹ لابراتوارونو، ۱۸ اکسریز، ۱۵۷ درملتونونو، ۲۱۱۱ بسترو، ۲۵۰

داکترانو، ۶۹ معاون داکترانو (روغتیا پالانو) په واسطه مراقبت او تداوی کیږي»[1].

دلته د ځنی نورو هېوادونو په پرتله ګورو چې یو طبیب د څومره وګړو په خدمت کې دی:

- هر طبیب د روغتیا پالانو (معاون طبیب) په شمول د هېواد ۵۰۰۰۰ تنو ته رسیږی
- په پاکستان کې هر طبیب ته ۱۴/۸ زره تنه
- په ایران کې هر طبیب ته ۸/۶ زره تنه
- په هندوستان کې هر طبیب ته ۴/۹ زره تنه
- په ترکیه کې هر طبیب ته ۴۰۰۰ تنه

د افغانستان ټول روغتیایی فنی پرسونل ۱۳۰۰ تنه دی.

د عامې روغتیا وزارت بودجه په کال ۱۳۴۰ کې ۹۶ ملیونه افغانی وی او د صحی موسساتو ریاست بودجه ۲۰/۴ ملیونه افغانی وی.

د هېواد عمومی مصارف پنځه ملیارده او دری دیرش ملیونه افغانی وی چې د هغه جملې څخه عمومی صحت ته ۲/۶۳ فیصده مصارف په کال ۱۳۴۰ کې منل شوی وو.

د بهرنۍ سوداګری په هکله باید وویل شی چې دغلی د تهیې موسسات، د درملو دیپو، د دولتی انحصاراتو ریاست شرکت او ټولو موسسو زیاتره په تجارت کې د دولت لاس دخیل ساتلی دی.

د میوو، غالیو، غوړی درلودونکو حبوباتو، طبی نباتاتو، لرګو او داسی نورو صادریدل چې د دولتی پانګی په ګډون په شخصی خصوصی شرکتونو پوری مربوط دی ترسره کیږی.

له ۱۳۴۰ کال د مخه د کولمو صادراتی ګمرکی تعرفه پنځه فیصده او د طبی نباتاتو دیرش فیصده وه طبی نباتات تر ۲۰۰۰ ټنو پوری هند او ایران ته او د هنګ یوکم مقدار چین ته صادریدل، د افغانستان د وارداتی مالونو عمده صنایع په کال ۱۳۴۰ کې درمل او طبی سامان آلات د غربی اروپا هېوادونو څخه وو.

---

۱ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، کابل ۱۳۴۶ مطبعه دولتی ص-۱۶

څرنګه چې زمونږ په وطن فارمکوپیا (کودکس) نشته او د دی د پاره چې درمل صرف د سوداګرۍ د مالونو په توګه کتل شوی نه وی او درمل د دی د پاره چې د درملنی او د ناروغیو د مخنیوی د پاره اغیزمنه شوی وی او تجارتی جنبی یې په نظر کې نه وی په همدې منظور په کال ۱۳۴۵ د عامی روغتیا وزارت د پوهنتون د صحی موسساتو او د ملی دفاع وزارت د استازو څخه یوه مرکبه کمیټه تشکیله شوه چې په مملکت کې د تولیدی او توریدی درملو اقلام مطالعه شی. هماغه و چې نوموړی کمیټی افغان لومړنی فورمولیر تدوین کړ او له درو تر پنځو کلونو تر تیریدلو پوری یې دا هدف تعقیب کړی دی.

تر ۱۳۵۲ کال پوری په فورمولیر کې عمدتاً پتنت درمل شامل و ترڅو چې په همدې کال د جنریک درملو روحیه منځ ته راغله او وروستی فورمولیرونه په همدغه روحیه تدوین او طبع شول چې اوم طبع یې په کال ۱۳۸۶ وطنوالو ته وړاندی شو.

د نړۍ روغتیایی اداری په کال ۱۳۵۵ کې اعلان وکړ چې د کوی (چیچک) ناروغی په کلی توګه له منځه تللی ده.

## د جمهوریت څخه تر لنډ مهالی دوری پوری د افغانستان طبابت

محمد داود خان د صدارت او هم د جمهوریت په دوره کې د افغانستان روغتیایي حالت ته پراختیا ورکړه او په ولسوالیو کې د روغتیایی مرکزونو تعداد زیات شو.

هغه ډیر مهم کار چې د عامی روغتیا او د مسلحو قواو د روغتیا په برخه کې صورت موندلی د جمهوریت روغتون بنسټ کیښودل او د اردو مرکزی روغتون (۴۰۰ بستر) پرانیستل وو. دغه دواړه روغتونونه د هغه وخت ډیر مختللی طبی سامان آلات او تخنیک سره مجهز شوی وو.

د روغتونونو د تاسیس له مخی ویلای شو چې په کابل او ولایتونو کې روغتونونه موجود و او حتی تر ۱۳۵۷ کال د مخه هیڅ یوه داسی ولسوالۍ نه وه چې اساسی صحی مرکزونه او حتی ځینی فرعی مرکزونه نه درلودل. چې په ګردو روغتونونو او صحی مرکزونو کې د تحصیلی مختلفو سویو درلودونکو طبی کارکوونکو فعالیت درلود او درملتونونه په دې موسسو کې پرانستل شوی وو.

خو بیا هم ویلای شو چې افغانستان د صحی خدمتونو د عرضه کولو له مخی په ډیره ټیټه سطحه کې موقعیت درلود. لکه چې د ملګرو ملتونو د امارو په اساس افغانستان په ۱۳۵۴ کال د صحی خدماتو له مخی په نړۍ کې ۱۱۹ مقام نیولی و.

دلته د ۱۳۵۶ کال په اړوند یو شمیر ارقام چې (موفقیت مردم افغانستان) په مقاله کې چاپ شوی دی نقل کیږی:

☜ د طب د دوکتورانو شمیر ۸۸۶ تنه

☜ د فارمسستانو شمیر ۱۲۸ تنه

☜ د دولتی درملتونونو شمیر ۴۲ بابه

☜ د روغتونونو شمیر ۵۴ بابه

☜ د بسترو شمیر ۳۱۹۵ پایی

☜ د اساسی صحی مرکزونو شمیر ۱۴۸ باب

☜ د فرعی مرکزونو شمیر ۷۵ بابه

☜ د دولتی لابراتوارونو شمیر ۱۶۰ بابه

☜ د کورنیو د لارښوونو انجمنونو کلنیکونو شمیر ۴۲ بابه

☜ د مور او ماشوم حمایی د مرکزونو شمیر ۱۲ بابه

☜ د غاښونو کلنیکونو ۵۲ بابه

☜ د وینی د بانک نمایندگی ۱۲ بابه

د ۱۳۵۷ احصائیه دا ښئ چې د داکترانو تعداد ۸۸۶ تنه دی چې د هېواد د نفوس په پرتله یو داکتر ۱۷۰۰۰ تنو ته تصادف کوی. همدارنګه ۹۹۷ تنه نرسان موجود وو چې یو نرس ۱۵۰۰۰ تنو ته تصادف کوی.

که چیرته د ۱۳۵۷ کلونو را وروسته نظر واچول شی متأسفانه لکه ځنګه چې د ټولنی انسانی ځواک. مادی او معنوی نیرو د وحشیانه ګوزارونو لاندې راغله «په تیره بیا د شوروی د پوځی مداخلی راوروسته چې د افغانستان جنګ زور واخیست او سراسری شکل یې ونیو چې د دوو ملیونو انسانانو د له منځه تللو، یو ملیون معیوبینو، د پنځه ملیونو او ارګانو ګاونډیو هېوادونو ته باعث شو» دوی ځان له نه وو بلکې طبی او فارمسی مستعد کادرونه هم له کاره ګوښه شول او ځینی زندان ته واچول شول.

د دې جګړې څخه را پیدا شوی زیانونه ۴۸ روغتونونه او ۱۱۷ صحی مرکزونه دی د دی ناخوالو با وجود د طب د ودی او تکامل ساه په چلیدلو کې وه.

که چیرته تر ۱۳۵۷ کال را وروسته کلونو کې د طب پراختیا په فشرده ډول ارزیابی کړو ویلای شو:

☜ د دولتی شبکو، روغتونونو، کلینیکونو، درملتونونو، د طبی لومړنیو مرستو مرکزونو او همداشان د ښاریانو او د کلیو د اوسیدونکو د وړیا درملنی په خاطر د لازمو زمینو د برابرولو چې ناځیز عواید لری د هراړخیزی ودی او پراختیا لپاره کومکونه او د ۱۳۶۰-۱۳۶۴ کلونو په اوږدو کې د روغتونونو د بسترو شمیر ۳۲%، د داکترانو شمیر تقریباً دوه مراتبه زیاتښت موندلی دی[1].

☜ د دولتی د سرتاسری او همګانی سیستم ایجاد، د مامورینو او مستخدمینو د پاره د صحی بیمی، د دولتی سیستم وده، د زړو او معلولینو او متقاعدینو لپاره ټولنیز تامینات.

☜ د کار مصئونیت د ساتنی د سیستم، د مور او ماشوم د حمایی د سیستم او د وړکتونونو او شیر خوار ګاوو د سیستم ایجاد.

☜ د طبی لوړو زده کړو په باب باید وویل شی چې په منځنی ډول هر کال له ۱۵۰ تنو داکترانو څخه زیات ټولنی ته وړاندی شوی دی.

لکه چې په ۱۳۶۴ کې ۱۸۹۶ تنه محصلین د طب په پوهنځی کې او ۶۸۲ تنه د ننګرهار د طب په پوهنځی کې په زده کړه لګیاوو.

☜ د مرکز په روغتونونو کې د جراحۍ او داخله په څانګو کې تخصصی تربیوی پروګرامونه په تیره بیا د جمهوریت په روغتون، د سلو بسترونو په حجم د ابن سینا د عاجل روغتون فعالیدل، د کندهار په ولایت کې ۱۰ بستری، په هرات کې ۴۰ بستری د نور د څانګو ایجادیدل. د انداراګاندی روغتون (د ماشوم د روغتیا موسسی) پراختیا ۲۵۰ بسترو ته، د فزیکی معیوبونو د

---

۱ - پلان گذاری علمی اقتصاد ملی و جهات اساسی رشد اقتصاد ملی – اجتماعی ۱۳۶۵-۱۳۶۹ ص-۱۵

پاره د سل بستریز روغتون ایجاد په مرکز کې، د ۴۰ بسترو په ظرفیت په ننګرهار کې، په بدخشان کې د معتادینو د پروژی ایجاد، په رحمن مینه، خیرخانه مینه کې د ۵۰۰ تنو په قبلولو د مستقلو پولی کلنیکونو پرانستل او همداشان د ورته کلنیکونو پرانستل د قندهار په ښار کی، د ۶۰۰ لیترو وینی په ظرفیت د وینی د مرکزی بانک فعال کیدل، په ورځ کې د ۶۰۰ ناروغانو پرمنلو د ښار مرکزی کلنیک پرانستل او د هرات دوه سوه بستریز حوضوی روغتون تاسیس کیدل.

- ☜ د اساسی صحی مرکزونو شمیر ۱۵۷ او د فرعی ۱۳۲ بابو ته زیاتښت موندلی دی.
- ☜ د کندز د روغتون د بانک د وینی عمارت، مرکزی پولی کلنیک، د ماشوم د روغتیا روغتون، نسایی ولادی روغتون او د ستونی اوغوږ و روغتون د ودانیو لپاره د مرستو جلبول.
- ☜ د سلو ماشومانو په ګنجایش په کارګری قصبه کې د ۲۵۰ ماشومانو د پاره په خوشحال مینه کې د ۲۵۰ ماشومانو لپاره په خیرخانه او د کابل د ښار په نورو سیمو کې په تیره بیا د ښار په موسساتو او فابریکو کې وړکتونونو ایجادول.

په لاندې جدولونو کې یو لړ ارقام په ۱۳۶۴ کې وړاندی کیږي:

- ➢ د طب د دوکتورانو شمیر ۱۱۵۰ تنه
- ➢ د فارمسستانو شمیر ۲۶۴ تنه
- ➢ روغتونونو شمیر ۶۴ بابه
- ➢ دولتی درملتونونه شمیر ۵۳ بابه
- ➢ بستری شمیر ۴۷۰۶ پایی
- ➢ اساسی صحی مرکزونه شمیر ۱۵۷بابه
- ➢ فرعی صحی مرکزونه شمیر ۱۲۲ بابه
- ➢ د انجمن رهنمای خانواده کلنیکونه شمیر ۴۹ بابه
- ➢ د مور او ماشوم د حمایی مرکزونه ۲۰ بابه
- ➢ د غاښونو کلنیکونه شمیر ۵۸ بابه

- د وينی د بانک نمايندگی شمير ۲۰ بابه

په متوالی ډول د بسترو شمير په لاندې ډول دي:

- په ۱۳۵۵ کال کې ۲۸۶۷
- په ۱۳۵۶ کال کې ۳۱۹۵
- په ۱۳۵۷ کال کې ۳۲۳۷
- په ۱۳۵۸ کال کې ۳۹۴۴
- په ۱۳۵۹ کال کې ۴۰۴۰
- په ۱۳۶۰ کال کې ۴۳۰۸
- په ۱۳۶۱ کال کې ۴۳۰۸
- په ۱۳۶۲ کال کې ۴۴۲۱
- په ۱۳۶۳ کال کې ۴۷۱۶

په لاندې جدول کې د روغتونونو او د هغو د بسترو پراختيـــا او تيتوالی له ۱۳۶۴-۱۳۶۷ کلونو پوری تر ارزيابی لاندې نيول کيږي

| گڼه | د روغتون نوم | د ۱۳۶۴ کال د بسترو شمير | د ۱۳۶۷ کال بسترو شمير |
|---|---|---|---|
| ۱ | وزير اکبر خان | ۲۵۰ | ۲۵۰ |
| ۲ | جمهوريت | ۲۵۰ | ۳۰۰ |
| ۳ | ملالی زيږنتون | ۲۷۰ | ۳۷۰ |
| ۴ | صدری کلنيک | ۸۰ | ۹۰ |
| ۵ | موسسه نور (چشم) | ۱۱۵ | ۱۲۴ |
| ۶ | صحت طفل اندراگاندي | ۲۵۰ | ۳۰۰ |
| ۷ | د ماشومانو دولتی روغتون (اتاترک) | ۱۱۰ | ۱۳۰ |
| ۸ | د ميرمنو سناتوريم | ۷۵ | ۷۰ |
| ۹ | عاجل روغتون | ۱۳۰ | ۱۱۱ |
| ۱۰ | ساری روغتون | ۱۴۰ | ۱۲۰ |
| ۱۱ | علی آباد روغتون | ۵۸۸ | ۶۲۱ |
| ۱۲ | ميوند روغتون | ۳۵۰ | ۳۱۶ |
| ۱۳ | ستوماتولوژي | ۱۵ | ۱۵ |
| ۱۴ | احيای مجدد | ۱۰۰ | ۱۰۰ |
| ۱۵ | پغمان | ۱۰ | ۱۰ |
| ۱۶ | ميربچه کوټ | ۱۰ | ۰ |

| ګڼه | د روغتون نوم | د ۱۳۶۴ کال د بسترو شمير | د ۱۳۶۷ کال بسترو شمير |
|---|---|---|---|
| ۱۷ | صحت رواني | ۱۰۰ | ۰ |
| ۱۸ | چاريکار | ۳۰ | ۴۰ |
| ۱۹ | کاپيسا | ۱۰ | ۰ |
| ۲۰ | غزني | ۴۰ | ۴۰ |
| ۲۱ | ګرديز | ۲۰ | ۲۰ |
| ۲۲ | خوست | ۴۵ | ۴۵ |
| ۲۳ | جاجي | ۱۰ | ۰ |
| ۲۴ | چمکني | ۲۰ | ۰ |
| ۲۵ | کټواز | ۱۰ | ۰ |
| ۲۶ | ارګون | ۱۵ | ۰ |
| ۲۷ | شرن | ۱۰ | ۰ |
| ۲۸ | جلال آباد | ۴۰۰ | ۴۰۰ |
| ۲۹ | شينوار | ۱۰ | ۵۰ |
| ۳۰ | صحت دماغی | ۶۰ | ۶۰ |
| ۳۱ | ميترلام | ۲۰ | ۲۰ |
| ۳۲ | اسد آباد | ۲۰ | ۲۰ |
| ۳۳ | فيض آباد | ۳۰ | ۳۰ |
| ۳۴ | تخار | ۲۰ | ۱۰ |
| ۳۵ | رستاق | ۱۰ | ۷۵ |
| ۳۶ | بغلان | ۶۰ | ۱۰ |
| ۳۷ | پلخمری | ۱۰ | ۱۰ |
| ۳۸ | قندوز | ۱۵ | ۲۰ |
| ۳۹ | خان آباد | ۲۰ | ۲۰ |
| ۴۰ | دشت ارچی | ۲۰ | ۲۰ |
| ۴۱ | سمنګان | ۳۰ | ۴۰ |
| ۴۲ | د بلخ ولسوالی | ۱۰۵ | ۱۴۰ |
| ۴۳ | شبرغان | ۲۵ | ۲۵ |
| ۴۴ | آقچه | ۲۰ | ۲۰ |
| ۴۵ | ميمنه | ۳۰ | ۶۰ |
| ۴۶ | اندخوی | ۲۰ | ۲۰ |
| ۴۷ | قلعه نو | ۲۰ | ۲۰ |
| ۴۸ | بالا مرغاب | ۱۰ | ۱۰ |
| ۴۹ | هرات | ۲۰۰ | ۲۴۰ |
| ۵۰ | غوريان | ۱۰ | ۰ |
| ۵۱ | نور هرات | ۴۰ | ۴۰ |
| ۵۲ | شيندند | ۱۰ | ۱۰ |
| ۵۳ | فراه | ۳۰ | ۵۰ |

| ګڼه | د روغتون نوم | د ۱۳۶۴ کال د بسترو شمیر | د ۱۳۶۷ کال بسترو شمیر |
|---|---|---|---|
| ۵۴ | نیمروز | ۲۰ | ۵۰ |
| ۵۵ | هلمند (بست) | ۹۰ | ۱۰۰ |
| ۵۶ | قندهار | ۲۶۰ | ۲۶۰ |
| ۵۷ | قلات | ۲۰ | ۲۰ |
| ۵۸ | ارزګان | ۲۰ | ۳۰ |
| ۵۹ | چغچران | ۲۰ | ۳۰ |
| ۶۰ | بامیان | ۵ | ۱۵ |
| ۶۱ | میدان وردګ | ۱۰ | ۰ |
| ۶۲ | د جلریز جذام | ۸ | ۰ |

د طب د کارمندانو په لومړنۍ کنګره کې (۱۳۵۹ جوزا) د فارمسی د مرستو د عرضی د بهبود او د دولتی د درملتونونو د شبکی د پراختیا په برخه کې د فارمسی د چارو رئیس پوهاند دوکتور سید الف شاه غضنفر پنځه کلن پلان په درو مادو کې خلاصه کړ.

۱- په مرکز، ولایتونو او ولسوالیو کې د دولتی درملتونونو تاسیس.

۲- د بلخ، قندهار، بغلان، پکتیا، هرات او ننګرهار په ولایتونو کې په عمده ډول د درملو د خرڅولو د مرکزونو تاسیس.

۳- په هغو صحی مرکزونو کې چې دولتی عصری ودانۍ لرې د بلخی ابن سینا د درمل پلورلو د ځانګو پرانستل.

تر کومه ځایه چې اسناد لاس ته راغلی د فارمسی د چارو ریاست او خصوصی سکتور د درملی موادو پلورل او پیرودل او درملتونونو تعداد په لاندې ډول دي:

په ۱۳۵۶ کال کې دری بابه دولتی درملتونونه په کابل او ۱۵ بابه په ولایاتو کې موجود وو چې دا ارقام په ۱۳۵۹ کې په کابل کې ۱۵ بابه او په ولایاتونو کې ۳۳ بابه چې له دی جملې څخه ۱۱ بابه په روغتیایی مرکزونو او ولسوالیو کې موجود وو.

## الف: د دولتی سکتور په بخش کې

۱- د دولتی سکتور په واسطه د درملو تولید

| ګڼه | شاخصونه | پلان | د پلان تطبیق | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | په ۱۳۵۷ کال کې | - | ۸۸۷۹۵۲۵۹ | |
| ۲ | په ۱۳۵۸ کال کې | - | ۱۱۹۹۳۵۶۲۴ | |
| ۳ | په ۱۳۵۹ کال کې | - | ۱۲۱۵۶۸۵۹۳ | |
| ۴ | په ۱۳۶۰ کال کې | ۱۱۱۸۵۲۵۹۶ | ۵۷۴۱۷۱۴۰ | |
| ۵ | په ۱۳۶۱ کال کې | ۶۲۵۸۶۱۸۰ | ۵۲۵۶۲۷۱۹ | |
| ۶ | په ۱۳۶۲ کال کې | ۹۶۷۳۲۱۱۰ | ۱۰۲۸۰۴۷۱۵ | |
| ۷ | په ۱۳۶۳ کال کې | ۱۲۹۶۴۳۶۵۰ | ۱۳۳۸۱۶۲۰۸ | |
| ۸ | په ۱۳۶۴ کال کې | ۱۲۸۶۴۱۸۴۵ | ۱۴۷۳۲۶۵۲۹ | |
| ۹ | په ۱۳۶۵ کال کې | ۱۵۲۹۰۸۴۵۰ | ۱۶۹۳۳۹۷۴۵ | |
| ۱۰ | په ۱۳۶۶ کال کې | ۱۷۴۶۶۴۱۵۰ | ۲۱۶۷۶۹۴۷۲ | |
| ۱۱ | په ۱۳۶۷ کال کې | ۲۴۴۱۹۹۴۵۰ | ۲۲۰۸۱۵۱۰۹ | |
| ۱۲ | په ۱۳۶۸ کال کې | ۲۴۹۷۳۷۳۳۰ | ۰۳۱۰۴۶۳۴2 | |
| ۱۳ | په ۱۳۶۹ کال کې | ۲۵۲۶۳۸۹۱۰ | ۱۹۹۷۶۷۰۸۶ | |

۲- د دولتی سکتور په واسطه د درملو او ځینی طبی استهلاکی تجهیزاتو تورید

| ګڼه | شاخصونه | پلان | حقیقی اجرأت | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | په ۱۳۵۷ کال کې | - | ۱۴۵۳۰۷۸۱۹ | |
| ۲ | په ۱۳۵۸ کال کې | - | ۳۴۳۷۱۸۸۲۲ | |
| ۳ | په ۱۳۵۹ کال کې | - | ۵۱۹۸۹۶۹۸۴ | |
| ۴ | په ۱۳۶۰ کال کې | ۲۴۵۸۱۵۰۰۰ | ۱۲۵۳۸۱۷۳۴ | |
| ۵ | په ۱۳۶۱ کال کې | ۲۸۴۰۶۰۰۰ | ۷۴۰۰۰۰۰۰ | |
| ۶ | په ۱۳۶۲ کال کې | ۳۵۵۲۶۸۰۰۰ | ۳۷۲۶۹۷۲۱۴ | |
| ۷ | په ۱۳۶۴ کال کې | ۴۴۲۲۱۲۰۰۰ | ۲۶۱۰۰۴۰۵۲ | |
| ۸ | په ۱۳۶۵ کال کې | ۵۰۲۳۳۴۰۰۰ | ۵۴۰۷۱۱۳۵۶ | |
| ۹ | په ۱۳۶۶ کال کې | ۶۸۸۹۰۰۰۰۰ | ۷۸۲۳۳۹۲۰۲ | |
| ۱۰ | په ۱۳۶۷ کال کې | ۶۹۰۰۰۰۰۰۰ | ۷۹۸۰۷۶۵۷۷ | |
| ۱۱ | په ۱۳۶۸ کال کې | ۸۰۰۶۰۵۰۰۰ | ۸۰۱۰۰۰۰۰۰ | |
| ۱۲ | په ۱۳۶۹ کال کې | ۱۰۰۹۴۵۸۰۰ | ۲۲۰۳۳۶۱۴۹۱ | |

۳- د دولتی سکتور په واسطه د درملو او ځینی طبی ملزمو عرضه

| ګڼه | شاخصونه | پلان | حقیقی اجرأت | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | په ۱۳۵۷ کال کې | - | ۳۲۹۳۶۳۰۷۱ | |
| ۲ | په ۱۳۵۸ کال کې | - | ۳۲۲۰۹۱۴۱۳ | |
| ۳ | په ۱۳۵۹ کال کې | - | ۴۱۳۹۴۷۶۷۰ | |
| ۴ | په ۱۳۶۰ کال کې | ۴۰۸۰۶۸۰۰۰ | ۳۱۱۹۵۴۲۶۴ | |
| ۵ | په ۱۳۶۱ کال کې | ۳۷۳۳۱۰۰۰۰ | ۳۷۵۳۷۱۳۷۸ | |
| ۶ | په ۱۳۶۲ کال کې | ۴۹۰۳۷۰۰۰۰ | ۵۴۹۲۱۵۶۷۳ | |
| ۷ | په ۱۳۶۳ کال کې | ۵۷۰۳۶۰۰۰۰ | ۶۴۵۶۴۴۴۱۲ | |
| ۸ | په ۱۳۶۴ کال کې | ۶۶۰۶۶۲۰۰۰ | ۷۲۲۵۳۱۹۸۶ | |
| ۹ | په ۱۳۶۵ کال کې | ۷۴۴۹۵۰۰۰۰ | ۸۷۹۹۱۲۳۳۷ | |
| ۱۰ | په ۱۳۶۶ کال کې | ۹۰۳۱۵۸۰۰۰ | ۱۱۰۹۷۶۰۱۷ | |
| ۱۱ | په ۱۳۶۷ کال کې | ۹۸۰۰۰۰۰۰۰ | ۱۲۱۴۹۸۸۹۹۶ | |
| ۱۲ | په ۱۳۶۸ کال کې | ۱۱۲۱۲۵۰۰۰ | ۱۷۸۰۴۸۵۸۶۶ | |
| ۱۳ | په ۱۳۶۹ کال کې | ۱۴۱۳۷۵۰۰۰۰ | ۲۰۱۴۷۳۸۸۳۹ | |

**ب: د خصوصی سکتور په برخه کې**

۱- د افغانستان د هوخست په سهامی شرکت کې تولید.

د افغانستان د هوخست فابریکه په ۱۳۵۱هـ.ش په ۱۰۳ ملیونه افغانیو دورانی پانګی چې ۴۹% المان او ۵۱% افغانستان تشکیلوله، تاسیس شوی دی. په دې فابریکه کې له پنځوس قلمونو زیات درمل تولید شوی چې کلنی فعالیت یې په اوسنی وخت کې دری ملیارده افغانی کیږی. دا موسسه د ۱۳۷۰هـ.ش د جدی تر میاشتی پوری یو اعشاریه څلور ملیارده افغانی فروشات درلودلی دی. دا فابریکه د عصری فابریکو څخه ده چې په نیمه اتومات او اتومات دستګاو باندې فعالیت کوی او درملی مواد یې لوړ کیفیت لری.

| گڼه | شاخصونه | پلان | حقیقی اجرأت | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | په ۱۳۵۷ کال کې | ۲۲۵۰۰۰۰۰۰ | ۲۹۷۲۶۶۱۵۲ | |
| ۲ | په ۱۳۵۸ کال کې | ۳۳۰۰۰۰۰۰۰ | ۲۸۵۷۵۹۱۵۴ | |
| ۳ | په ۱۳۵۹ کال کې | ۳۸۵۰۰۰۰۰۰ | ۳۵۰۰۱۶۳۵۵ | |
| ۴ | په ۱۳۶۰ کال کې | ۴۶۰۰۰۰۰۰۰ | ۴۱۸۳۰۷۲۸۲ | |
| ۵ | په ۱۳۶۱ کال کې | ۵۵۰۰۰۰۰۰۰ | ۴۹۲۲۷۱۹۱۵ | |
| ۶ | په ۱۳۶۲ کال کې | ۵۵۰۰۰۰۰۰۰ | ۴۹۳۴۱۶۰۷۵ | |
| ۷ | په ۱۳۶۳ کال کې | ۵۵۰۰۰۰۰۰۰ | ۴۴۶۷۷۰۳۶۰ | |
| ۸ | په ۱۳۶۴ کال کې | ۷۵۰۰۰۰۰۰۰ | ۶۴۸۴۱۷۱۰۷ | |
| ۹ | په ۱۳۶۵ کال کې | ۷۵۰۰۰۰۰۰۰ | ۶۲۵۹۰۶۳۹ | |
| ۱۰ | په ۱۳۶۶ کال کې | ۷۵۰۰۰۰۰۰۰ | ۷۳۰۹۰۴۲۱۹ | |
| ۱۱ | په ۱۳۶۷ کال کې | ۸۰۰۰۰۰۰۰۰ | ۶۹۹۷۲۶۸۷۱ | |
| ۱۲ | په ۱۳۶۸ کال کې | ۸۰۰۰۰۰۰۰۰ | ۶۷۴۵۵۶۷۵۷ | |
| ۱۳ | په ۱۳۶۹ کال کې | ۱۸۰۰۰۰۰۰۰ | ۱۳۴۸۰۰۰۰۰ | |

۲- د صدیق لابراتوار تولید

| گڼه | شاخصونه | پلان | حقیقی اجرأت | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | په ۱۳۵۷ کال کې | ۱۲۸۴۲۰۰۰ | ۸۵۴۱۱۸۵ | |
| ۲ | په ۱۳۵۸ کال کې | ۱۱۵۲۳۰۰۰ | ۴۴۷۷۵۲۸ | |
| ۳ | په ۱۳۵۹ کال کې | ۹۵۳۲۶۰۰ | ۴۳۴۳۱۰۹ | |
| ۴ | په ۱۳۶۰ کال کې | ۹۸۲۴۱۰۰ | ۶۲۸۸۷۲۶ | |
| ۵ | په ۱۳۶۱ کال کې | ۸۳۸۲۰۰۰ | ۸۱۲۰۶۵۰ | |
| ۶ | په ۱۳۶۲ کال کې | ۹۸۲۶۰۰۰ | ۷۹۷۰۴۵۵ | |
| ۷ | په ۱۳۶۳ کال کې | ۹۹۵۱۴۰۰ | ۹۰۴۸۹۵۶ | |
| ۸ | په ۱۳۶۴ کال کې | ۹۹۸۷۰۰۰ | ۱۰۹۴۲۶۳۷ | |
| ۹ | په ۱۳۶۵ کال کې | ۱۰۵۷۶۳۰۰ | ۱۳۲۶۴۴۷۵ | |
| ۱۰ | په ۱۳۶۶ کال کې | ۱۱۴۹۶۷۰۰ | ۱۲۴۵۲۶۰۰ | |
| ۱۱ | په ۱۳۶۷ کال کې | ۱۲۵۷۴۹۵۰ | ۹۴۹۱۴۱۵ | |
| ۱۲ | په ۱۳۶۸ کال کې | ۱۲۷۹۸۳۰۰ | ۶۰۸۲۰۶۰ | |
| ۱۳ | په ۱۳۶۹ کال کې | ۱۳۲۲۶۷۰۰ | ۱۳۸۴۶۱۴۲ | |

۳- د عمده فروشانو د درملو او ځینو طبی استهلاکی ملزمو توريد او اجازه اخستنه

| ګڼه | شاخصونه | اجازه اخستنه | حقیقی اجرأت | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | په ۱۳۵۷ کال کې | ۱۱۷۲۷۷۵۰دالر | ۶۴۷۳۸۹۱دالر | |
| ۲ | په ۱۳۵۸ کال کې | ۹۹۲۲۶۷دالر | ۴۵۱۲۱۸دالر | |
| ۳ | په ۱۳۵۹ کال کې | ۱۷۵۱۹۰۰دالر | ۶۲۰۷۹ دالر | |
| ۴ | په ۱۳۶۰ کال کې | ۲۲۱۶۵۳۱ دالر | ۵۲۷۶۲۰ دالر | |
| ۵ | په ۱۳۶۱ کال کې | ۱۵۳۰۸۴۱ دالر | ۱۳۳۸۷۹۳ دالر | |
| ۶ | په ۱۳۶۲ کال کې | ۶۳۰۷۳۰۰ دالر | ۱۶۴۱۷۱۷ دالر | |
| ۷ | په ۱۳۶۳ کال کې | ۱۱۰۱۲۹۵۴ دالر | ۳۳۱۱۴۵۶ دالر | |
| ۸ | په ۱۳۶۴ کال کې | ۱۱۹۵۰۴۸۴ دالر | ۴۸۷۲۳۲۹ دالر | |
| ۹ | په ۱۳۶۵ کال کې | ۹۹۳۶۸۸۷ دالر | ۵۷۲۸۲۲۰ دالر | |
| ۱۰ | په ۱۳۶۶ کال کې | ۱۷۱۸۰۲۷۹ دالر | ۶۸۷۵۵۸۵ دالر | |
| ۱۱ | په ۱۳۶۷ کال کې | ۲۲۸۵۶۶۰۱ دالر | ۷۲۵۹۵۷۳ دالر | |
| ۱۲ | په ۱۳۶۸ کال کې | ۲۲۶۷۷۱۳۰ دالر | ۹۳۲۵۱۶۸ دالر | |

**د درملتونونو، لابراتوارونو، شخصی معاینه خانو او عمده فروشیو شمیر ۲۰ ثور ۱۳۷۰ هـ.ش ۱۹۹۱م**

**الف: دولتی درملتونونه:**

مجموعاً څلویښت بابه دی چې ۳۶ بابه یی په کابل او یو یو یې په هرات، قندهار، جلال آباد او بلخ (مزار شریف) کې دی.

**ب: شخصی درملتونونه:**

| | |
|---|---|
| کابل ۶۸۷ بابه | پروان ۳۶ بابه |
| کاپیسا ۳۱ بابه | وردگ ۴ بابه |
| لوگر ۲۸ بابه | غزنی ۵۳ بابه |
| پکتیا ۵۳ بابه | ننگرهار ۸۴ بابه |
| کونړونه ۳۲ بابه | لغمان ۲۲ بابه |
| بدخشان ۱۷ بابه | سمنگان ۱۲ بابه |
| بلخ ۷۹ بابه | کندز ۵۵ بابه |
| جوزجان ۵۴ بابه | ارزگان ۴ بابه |
| تخار ۴۳ بابه | بغلان ۷۷ بابه |
| سرپل ۱۲ بابه | فاریاب ۵۴ بابه |
| بادغیس ۲۲ بابه | فراه ۱۶ بابه |
| نیمروز ۷ بابه | کندهار ۷۶ بابه |
| هلمند ۲۷ بابه | زابل ۱۳ بابه |
| غورات ۳ بابه | پکتیکا ۲۶ بابه |
| بامیان۲ بابه | |

**ج: شخصی لابراتوارونه:**

| | |
|---|---|
| کابل | ۸۰ بابه |
| ولایتونه | ۱۲۵ بابه |

**د: د طبیبانو شخصی معاینه خانی:**

| | |
|---|---|
| کابل | ۱۶۷۱ بابه |
| ولایتونه | ۲۳۹۶ بابه |

**هـ: د درملو او طبی لوازمو عمده فروشی:**

| | |
|---|---|
| کابل | ۱۸۶ بابه |

د مجاهدینو د حاکمیت او طالبانو په دوره کې د یادونی وړ پرمختګ نه لیدل کیږی او د جنګ د جګړی له کبله یو زیات شمیر اساسی او فرعی صحی مرکزونه او روغتونونه له منځه لاړل او یا د جنګ له کبله د یو ځای څخه بل ځای ته انتقال شوی دی. خو د ولایاتو په مرکزونو او په کابل ښار کې طبی تسهیلات فعال وو او طبی کارکوونکو په ډیره میړانه سره د ټپیانو او ناروغانو خدمت کړی دی.

بیا هم د طالبانو د حاکمیت په دوره کې ۲۴ تقنینی اسناد د عامی روغتیا وزارت له خوا تدوین شول چې یوه مقرره یې د (طبی تخصصی کدرونو حقوق او امتیازات) و چې د هغی له مخی طبیبانو د مقرری د محتوا په نظر کې نیولو سره علمی درجی لاس ته راوړلی.

همدارنګه د تکنیشن درمل جوړونکو لایحه تدوین او تطبیق شوه. د روغتیایی علومو انستیتوت په یولسو مرکزونو کې نوی کوریکولیم تدوین شو چې د عامی روغتیا وزارت او نړیوالی روغتیایی اداری له خوا چاپ شو.

د پورتنی کوریکولیم پر بنسټ ۷۸ عنوان کتابونه چاپ او د محصلینو د استفادی وړ وګرځیدل.

## پنځم څپرکی

### طبابت د لنډ مهالی دوری څخه تر نن ورځی۱۳۸۰-۱۳۸۹

د عامې روغتیا وزارت دنده لری چې په ټول کیفیت سره ټولو افغانانو ته روغتیایی خارنی (مراقبتونه)، په ځانګړی توګه د هېواد د ګوټ ګوټ کوچنیان او ښځو ته چې تر اوسه یې د روغتیایی خدمتونو څخه ګټه نه ده اخیستی، د یو موثر کار له طریقه د ټولنو روغتیایی همکارانو له خوا، د دغه امر په اجرا کې بریالی شی.

دغه هدف ته د رسیدلو د پاره لازم دی چې ترڅو ډیری سختی لاری او د علمی اجرأتو د تطبیق په خاطر هلی ځلی وشی، ترڅو د هېواد ټولو خلکو لپاره روغتیا تعمیم شی چې موخه یې د ټولنی د ښه اقتصاد او ټولنیزه پراختیا ده.

په دې توګه د عامې روغتیا وزارت لوړه کړی چې د مؤثر کار له طریقه د ټولنو او روغتیایی همکارانو په واسطه خپلی دندی سرته ورسوی.

ډیری خلکو ته د روغتیایی سکتور پراختیا، د روغتیا د ښه والی لپاره په ځانګړی توګه ښځو او ماشومانو ته د روغتیایی اساسی خدمتونو مجموعه، د روغتونونو اساسی خدمتونو مجموعه او ځانګړی پروګرامونو د ستندرد په شکل په ټولو سطحو کې په مساوی توګه، عدالت او د برابری اصل په نظر کې نیولو سره د تطبیق وړ ده.

**د عامې روغتیا وزارت بنستیزی دندې:**

د عامی روغتیا وزارت د هېواد د اتباعو د روغتیا د تأمینولو لپاره لاندې تدبیرونه نیسی:

۱- د مور او ماشوم د روغتیا تأمینولو ته په زیاتې پاملرنې سره د ساری او انتانی ناروغیو د مخنیوی او د خپرېدو د را کمولو په منظور وقایوی تدبیرونه.

۲- د وقایوی او معالجوی طبی خدمتونو د لومړنیو مرستو وړاندې کول.

۳- په دولتی او غیر دولتی ادارو کې د کارکوونکو لپاره د وقایوی طب او د ژوند چاپېریال د روغتیا ساتنې د خدمتونو د تأمینولو لپاره تدبیرونه.

۴- د هېواد د اتباعو لپاره د اوبو د رسولو او د څښلو د اوبو د شبکو او د روغتیایی کیفیت لرونکو غذایی توکو څخه څارنه.

۵- د روغتیایی ښوونو پرمخ بېول او د فردی سلامتۍ د سطحې د ښه کولو لپاره د معلوماتو او خبرتیا خپرول او له وژونکو ساری ناروغیو څخه وقایه.

۶- د روغتیایی آســــانتیا وو، کلینیکونو، روغتونونو، روغتیایی مرکزونو او درملتونونو پراختیا او پرمختیا.

۷- د هېواد د اتباعو د روغتیایی اړتیا وو د لرې کولو لپاره د طبی تجهیزاتو او دوایی توکو برابرول او تدارک کول او په دې برخه کې د روغتیایی آسانتیا وو برابرول.

۸- د طبی کارکوونکو د روزنې د نظام پراختیا او بشپړول، د طبیبانو د تخصصی سویې لوړول او د وقایوی او معالجوی طب په مختلفو برخو کې د علمی څېړنو پرمختیا.

۹- د خلکو د تغذۍ په هکله د روغتیا ساتنې (حفظ الصحوی) د علمی اساساتو طرح کول.

۱۰-د ماشومانو او مېندو د امېندوارۍ د روغتیا د تأمینولو په هکله د روغتیا ساتنې د علمی اساساتو طرح کول.

۱۱-د لومړنیو روغتیایی مرستو او روغتیایی خدمتونو د وړاندی کولو په برخه کې د روغتیایی ستونزو د لرې کولو په منظور، د دولتی او غېر دولتی تاسیساتو د کوښښونو شریکول.

**د پورتنيو اهدافو او دندو د لاس ته راوړلو لپاره ضروري بريښنۍ چې:**

- ☜ د ټولو خلکو سره صادقانه او احترامانه برخورد او دا چې ښه روغتيا د هر شخص مسلم حق دی په نظر کې نيول.
- ☜ د شواهدو پر اساس د تصاميمو نيول.
- ☜ په عادلانه توګه روغتيايي اساسي خدمتونو ته د رسيدلو تضمين.
- ☜ په اجرأتو کې صادق، روښانه (شفاف) او مسئوليت منل.
- ☜ د روغتيايي خدمتونو د عرضې موثريت ښه والی او باکفايته چې د مصارفو او د صحي خدمتونو سره متناسب وی.
- ☜ هغو پروګرامونو ته لومړی توب ورکول چې شديداً ورته نياز ليدل کيږی لکه ماشومانو، معيوبينو او بې وزلو ته.
- ☜ د ژوند د ښه صحت د روش ترويج او تشويق او خلک د هغو اعمالو له سرته رسولو چې روغتيا ته مضر ثابت شوی وی، ليری ساتل.

**د عامې روغتيا وزارت کاری ارزښتونه په لاندې ډول ارزول کيږي:**

- ☜ د ښه روغتيا لرلو حق.
- ☜ د روغتيايي خدمتونو په توزيع کې د عدالت رعايتول.
- ☜ د ښځو، ماشومانو او آسيب پذيره ګروپونو ته لاس رسی. لکه په هېواد کې بېځايه شوی خلک، معيوبين او بې وزلو خلکو ضرورتونه.
- ☜ هغو خلکوته زياته پاملرنه چې ليری پرتو ځايونو کې ژوند کوی او لږ امکانات لری.
- ☜ د روغتيايي کار کوونکو له خوا د ناروغانو سره بشری کرامت خوندی ساتل.

**د عامی روغتیا وزارت اساسی لومړی توبونه په لاندې ډول بررسی کیږي:**

د باکیفیته، موثره او ګردو خلکوته د خدماتو د عرضه کولو په موخه د عامی روغتیا وزارت پالیسی او استراتیژی ګانی تصویب کړی دی چې د هغو له جملی څخه ۱۸ استراتیژی او ۶ مهم لومړیتوبونه دی، چې په لنډ ډول ورڅخه یادونه کیږي:

- د ماشومانو د لوړی مړینی کمول.
- د میندو مړینی کمول.
- د انتانی ناروغیو لکه نری رنځ، ملاریا، ایدز کمول او د واکسینونو په واسطه د د وقایې وړ ناروغیو وقایه.
- د هېواد روغتیایی سیستم ښه کول، په ځانګړی توګه د مجربو او کاری بشری قواو زیاتوالی.
- د روانی ناروغیو او د مخدره توکو معتادینو کمول.
- د خوار ځواکی واقعاتو کمول.

**استراتیژیکی برنامی په لاندې ډول ښودل شوی دي:**

- د پالیسیو، استراتیژیو، رهنمودونو او روغتیایی سکتور لپاره د افغانستان ملی انکشاف استراتیژی ترتیبول.
- د روغتیایی اساسی خدمتونو د پوښښ پراختیا.
- د روغتونونو له پاره د اساسی خدمتونو مجموعی تطبیق.
- نهادی انکشاف لپاره د اداری اصلاحاتو مستقل کمیسیون په همکاری د اداری اصلاحاتو د پروسی د تطبیق ادامه.
- د نوی پیدا شوی ناروغیو، ساری او غیر ساری ناروغیو موثر کنترول.
- په ملی سطحه د عامی روغتیا وزارت د کاری ظرفیت ارتقا (لوړ والی) پلان تطبیق.
- د روغتیایی پروژو د تمویلولو د برنامو جوړول.
- د روغتیایی خدمتونو د حالت څرنګوالی مؤثره ارزیابی.

☜ د معاصرې تکنالوژۍ په استفادې سره د معلوماتو اخستلو لپاره د ۳۴ ولایتونو سره د ارتباط تامینول.
☜ د برنامو د لاښه تطبیق په خاطر د سکتوري وزارتونو سره هر اړخیزه همکاري.
☜ ځانګړو ګروپونو ته د روغتیایي خدمتونو عرضه کول؛ لکه کوچیان.

**د عامې روغتیا وزارت اداري تشکیلات:**

د کارونو د ښه تنظیم په خاطر د عامې روغتیا وزارت په تشکیلاتو کې يو لړ تغییرات منځ ته راغلي دي. یو ډیر مهم تحول هم د افغانستان د عامې روغتیا انستیتوت ایجادول دی چې د شلو کالو څخه زیاته موده کې په مطلق رکود کې واقع ؤ او اوس د عامې روغتیا وزارت په چوکاټ کې د یو فکري او اکاډمیک مرکز په توګه بیارغوني لپاره بیرته په کار پیل وکړ.

همدارنګه د درملي چارو د ښه تنظیم او کنترول په خاطر د فارمسي ریاست عمومي ریاست ته ارتقا وکړه او توقع کیږي چې په دې عرصه کې کارونه په ښه او موثر شکل تنظیم او اداره شي.

برسیره پردې د مخدره توکو د تقاضا د کموالي په خاطر دیپارتمنت منځ ته راغی او د جنسیت او بلاربښت روغتیایي حقوق دیپارتمنت او د کوچیانو د روغتیا دیپارتمنت ایجاد شول.

د ۱۳۸۵ کال تشکیل په لنډ ډول داسې ښودل شوی دی.

| معینتونه | مرکزی ریاستونه | مشاوریتونه | ولایتی نمایندګي | تصدي | کتنی |
|---|---|---|---|---|---|
| ۳ | ۵۴ | ۱۲ | ۳۴ | ۱ | |

| په کال ۱۳۸۵ کې منظور شوی تشکیل | مامورین | اجیران | د ولایتی کارکنانو مجموع | | د کارکنانو مجموع | | کتنی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | مامورین | اجیران | مامورین | اجیران | |
| ۱۴۵۰۰ | ۱۰۰۹۰ | ۴۴۱۰ | ۵۱۱۰ | ۲۴۷۳ | ۴۹۸۰ | ۲۴۷۳ | |

په مجموع کې په سلوکي ۷۶/۶۸ نارینه کارکوونکی او ۲۳/۳۲ په سلو کې یې ښځینه کارکوونکی تشکیلوی.

**په هېواد کې د روغتیا د عمده شاخصونو شاه لید او لاس ته راوړنی:**

د دوه لسیزو جګړونه یوازی د ملیونونو افغانانو د مړینی او معلولیت سبب ګرځیدلی بلکې د هېواد روغتیایی چارو بنسټ یې هم له منځه وړی دی.

**په دغه برخه کې د هېواد په سطحه لاندې ارقام او احصائیی د جدی بحران بیانوونکی دی:**

- د میندو مړینه: ۱۶۰۰ تنه په هرو ۱۰۰۰۰۰ ژوندیو ولادتونو کې.
- د پنځو کالو څخه ښکته د ماشومانو مړینه: ۲۵۷ ماشوم په هرو ۱۰۰۰ ژوندیو ولادیتونو کې.
- د نوی زیږیدنی ماشومانو مړینه: ۱۶۵ تنه په هرو ۱۰۰۰ نوی زیږیدلی کې.
- په ماشومانو کې مزمنه خوار ځواکي: تر ۶۰ په سلو کې.
- په منځنی ډول د ژوند توقع ۴۲ کاله.
- د هېواد په سطحه د بشری قواو او مالی منابعو غیر عادلانه ویش.
- د روغتیا په ډګر کې د استراتیژیو او لومړی توبونو نه مشخص والی.
- د برنامو د موثر تطبیق په خاطر د رهنمودونو نشتوالی.
- په غیر حکومتی مؤسساتو کې د فعالیتونو تیت او پرک والی.
- په مختلفو سطوحو کې د خدمتونو عرضه کولو د تنظیم چوکاټ نه موجودیت.
- د خدمتونو د کیفیت او شفافیت د سطحی ټیټوالی.

## د افغانستان په روغتیایي چارو کې لويې لاس ته راوړنې

| شاخصونه | مخکې د ۲۰۰۱ کال څخه | د ۲۰۰۶ کال تخمین | کتنې |
|---|---|---|---|
| د پنځو کالو څخه ښکته ماشومانو مړينه | ۲۵۷ ماشوم په ۱۰۰۰ ژوندی زیږیدل شویو کې | ۱۹۱ ماشوم په هر ۱۰۰۰ ژوندی زیږیدل شویو کې | د شاخصونو تخمیني تحلیل، یونسیف، د جان هایکنز پوهنتون / عامې روغتیا وزارت |
| د یو کال څخه ښکته نوی زیږیدلي ماشومانو مړينه | ۱۶۵ نوی زیږیدلي په هر ۱۰۰۰ ژوندی زیږیدلي شویو کې | ۱۲۹ نوی زیږیدلي په هر ۱۰۰۰ ژوندی زیږیدلي شوی کې | د شاخصونو تخمیني تحلیل، یونسیف، د جان هایکنز پوهنتون / عامې روغتیا وزارت |
| د میندو مړيني | ۱۶۰۰ مور په هرو ۱۰۰۰۰۰ ژوندی ولادت کې | وروستی مطالعه صورت نه دی موندلي | ۲۰۰۲ یونسیف / سی دی سی. د میندو مړینې مطالعه |
| د ژوند منځنی توقع | ۴۲ کاله | ۴۶ کال (۴۵ د ښځو لپاره) او ۴۷ کاله د نارینه و لپاره | د شاخصونو تخمیني تحلیل، یونسیف |

په لنډ ډول باید وویل شی چې د یوه کال څخه د ماشومانو مجموعی وفیات په یو کال کې چې پخوا ۱۶۵ په هر یو ۱۰۰۰ ژوندی تولد ته رسیده ۱۲۹ په ۱۰۰۰ ژوندی ولادت ته را ښکته شو. او د پنځو کالو څخه ښکته ماشومانو مړینه د ۲۵۷ څخه ۱۹۱ ته په ۱۰۰۰ ژوندی ولادت ته رسیدلې چې ښې لاس ته راوړنې تلقی کیږی.

همدارنګه په ۲۰۰۶ کال کې د داکترانو شمیر ۷۱۰۰ تنه ښودل شوی چې د ۲۲ ملیونو وګړو کې یو داکتر ۳۱۰۰ تنو ته رسیږی.

**په لنډه توګه باید وویل شی چې د عامې روغتیا وزارت په لاندې عرصو کې پرمختګونه موجود دي:**

۱- د پالیسیو، قوانینو، کاری رهنمودونو د ایجاد او پرمختیا په عرصه کې:

د ۳۰۰ څخه زیاتی پالیسی، قوانین، استراتیژی، لوایح، رهنمودونه تدوین او یا تجدید شوی دی چې ځنی مثالونه یې دا دی:

- د روغتیا ملی پالیسی ۱۳۸۴-۱۳۸۸.
- ملی پراختیایی استراتیژی ۱۳۸۴-۱۳۸۸.
- د روغتیایی خدمتونو بنسټیزی مجموعی پالیسی.
- د روغتونونو بنسټیزی مجموعی پالیسی.
- د مصئونی مور او روغتیایی بلار ښنت پالیسی.
- د ماشومانو روغتیایی ملی پالیسی.
- د انتاناتو د کنترول او مخنیوی (وقایی) ملی پالیسی.
- د ملاریا او نری رنځ د کنترول پالیسی.
- د روغتیایی تعلیماتو استراتیژی او پالیسی گانی.
- د ټولنیزو رسنیو د گټی اخستنی استراتیژی.
- د ښوونځیو روغتیایی ملی پالیسی.
- د مجازو درملو د لست تهیه کول.
- د بشری قواو د توسعی پالیسی.
- د محلی روغتیایی کارمندانو د فعالیت پالیسی.
- د غیر حکومتی موسسو د معاشونو ملی پالیسی.
- د روغتیایی معلوماتو سیستم د رهنمود پراختیا.
- د عامه تغذی پالیسی.
- د ایدس او مقاربتی ناروغیو استراتیژی.
- د معیوبیتونو اداری پالیسی.
- د او کسی توسین درملو د استعمال پالیسی.
- د عامی روغتیا قانون.
- د لابراتوارونو مقرره.

☜ د درملو قانون.

☜ د درملتونونو قانون او مقرره.

☜ د مور د شیدو پرځای قانون.

☜ د شخصی اکسیریزونو مقرره.

۲- د روغتیایی خدمتونو د ښه والی په عرصه کې:

د هېواد په نفوس کې د روغتیایی خدمتونو د عرضی پوښښ په ۲۰۰۲ کال کې د ۹ فیصدو څخه ۸۲ فیصد ته زیاتوالی موندلی دی او په کال ۱۳۸۷ کې دا رقم ۸۵ فیصدو ته رسیدلی دی. دغه ارقام په ۳۱ ولایتونو کې د غیر حکومتی موسسو له خوا او دری ولایتونو کې د عامی روغتیا وزارت له خوا تامین شوی دی.

☜ د روغتیایی سکتور له پاره د ۲۰۰ صحی مرکزونو او ۸۰ سیار کلنیکونو ته مرستی جلب شوی دی، چې ایجاد یې عملاً شروع شوی دی.

☜ د کوچیانو له پاره ۱۸ سیار کلنیکونه په کابل، هرات، ننگرهار، بادغیس، لغمان، پکتیا، بغلان، فاریاب، خوست، کندز ولایتونو کې تاسیس کړی دی چې دغه رقم ډیر ژر ۳۰ سیارو کلنیکونو ته ارتقا کوی.

☜ په کابل کې په ازمایښتی ډول د ښاری روغتیایی پروژی په کار پیل کړی دی چې د ولسوالی دوو روغتونو او ۸ جامع روغتیایی مرکزونو سره مرسته کیږی. دغه پروژه په تدریج سره پراختیا مومی.

☜ د نری رنځ د تشخیصی او درملنی مرکزونو تعداد د ۲۰۰ څخه ۸۰۰ مرکزو ته رسیدلی دی. او د نری رنځ واقعات ۵۰% نسبت پخوانیو کلونو او ملاریا ۹۰% نسبت ۱۳۸۴ کال تر کم شوی ده. د نری رنځ ناروغی ضد مرکزونه چې ایجاد شوی د ۴۲۰ څخه زیات دی چې تشخیصی او معالجوی دی او نور یې یوازی د درملنی مرکزونه دی.

په ولسوالیو کې د نری رنځ په مقابل کې مجادله د ۲۰% څخه ۱۰۰% ته زیاتوالی موندلی دی.

☜ د ماشومانو د جامع ناروغیو شیوی (IMCI) د هېواد په ۲۸ ولایتونو او په ۲۳۷ ولسوالیو کې د ۱۶۷۵ تنو صحی کارکوونکو له خوا د تطبیق په حال کې دی.

د دغی شیوی د تطبیق هدف دا دی چې پخوا په مجزا ډول په صحی تسهیل کې خدمت عرضه کیده او اوس ټول په یو وخت کې عرضه کیږی.

☜ د روغتیایی رضاکارانو تعداد ۱۶۰۰۰ تنو ته رسیږی چې په ۸۰۰۰ روغتیایی پوستو کې مصروف دی.

☜ په وړیا توګه د جراحی سیار پروګرامونه او د سترګو د ناروغیو درملنه په څو ولایتونو کې د اجرا وړ دی.

☜ د دې د پاره چې په روغتیایی اوضاعو باندې ښه حاکمیت تامین شی، د عامی روغتیا وزارت په نظر کې لری چې په هره ولسوالی کې یو تن د ولسوالی روغتیایی آفیسر استخدام کړی چې دغی پروسی عملاً په کار پیل کړی دی.

☜ په مجموع کې د ۷۰۰ څخه زیات د صحی سهولتونو تعمیرونه اعمار، توسعه او یا بیاروغونه شوی دی.

☜ د تور زیړی واکسین معرفی شوی دی. او د واکسیناسیون ډول ډول کمپاینونه په منظمه توګه تطبیق شوی دی چې په هر ځلی کې قابو ۷.۳ ملیونه کوچنیان واکسین شوی چې د ۴۰۰۰۰ تنو څخه زیات رضاکارانو له خوا تطبیق شوی.

د ۲۰۰۰ تنو څخه زیات د آزاد رقابت په اساس استخدام شوی.

د قابله ګۍ ۲۱ باب ښوونځی تاسیس شوی چې په سل هاو تنه د محل قابلی د دی ښوونځیو څخه فارغی شوی او په دنده ګمارل شوی.

په سل هاو ټنه د مرستی موادو طبیعی حوادثو آسیب رسیدلو، بې وزلو کورنیو ته د هېواد په مختلفو ولایتونو کې توزیع شوی دی.

د لومړی ځل لپاره د مخدره توکو د تقاضا کموالی پروګرام د عامی روغتیا په وزارت کې ایجاد شوی چې اوس ۶ سیار کلنیکونه، ۸ کلنیکونه، ۳ روغتونونه په ۱۷ ولایتونو کې د معتادینو د درملنی تسهیلات ایجاد شوی دی.

په کال ۱۳۸۵ کې د دری وروستیو کلونو لپاره د عامی روغتیا وزارت د نړۍ روغتیایی اداری د اجرائیوی بورد غړیتوب یې لاس ته راوړ چې دغه بورد ۳۴ هېوادونه غړی لری. دغه بورد د نړۍ روغتیایی اداری د تصمیم نیولو ډیره عالی مرجع ده.

همدارنگه په ۱۳۸۵ کال کې افغانستان د نړۍ روغتیایی اداری د اداري او بودجی اجرائیوی کمیټی غړیتوب حاصل کړ چې ۱۲ غړی لری.

په هېواد کې د لومړی ځل لپاره د اوسپنی لرونکی اوړه د غذایی متمم په توگه د هېواد په ینځو سیلوگانو کې تولید شروع شوی دی.

د آیودین لرونکی مالگی ۱۸ دستگاوی نصب شوی دی. له نیکه مرغه افغانستان دا ظرفیت لری چې آیودین لرونکی ډیره مالگه د خلکو د ضرورت لپاره تولید کړی.

په سل هاو ټنه بې کیفیته او تاریخ تیرشوی غذایی مواد او درمل له منځه وړل شوی دی. د عامی روغتیا وزارت وکولای شو چې په لس هاو ملیونه ډالر مرستی جذب کړی.

**په ۲۰۰۷ کال کې د روغتیایی خدمتونو پرمختگ:**

۱- هغه روغتیایی کارمندانو چې زده کړه یې کړی او دندی ته توظیف شوی ۱۷۰۰۰ تنه

۲- هغه قابله گانی چې زده کړه یې کړی او دندو ته توظیف شو دی ۱۸۶۴ تنه

۳- بنسټیز روغتیایی مرکزونو شمیر ۶۶۷ بابه

۴- معلوماتی روغتیایی مرکزونو شمیر ۳۸۷ بابه

۵- ولسوالی (ناحیوی) روغتونونو شمیر ۴۹ بابه

## د افغانستان روغتیایی تسهیلاتو د څیړنو نتیجی

| کال | ۲۰۰۴ | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ |
|---|---|---|---|
| لابراتواری خدمتونه | ۱۸.۳ | ۳۶.۳ | ۴۳.۳ |
| د نری رنځ کلنیکونه چې معلومات یی ثبت کړی دي | ۱۵.۸ | ۲۰/۶ | ۳۷.۴ |
| کال | ۲۰۰۴ | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ |
| هغه صحی تسهیلات چې د بلاربو ښځو څارنی کړی دي | ۶۲ | ۷۹.۳ | ۸۴.۹ |
| په سراپا کې د نویو ښځو د شمیر فیصدي | ۵۵.۲ | ۵۳.۳ | ۵۷.۸ |

| کال | ۲۰۰۴ | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ |
|---|---|---|---|
| د روغتیایی خدمتونو څخه راضی ټول ناروغان | ۸۳.۳ | ۸۳.۳ | ۸۶ |
| روغتیایی فعال تجهیزاتو ته لاس رسي | ۶۵.۷ | ۶۷ | ۸۷.۷ |
| بنسټیز درملو موجودیت | ۷۱.۱ | ۸۳.۷ | ۸۵.۷ |

| کال | ۲۰۰۴ | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ |
|---|---|---|---|
| د روغتیایی کارمندانو د معلوماتو د زده کړی سطحه | ۵۳.۵ | ۶۹ | ۶۸.۷ |
| د ناروغانو تاریخچی اخستل او روغتیایی معایناتو اجرا | ۷۰.۶ | ۷۳.۵ | ۸۲.۲ |
| د ناروغانو په مورد کې بیا معلوماتونه (بازنګری) | ۲۹.۶ | ۳۵.۱ | ۳۶.۶ |

| کال | ۲۰۰۷ |
|---|---|
| د روغتونونو د تجهیزاتو تعداد | ۶۷.۲ |
| د روغتیایی کارکوونکو مهارت | ۶۱.۴ |

| کال | ۲۰۰۳ | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ |
|---|---|---|---|
| د افغانستان په کلو باندو کې د ښځو فیصدی چې مخکی له ولادت څخه روغتیایی مرستی اجرا شوی دي | ۴.۶ | ۱۲.۶ | ۳۲.۲ |
| د افغانستان په کلو باندو کې د ښځو فیصدی چې په وروستی بلاربنت یی داکتر، نرس، قابلی ته لاس رسی درلودلی | ۶ | ۸.۴ | ۱۸.۹ |

| کال | ۲۰۰۰ | ۲۰۰۴-۲۰۰۵ |
|---|---|---|
| په ۱۰۰۰ کسو کې د ماشومانو د مړینې اندازه | ۱۶۵ | ۱۲۹ |
| په ۱۰۰۰ کسو کې د پنځو کالو څخه پورته ماشومانو کې د مړینې شمیر | ۲۵۷ | ۱۹۱ |

| کال | ۲۰۰۳ | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ |
|---|---|---|---|
| د افغانستان په کلو باندو کې د نرۍ رنځ په مقابل کې د ماشومانو واکسین شوی فیصدی | ۵۶.۶ | ۵۸.۸ | ۷۰.۲ |
| د افغانستان په کلو باندو کې د پولیو په مقابل کې د ماشومانو واکسین شوی فیصدی | ۲۹.۹ | ۴۹.۲ | ۶۹.۷ |

په لنډه توګه ویلای شوی چې د نوی نظام د راتګ سره چې د هېواد په ډیرو برخو کې صلح او آرامی برقراره شوی ده، د عامی روغتیا وزارت د مختلفو برخو پالیسیو پر اساس په سلو کې دوه اتیا خلک د عامی روغتیا بنسټیزو خدمتونو تر پوښښ لاندې راغلی دی چې په دومره لنډه موده کې ډیری لویی بریاوی زمونږ د خلکو په برخه شوی دی.

د افغانستان لپاره د بنسټیزو خدمتونو مجموعه، د افغانستان لپاره د روغتونونو بنسټیزو خدمتونو مجموعه، د درملو پالیسی، د بنسټیزو درملو او د افغانستان لپاره د مجازو درملو لست او په لس هاو نور رهبری کوونکی اسناد لکه قوانین او مقررری، د تشکیلاتی پالیسی او نور داسی مکمل اسناد دی چې د کلو او باندو څخه نیولی تر لویو ښارونو او پلازمینی پوری د درملی او روغتیایی لاری چاری په ډیره ښه روښانه او عملی توګه منځ ته راغلی او د هری قدمی (د صحی پوستی څخه تر ساحوی او ملی روغتونونو پوري) تشکیل، دندی، درملی او طبی خدمتونه، تجهیزات او طبی وسایل په ښه توګه روښانه شوی دی.

**د درملتونونو، عمده خرڅوونکو او تشخیصیه لابراتوارونو تعداد د لړم میاشت ۱۳۸۱هـ.ش (۲۰۰۲م) کال**

**الف: د درملتونونو احصائیه:**

۱- کابل ولایت ۲۰۲۸
۲- هرات ولایت ۵۶۹
۳- بلخ ولایت ۵۲۱
۴- ننگرهار ولایت ۵۴۵
۵- غزنی ولایت ۳۴۱
۶- کندهار ولایت ۲۶۳
۷- بغلان ولایت ۲۱۸
۸- کندز ولایت ۲۲۲
۹- پکتیکا ولایت ۱۷۹
۱۰- هلمند ولایت ۱۶۳
۱۱- ارزگان ولایت ۱۲۲
۱۲- خوست ولایت ۱۵۳
۱۳- کاپیسا ولایت ۱۳۳
۱۴- جوزجان ولایت ۱۲۲
۱۵- پکتیا ولایت ۱۲۱
۱۶- فاریاب ولایت ۱۶۱
۱۷- پروان ولایت ۱۵۱
۱۸- لوگر ولایت ۱۳۷
۱۹- تخار ولایت ۹۱
۲۰- لغمان ولایت ۹۱
۲۱- بادغیس ولایت ۸۲
۲۲- کنړونو ولایت ۸۸
۲۳- وردگ ولایت ۷۹
۲۴- فراه ولایت ۷۲
۲۵- بدخشان ولایت ۶۹
۲۶- زابل ولایت ۴۹
۲۷- نیمروز ولایت ۴۳
۲۸- سمنگان ولایت ۳۳
۲۹- سرپل ولایت ۳۵
۳۰- غور ولایت ۱۶
۳۱- بامیان ولایت ۹

**ب: د تشخیصه لابراتوارونو تعداد:**

۱- کابل ۲۴۴
۲- بغلان ۱۰
۳- پکتیکا ۵
۴- کندز ۳
۵- کندهار ۱
۶- هلمند ۱
۷- بلخ ۱۷
۸- هرات ۳
۹- غزنی ۲
۱۰- کنرها ۶
۱۱- پروان ۱
۱۲- سمنگان ۱
۱۳- ننگرهار ۴۰
۱۴- پکتیا ۵
۱۵- خوست ۳
۱۶- لوگر ۱
۱۷- میدان شهر ۱

**ج: د دولتی سکتور درمل پلورونکي:**

۱- کابل ښار ۱۷
۲- په ولایاتو کې ۲۱

**د:** عمده پلورونکي د کابل په مرکز کې ۳۱۴

**هـ: فابریکی او تولیدی لابراتوارونه:**

الف: دولتی درمل جوړوونکی فابریکه – قرغه کې واقع ده نسبی فعال شوی ده.

ب: هوخست فابریکه چې نیمه دولتی ده – پل چرخی کې واقع ده ځینی اقلام تولیدوی.

ج: شخصی درمل جوړوونکی فابریکی:

۱- سیلون فابریکه – دریم پروان – تولیدیی مقطری اوبه، ځینی تابلیتونه او گلنیکی درمل.

۲- روشان فابریکه – د خیرخانی لمړی برخی گولایی – گلنیکی درمل.
۳- هیواد خسرو فابریکه – د مریم لیسی څلور لاری – مقطری اوبه گلنیکی درمل او شربتونه او نور.
۴- تراجمیر فابریکه – پنځه سوه فامیلی – گلینکی درمل.
۵- حسن خان ملاخیل فابریکه – کلوله پشته – گلینکی درمل.
۶- همدرد فابریکه – جلال آباد – غیر فعال.
۷- افسر فابریکه – جلال آباد – غیر فعال.

د ۱۳۸۸ کال احصایې له مخې د فارمسستانو او درملتونونو شمېر په لاندې ډول ښودل کېږی:

۱- د ۱۳۳۳-۱۳۸۷ کال تر وروستی پوری د متوسطو تعلیمی درمل جوړولو (تکنیشن، مرستیال دواساز او دواساز) مؤسسو څخه ۲۳۶۶ تنه فارغ شوی دی.
۲- د ۱۳۴۱-۱۳۸۸ کال تر وروستی پوری د لوړو زده کړو مؤسسو څخه ۲۲۱۱ تنه پروویزان (فارمسستان) فارغ التحصیل شوی دی.
۳- د ۱۳۸۹ تر لومړیو شپږو میاشتو پوری په ټول هېواد کې ۱۰۳۳۹ باب خصوصی درملتونونه موجود وو.

**د عامی روغتیا وزارت د ۱۳۸۹/۱۱/۱۱ نېټی ارقام په لاندې ډول دی**

☜ ملی روغتونونه ۲۳
☜ حوزوی روغتونونه ۵
☜ ولایتی روغتونونه ۲۹
☜ ولسوالی روغتونونه ۶۸
☜ جامع روغتیایی مرکز ۳۷۸
☜ اساسی روغتیایی مرکز ۷۹۷

- ☜ د معتادینو د درملنی مرکز ۲۶
- ☜ فرعی روغتیایی مرکز ۴۴۱
- ☜ گرځنده روغتیایی تیمونه ۱۰۰
- ☜ روغتیایی پوستی ۱۳۱۵۲
- ☜ نور مرکزونه ۹۱
- ☜ د روغتیایی مرکزونو مجموعی تعداد ۱۹۵۸
- ☜ د ټولنی روغتیایی کارکوونکی ۱۸۷۴۳
- ☜ متخصص ډاکترانو تعداد ۳۳۵
- ☜ عمومی ډاکتران ۲۳۲۱
- ☜ د قابلو تعداد ۱۷۹۴
- ☜ نرسونو تعداد ۳۱۵۷
- ☜ واکسیناتورانو تعداد ۲۳۵۷
- ☜ لابرانتو تعداد ۴۵۹
- ☜ فارمسستان ۱۳۹
- ☜ تکنیشن فارمسستان ۱۵۱
- ☜ خدماتی کارکوونکی ۴۷۷۸
- ☜ امبولانسونه ۵۲۵
- ☜ موټرسایکل ۴۶۳
- ☜ بایسکل ۲۶۴

| د عمده روغتیایی شاخصونو پر بنسټ د عامی روغتیا وزارت کړنی او لاس ته راوړنی ۱۳۸۴-۱۳۸۹ | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | د سروی وخت او ډول یي | ۲۰۰۳ | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ | ۲۰۰۸ | ۲۰۰۸ |
| شمیر | د سروی سطح | کليوالي | کليوالي | کليوالي | کليوالي | ملي |
| ۱ | د زوجینو په واسطه د ولادتونو وقفه | ۵.۱ | ۱۰.۴ | ۱۵.۴ | ۱۳ | ۱۵ |
| ۲ | د ماهرانو له خوا مخکی له ولادت څخه د مراقبت میزان | ۴.۶ | ۱۲.۶ | ۳۰.۳ | ۳۰ | ۳۶ |
| ۳ | د ولادی ماهر په خوا د ولادتونو میزان | ۶ | ۸.۴ | ۱۸.۹ | ۱۵ | ۲۴ |
| ۴ | د BCG واکسین پوښښ لاندی | ۵۶.۵ | ۵۸.۸ | ۷۰.۲ | ۷۳ | ۷۴ |
| ۵ | د Measle واکسین پوښښ لاندی | ۷۵.۶ | ۵۲.۸ | ۶۲.۶ | ۵۴ | ۵۶ |
| ۶ | د Polio واکسین پوښښ لاندی | ۲۹.۹ | ۴۹.۲ | ۶۹.۷ | ۶۸ | ۷۱ |
| ۷ | د DPT3 واکسین پوښښ لاندی | ۱۹.۵ | ۱۶.۷ | ۳۴.۶ | ۳۹ | ۴۳ |
| ۸ | تکمیل شوی معافیت پوښښ لاندی | ۱۵.۵ | ۱۱.۲ | ۲۷.۱ | ۳۳ | ۳۷ |
| شمیر | د جانز هاپکنز سروی | ۲۰۰۴ | ۲۰۰۵ | ۲۰۰۶ | ۲۰۰۷ | ۲۰۰۸ |
| ۱ | د صحی خدماتو په ارتباط د ناروغانو او ټولنی ضاخص | ۶۴.۴ | ۷۲.۳ | ۷۷.۶ | ۸۰.۴ | ۸۴.۳ |
| ۲ | د باکیفیته روغتیایی خدمتونو ظرفیت | ۴۸.۵ | ۵۷.۵ | ۶۵.۳ | ۷۲.۵ | ۷۶.۴ |
| شمیر | د مړینی نتایجو سروی | | | ۲۰۰۳ | ۲۰۰۶ | ۲۰۰۸ |
| ۱ | په ۱۰۰۰ ژوندیو ولادتونو کې د پنځو کالو څخه ښکته ماشومانو مړینه | | | ۲۵۷ | ۱۹۱ | ۱۶۱ |
| ۲ | په ۱۰۰۰ ژوندیو ولادتونو کې د یو کال څخه ښکته ماشومانو مړینه | | | ۱۶۵ | ۱۲۹ | ۱۱۱ |
| شمیر | د اسهالاتو او تنفسی ناروغیو تعداد | ۱۳۸۴ | ۱۳۸۵ | ۱۳۸۶ | ۱۳۸۷ | ۱۳۸۸ |
| ۱ | درملنی شوی اسهالاتو تعداد | ۱۳۱۳۵۸۴ | ۱۷۵۵۹۴۹ | ۲۰۸۹۸۶۱ | ۳۰۱۳۳۴۴ | ۳۲۸۱۰۶۳ |
| ۲ | درملنی شوی تنفسی ناروغیو تعداد | ۳۶۷۴۲۹۹ | ۴۶۳۸۸۵۷ | ۵۷۰۹۳۸۷ | ۸۱۰۲۸۳۱ | ۹۵۴۳۸۲۹ |

# دريمه برخه

# په افغانستان کې د نظامي طبابت ځلانده تاريخ

## لومړۍ څپرکی

## په تاریخ کې د نظامی طبابت ریښې

د تاریخ د پاڼو څخه داسې معلومیږي چې د نړۍ په مختلفو ځایونو او د زمانې په راز راز پړاوونو کې قابو څوارلس زره جګړې تیرې شوې دي.

حتیٰ مخکې تردې چې دولت منځ ته راشي د قبیلو ترمنځه د څړځایونو، سیندونو ته څیرمې ځایونو او داسې محلات چې هلته د دوی ژوند بسیا کیده، پرسر جګړې سرته رسیدلې دي.

د زمانې د تیریدو سره جګړې هم ډول ډول شکلونه نیولی دی د بیلګې په توګه په لومړیو مرحلو کې د پهلوانانو جګړه وه چې په لویو میدانو کې د غیرۍ نیولو په نیتجه کې غالب او مغلوب قوتونه منځ ته راتلل.

په دې زمانه کې د سړي او تودې اسلحې نوم او نښان نشته. وروسته د سیقل د تیږو څخه پیل ورپسې نیزه، لنیدۍ اوغشي، مانجنیق (د مستحکمو حصارونو د تخریبولو لپاره ورڅخه استفاده کیدله). توره او ډال، ټوپک، طوپ، راکټي سیستم، طیاري او بالاخره اتوم بمب او داسې نور منځ ته راغلل چې د وسلو د ډولونو له مخې په هماغه سویه په اردوګانو کې د مصدومینو او ناروغانو د نجات او درملنې شکلونه جریان درلود.

په دې ډول ویلای شو چې د جګړو په مختلفو اشکالو کې ناروغان، ټپیان، د هډوکو ماتیدل، ترضیضات، د بندونو وتل یا خلع، سوځیدل، اوبو کې ډوبیدل او داسې نور مصیبتونه منځ ته راتلل چې د زمانې په تیریدلو سره د مصیبت رسیدلو سره طبي مرستې هم پرمختیا موندلې.

څرګندونې ښيئ چې په لرغونو پیړیو کې د نظامی طبابت نښې نښانې لیدلې شوې دي او بیا وروسته د اسلحې د تکامل او د جنګونو د شکلونو سره روغتیایي تجهیزات هم تکامل موندلی او روغتیایي مرستې هم لوړو مدارجو ته رسیدلې دي.

هغه اسناد چې زمونږ لاس ته راغلی تر ټولو لومړنی سند په لرغونی مصر کې دری تر څلور زره کاله مخکی له میلاد څخه د نظامی طبابت کړه وړه مونږ ته بیانوی. د مصر قواو نظامی طبیبان درلودل چې د اردو د قطعاتو سره یو ځای حرکت کاوه ترڅو د جګړی په وخت کې پیدا شوی زخمونه اود هډوکو خلع او کسرونه تداوی کړی او دا را ښیي چې په حقیقت کې مصریانو په نړۍ کې د نظامی طبابت بنسټ ایښودونکی دی. «سینوهه» د فرعون خاص طبیب د هایتی هېواد د لښکرو په جګړه کې چې هورم هوپ د مصر د لښکرو مشر ؤ، نوموړی د طبیب په حیث د هورم هوپ سره د جګړی جبهی ته ولیږل شو او ټپی او ناروغ سرتیری یې تداوی او معالجه کول. سینوهه په خپل کتاب کې لیکی «د جګړی په صحنه کې د طبیب قرارګاه باید تل د جګړی د جبهی شاه ته قرار ولری او ما په هغه قرارګاه کې مجروحین تداوی کول»[۱].

د اسلام مقدس دین په لومړیو کې به چې جګړی پیښیدی نو د ښځو ونډه هم ډیره زیاته وه چې د هغو له جملی څخه یوه هم زمیده وه. دغه پوهه او سرتیره میرمن د اسلامی نړۍ د تاریخ یوه ځلانده مشره ده چې د لومړنۍ اسلامی طبیبی په توګه پیژندل کیږی. نوموړې د جراحی ناروغیو د علاج او درملنی په څانګه کې لوی مهارت درلود.

د جګړی په وخت کې د ټپی ناروغانو درملنی له پاره خیمی درول شوې دی. نو هغی به له خپلو نورو همکارانو سره طبابت او درملنی ته ملا وتړله او په ډیره سرښندنه به یې خپلی دندی ته دوام ورکاوه.

همدارنګه له افئده څخه یادونه کیږی چې په جګړه کې د ټپی سرتیرو د درملنی لپاره مخصوصی کیږدۍ درول کیدی، چې ټپیان د وخت له ضایع کیدو پرته علاج شی. د بیلګی په توګه د خندق د جګړې په وخت کې د مدینی جومات ته څیرمه یوه لویه کیږدۍ درول شوی وه، چې دغه کیږدۍ د موقعیت او کیفیت له اړخه هغو روغتونونو ته ورته وه، چې په اوس وخت کې په میدانونو کې درول کیږی.

په دغه روغتون کې د یوې پوهې او تکړه ډاکترې ښځې چې افئده نومیده په لارښوونه د ټپیانو د درملنی چاری پرمخ بیول کیدی او هم یو شمیر اصحابو ښځو به د هغې مرستې ته ملاتړلې وې او په روغتون کې یې د هغې له لارښوونی سره سم کار کاوه.

---

۱ - پوهندوی دوکتور محمد انور ترابی، طب در گسترده تاریخ، طبع شاهمامه هالند ۱۳۸۵، ص-۴۸

«همدارنګه ښځو نه يوازې په جګړه کې مستقيماً اشتراک کاوه بلکې، د جګړې ميدان ته به يې خواړه او اوبه رسولې، ټپيانو سره مرستې کولې پر زخمونو باندې ملهم او پټۍ ايښودې او د جګړې شهيدان به يې د جګړې له ميدان څخه ايستل، قبرونه به يې کيندل او خاورو ته به يې سپارل...»[۱].

همدارنګه که د تاريخ پاڼې واړوو ګورو چې د ساسانيانو په وخت کې روغتونونه په دوه ډوله يعنې ثابت او ګرځنده (سيار) موجود وو، چې ګرځنده روغتونونو فعاليت د معالجوی وسايلو، چې په اس، قچره، اوښ او داسې نورو باندې په هميشنۍ ډول له يوه محل څخه بل محل ته انتقاليده، عبارت ؤ. او که ضرورت يې ايجاباوه، دغه ګرځنده روغتونونه تر يوه وخته پورې په هغو سيمو کې چې سارې ناروغيو شيوع پيدا کړی ؤ پاتې کيدل.

د ګرځنده روغتونونو د فعاليت له زمينو څخه په لشکر کشيو او د سپاهيانو سره په ملګرتيا کې ګډون ؤ. په دې باب بشپړه شرح چې زمونږ په واک کې ده هغه د غزنوی سلطان محمود د پوځونو د ګرځنده روغتون په باره کې دی (بندری اثر ۱۳۷ مخ په حواله).

نوموړی روغتون د تشکيل او سازمان ورکولو مسئوليت د مستوفی عزيز الدين (هغه څوک چې د لومړی ځل د پاره يې د يتيم خانې (دارلايتام) جوړولو ته اقدام وکړ) په غاړه واچول شو. نوموړی په پوره دور انديشی او بشپړ کفايت سره ټول ضروريات، وسايل، تجهيزات، درمل، کيږدۍ، د ضرورت وړ طبيبان، د حمل و نقل لازم وسايل تهيه کړل. «هغه ډيره زياته مهمه نکته چې مستوفی عزيز الدين د نوموړی روغتون په مقرراتو کې ځای کړه او په ډير جديت يې تر اجرا لاندې ونيوله هغه دا وه چې د دښمن بنديانو او ټپيانو هم په مساوی ډول د هغه روغتون د آسانتيا وو څخه ګټه اخستله»[۲].

د تاريخ په يوه بله پاڼه کې ګورو چې ابوالحکم المغربی چې په طب او هندسه کې ډير مهارت درلود او تاليفات هم لری.

نوموړی د سلطان محمود بن ملک شاه په خدمت کې قرار ونيو او په معسکرو کې يو ګرځنده درملتون پرانيست چې پر څلويښتو اوښانو د هغه

---

۱ - جرګی مجله ــ ۲۵ ګڼه ــ ۱۳۸۵ کال ص-۱۸-۱۹
۲ - عبدالحی مومنی، تاريخچه طبابت و فارمسی و سير تکاملی آن در افغانستان، ۱۳۸۴ مطبعه ازادی، ص-۸۰-۸۱

سامان او آلات انتقال مونده او نوموړی د هغه طبیب ؤ. نوموړی په ۴۸۶هـ د اندلس په مرسیه کې زیږیدلی او په ۵۴۹هـ.ق په دمشق کې مړ شوی دی[۱].

کله چې بهرني هېوادونو پر افغانستان یرغل کړی دی زموږ پر دین او وطن مینو خویندو د جګړی په ډګر کې په مېړانه سره مرستی کړی. دوی د جګړی په ډګر کې د حماسی لنډیو په ویلو د ځوانانو احساسات پارولی او تر وروستی سلګیو پوری د خپلی خاوری په ساتنه کې قربانی ور کړې ده. همدارنګه د جنګ ډګر ته خواړه، اوبه او نور لوازم یې رسولی او حتی د وطن د آزادی لپاره خپلی ګانی او زیورات یې بسپنه کړی دی. موږ د ملالی او نورو افغانی خویندو فداکارۍ او قربانۍ نه هیر وو او د تاریخ په زرینو پاڼو کې د هغوی قدردانی کوو.

د امیر امان الله خان له نطقونو څخه چې په قندهار کې ایراد کړی داسی څرګندیږی چې د افغانستان په اردو کې پوځی ګرځنده روغتونونه هم موجود وو. نوموړی په یوه خطبه کې داسی وایي «هغه څوک چې زخمیان کیږی بې له ځنډه په پوځی ګرځنده روغتونونو کې تر معالجی لاندې نیول کیږی»[۲].

په نړۍ کې نظامی طبابت د نولسمی پیړۍ له لومړیو څخه ورو ورو پراختیا مومی خو د لومړی او دویمی نړیوالی جګړی په نتیجه کې په دغه برخه کې زیاتی بریاوی لاس ته راغلی او واقعاً د یو ځانګړی علم په توګه پیژندل شوی دی. او احتمال لری چې د یوویشتمی پیړۍ له پیل څخه چې د جګړو شکل او محتوی تغییر موندلی دی نوری لاس ته راوړنی نړیوالو ته وړاندی شی.

په افغانستان کې د معاصر نظامی طبابت تکامل او پراختیا په وروستیو څېرکیو کې کتلای شو.

---

۱ - پورتنی اثر، ص-۱۴۹

۲ - پوهنوال رازقی نړیوال، د فارمسی او طبابت د ودی او پراختیا لنډ تاریخ، د ژباړی نیټه ۱۳۷۸، ص-۲۲۸

## دویم څپرکی

## نظامی طبابت او د هغه پرنسیبونه

د نظامی روغتیایی کارکوونکو له پاره د نظامی فن او نظامی طبابت مطالعه او زده کړه ډیره ضروری او لازمی ګڼل کیږی، چې په بریالیتوب سره د دندی په اجرا کیدلو کې زیات اهمیت لری، ځکه د نظامی طبیب او نورو روغتیایی غړو دندی ډیری پیچلی او سختی دی چې په حقیقت کې دغه دندی د یو لړتدابیرو له مجموعی څخه عبارت دی چې نه یوازی د منسوبینو د روغتیا تحکیم او حفاظت (ساتني) ته متوجه دی بلکې حیات او ژوند چې د انسان عالیترینه توقع ده د نابودئ څخه نجات ورکولای شی.

پورتنی دندی په هغه صورت کې بریالیتوب سره سرته رسیدلای شی چې نظامی کارکوونکی د مسلکی عالی زده کړی، متانت، انسیاتیف، ابتکار، د وطن دوستئ حس، د وظیفی سره علاقمندی لرونکی وی، او له بلې خوا د نظامی طبابت پر اساساتو چې د روغتیایی خدمتونو عرضه کول په ښه شکل تنظیموي په مکمل ډول آشنایی ولری.

د نظامی زده کړی د مجموعی او نظامی طبابت د حاصلولو هدف او موخه دا ده چې مسلکی طبی غړی د روغتیایی خدمتونو د تامیناتو اورګانزیشن په قطعاتو، جزوتامونو او روغتیایی موسسو کې د حضر، سفر او محاربوی شرایط یې ښه زده وی.

په دې توګه نظامی طبابت د تدابیرو یوه سلسله مجموعه ده چې د مسلحو قواو منسوبینو د روغتیا تحکیم او فزیکی وضعی ښه کول، د حفظ الصحوی او وقایوی وضعی پورته بیول او مصدومینو، ناروغانو او مجروحینو ته د ښو طبی مرستو او په لوړه کچه درملنی په خاطر اتخاذ کیږی.

نظامی طبابت د یو مستقل او مکمل برخی په صفت او د پراکتیکی فعالیتونو د زده کړی یوې برخی په حیث کله چې اردوګانو منظم او دایمی شکل ځان ته غوره کړ، منځ ته راغلی او خاص رونق یې پیدا کړی دی. نو د نظامی طبابت د علمی زده کړی په سیستم کې یو مشترکه پوله د طب علم

او د حرب د فن په منځ کې قرار لري او د هغو عام قوانين د يو او بل په پراخوالی او تکامل باندې تاثير لري.

پدې توګه له اجتماعی او تاريخی نظره د نظامی طبابت مفهوم د علومو د مجموعی په حيث د بحث لاندې قرار نيولی چې د نظامی طبابت په ټولو رشتو کې خپلی ريښی لري او د يو او بل په پراخوالی او تکامل کې قاطع نقش لري.

په دې توګه د نظامی طبابت د پراختيا او تکامل عمومی قوانينو پوهيدل دا امکان منځ ته راوړی ترڅو د مختلفو ځانګو خصوصی قوانين کشف، او د روغتيايي خدمتونو عرضه (وړاندی کول) ډير عالی شکل ځان ته غوره کړی.

هغه فکتورونه چې د نظامی طبابت په پراختيا او تکامل کې رول لری زيات دی خو دلته د ډيرو عمده و ځخه يادونه کيږي:

۱- د بشری جوامعو سياسی او اقتصادی فکتورونه.

۲- د ټولنی اقتصادی فکتورونه.

۳- د ټولنی د علم او پوهی درجه.

۴- نظامی تخنيکی وضع.

۵- د ټولنی حفظ الصحوی وضع او د هېواد د روغتيايی موسسو علمی سويه.

۶- د اردوګانو د موجوده اسلحی اوصاف او د هغو د استعمال ډول.

۷- د محاربوی عملياتونو د وړاندی بيولو شکل.

څرنګه چې د نظامی طبابت د هېواد د عامی روغتيا د سيستم يو جز دی بهتره ده چې د عامی روغتيا يو لړ پرنسيبونه روښانه شی:

**الف:** د حفظ الصحوی، وقايوی، معالجوی تاميناتو اورګانيزاسيون پرنسيب دا ايجابوی چې د هېواد په روغتيايی تسهيلاتو او لومړنی طبی مرستو کې د نړيوالی روغتيايی اداری پرنسيبونه چې د افغانستان په شان هېوادونو ته اماده شوی، تاسيس او پراختيا ومومی.

**ب:** د ټولنی د روغتيا د تامينولو په خاطر ايجاب کوی چې د مسلکی کادرونو روزنه په هېواد او باندنی هېوادونو کې په عالی سويه صورت ومومی.

همدارنګه منځنی طبی پرسونل له پاره هم په هېواد یا خارج کې د تحصیل زمینه مساعده شی ترڅو د هېواد اړتیا وی رفع شی.

**ج:** د روغتیایی خدمتونو د لا ښه وړاندی کولو او د طب د علم د لا انکشاف او تکامل په خاطر علمی او تحقیقاتی کارونه او فعالیتونه ډیر ارزښت لری.

**د:** د ټولنیزی روغتیا د تامین په خاطر د یو لړ تقنینی اسنادو تدوین او نافذول ضروری بریښی.

**هـ:** د ټولنیزی روغتیا په تامین کې د هېواد د وګړو انفرادی کار ترتیب او تنظیم کول چې د عامی روغتیا مقررات مراعات کړی عمده رول لری. ترڅو وګړی د ژوند او کار او فعالیت په چاپیریال کې په کومه اندازه حفظ الصحوی قوانین مراعتوي. نو دلته صحی تبلیغات اساسی نقش لوبولای شی.

د پورتنی معلوماتو په اړوند باید وویل شی چې د افغانستان عامه روغتیا دری بنسټیزی دندی لري:

۱- د طبابت پراکتیک چې د وقایوی، حفظ الصحوی او معالجوی فعالیتونو ټول اشکال په کې شامل دی.

۲- د علمی او تحقیقاتی فعالیتونه.

۳- مسلکی کادرونو روزنه.

د عامی روغتیا د تامین په ارتباط د دولت له پالیسی څخه جوتیږی چې ټولی پلان ګذاریَ کاملاً په علمی طرز طرحریزی شوی او د عامی روغتیا په مختلفو برخو کې د پلان انکشاف او رشد او د کیفی او کمی له پلوه عملی تطبیق یې په ټولو برخو کې واضح دی چې د هېواد د اقتصاد سطحه غتښتلی کیږی.

د معالجوی موسساتو ایجاد او هغوی په مدرنو طبی عینیاتو او ورزیده کادرونو مجهز کول د کار موثریت د عامی روغتیا د تعمیم په لوری ښه والی مومی او بالاخره په هېواد کې په توحیدی ډول د صحی خدمتونو عرضه کول دا امکان میسر کوی ترڅو د هېواد د نوی کولو په لوری د حل مناسبی لاری منځ ته راشی.

هغه څه چې نظامی طبابت د ملکی طبابت څخه بیلوی هماغه د جزوتامونو او قطعاتو روغتیایی مرکزونو کې د روغتیایی لازمی مرستی په

معینو قدمو کې ترتیب او تنظیم (اورګانیزاسیون) دی. دا په دې بیان چې هره معینه قدمه کې د ناروغانو او مجروحینو له پاره لازمی مرستی ترسره کیږی او دغه امر داکترانو ته اجازه ورکوی چې لازمی مرستی د لوایحو په نظر کې نیولو سره د خپلی قدمی دندی سرته ورسوی. د کار دغه ترتیب او تنظیم بعدی قدمی ته مرسته کیږی ترڅو خپلی دندی د مخکینی انجام شوی مرستی په نظر کې نیولو سره تنظیم کړی. دغه پروسه قدمه په قدمه د مسلحو قواو تر روغتونونو او موسسو ادامه پیدا کوی.

خو له نیکه مرغه د اتیایمی لسیزی را په دی خوا چې نسبی کراری منځ ته راغلی د نړیوالی روغتیایی اداری هغه پرنسیبونه چې افغانستان له پاره تاکلی دی د نظامی طبابت د پرنسیبونو سره ډیر لږ تفاوت لیدل کیږی چې عمومی پرنسیبونه یې په لاندی ډول دي:

- په محاربوی شرایطو کې د مختلفو ناروغیو د منځ ته راتلو په برخه کې د واحدی مفکوری پرنسیب.
- د روغتیایی مرستو د میتودونو د اجرا کولو په برخه کې د مشترک واحد نظر پرنسیب.
- د ضد اپیدیمکی او حفظ الصحوی تدابیرو د پرمخ بیولو له پاره د واحد سیستم موجودیت پرنسیب.
- د قواو او روغتیایی خدمتونو وسایط او وسایل استعمال او د لوژستیکی روغتیایی خدمتونو او د محاربوی معینو شرایطو له نظره د مختلفو اشکالو فعالیتونو د تطبیق پرنسیب.
- د مجروحینو او ناروغانو د معالجی او تخلیی میتودونو په برخه کې د مشترک واحد نظر پرنسیب.
- دغه پرنسیبونه د محاربی په وخت کې د روغتیایي خدمتونو په ټولو قدمو کې په نظر کې نیول کیږی.

په دې توګه ویلای شو چې په مجموع کې نظامی طبابت د عامی روغتیا تیوریکی او پراکتیکی شکل د حضر او سفر په شرایطو کې دی، او د پراکتیک په ساحه کې د یوی علمی زده کړی سیستم څخه عبارت دی چې موخه یې د مسلحو قواو د منسوبینو د روغتیا محافظه او تحکیم، او د حربی مصدومیتونو او ناروغیو درملنه، د ناروغیو وقایه ده چې د منسوبینو محاربوی قدرت لوړیږی او مسلح قوتونه لا تقویه کیږی.

په دې ترتیب نظامی طبابت انسانی اهداف عملاً تعقیبوی او د خپلو مختلفو څانګو په واسطه په پراخه امکاناتو سره د روغتیایی تامیناتو ډیر پیچلی پرابلمونه د حضر او سفر په وخت کې د خلکو او دولت د خواستو مطابق سرته رسولای شی.

نظامی طبابت ډیر پراخه مفاهیم او موضوعات احتوا کوی چې د وظیفوی ارتباط او مساعی مشترکه له نظره دری عمده برخی یې دا دي:

**الف:** د نظامی طبابت علمی تحقیقات: په هغه کې علمی انکشافات، علمی تیوری ګانی، د مسلحو قواو صحی تامیناتو میتودونه او سیستمونه په مختلفو اوضاعو او شرایطو کې د دغو ټولو وظایفو د اجرا طرز شامل دی.

**ب:** د نظامی طبابت اورګانیزاسیون: د سیستماتیک صحی تامیناتو په منظور یو لړ وظایف او مشخص پرنسیبونه دی چې د مسلحو قواو روغتیایی خدمتونو په نامه یادیږی.

**ج:** د نظامی طبابت پراتیک: په مسلحو قواو کې د صحی تامیناتو د میتودونو او سیستمونو تحقق ورکول پکې شامل دی. یعنی ټول هغه معالجوی او وقایوی وظایفو اجرأت او سرته رسول دی چې په ورځنی فعالیتونو که په حضر او سفر کې وی په نظامی طبابت پراتیک کې شامل دی.

نظامی طبابت په مرتب ډول د عملی کارونو اورګانزیشن او میتودیک اساسات یې د مسلحو قواو د عامی روغتیا په سیستم کې تنظیم وی.

د دغه منظور له پاره په مسلحو قواو کې عامه روغتیا اصطلاح ډیره جامع او وسیع مفهوم سره رواج موندلی چې هغه عبارت دی له مسلحو قواو روغتیایی خدمتونو تامینول، د فزیکی وضعی بهبود، د مسلحو قواو د منسوبینو د روغتیا تحکیم، په عسکری منسوبینو کې حفظ الصحوی وضعی لوړول او د ناروغیو مخنیوی (وقایه) او مصابینو، ناروغانو او زخمیانو ته د مرستی رسولو او ښه درملنی د ښو نتایجو منځ ته راتک تدابیر دی چې اتخاذ کیږی.

په اوسنیو شرایطو کې نظامی طبابت لاندی څانګی لري:

- د روغتیایی خدمتونو تکتیک او اورګانیزاسیون.
- حربی جراحی.

- ☜ حربی داخله.
- ☜ حربی حفظ الصحه او اپیدیمولوژی.
- ☜ د حربی استاتستیک (احصائیه).
- ☜ نظامی روغتیایی خدمتونو اکمالات.
- ☜ د حربی فعالیت فزیولوژی.
- ☜ د حربی طبابت جغرافیا او تاریخ.
- ☜ حربی توکسیکولوژی.
- ☜ حربی رادیولوژی.
- ☜ هوایی طبابت.

برسیره پر دې اناتوموپتالوژی، ستوماتولوژی، غوږ، ستونی او پوزی، نورو پتالوژی، جلدی، عصبی جراحی او نوری څانګی د وظیفوی د ارتباط له نظره د نظامی طبابت څانګو سره مشترکه مساعی عملی کوی.

د مختلفو څانګو مشترکه مساعی هدف دا دی چې په موثره توګه د نظامی طبابت په پراتیک کې برخه واخلی او د معالجوی او وقایوی امکانات ډیر ښه میسر شی. او په مختلفو محاربوی فعالیتونو کې طبی مرستی په ښه توګه تامین شوی وی. په دی توګه هره څانګه یو معیین هدف، تحقیقاتی میتودونه، عملی ضمایم د نظامی طبابت د تامیناتو په سیستم کې لری. په دی توګه د پورتنیو ذکر شویو په نظر کې نیولو سره د نظامی طبابت محتوی او اهداف ډیر وسیع او همه جانبه تعریف په لاندی ډول منځ ته راځی.

نظامی طبابت د یو علمی تیوری په صفت د مسلحو قواو د روغتیایي تامین له پاره منځ ته راغلی چې د حربی مصیبتونو د پیدایښت، خصوصیات، سیر په مورد کې او د قطعاتو او جزوتامونو د ناروغیو او پتالوژی څخه بحث کوی.

همدارنګه د دغو پتالوژیو وقایه او درملنه او په مختلفو شرایطو یعنی حضر او سفر کې د قطعاتو روغتیایی خدمتونو د تامیناتو اورګانیزاسیون له وظایفو څخه محسوبیږی.

## دريم څپرکی

## د نظامی طبابت تشکيلات، ښوونه او روزنه

### د اسلام ترمخه نظامی طبی تشکيلات

د افغانستان د طبابت د تاريخ له تحليل او بررسی څخه داسی څرګنديږی چې اردو (منظم او غير منظم) د افغانستان د دولت له تشکيليدوله وخته موجود و او ګام په ګام يې وده او تکامل موندلې دې دا ځکه چې اريايی قبايلو د ژوندانه په لومړيو کې جګړو او د هغو وسايلو ته ضرورت نه درلود، خو کله چې د وګړو تعداد زياتيږی مجبوريږی چې له بخدیٔ څخه د هندوکش لمنو او لويديز خواوته مهاجرت وکړی او د دوی او د بومی قومونو ترمنځ جګړی پيښيږی او د اريانا پراخی ځمکی تر ولکو لاندې راځی نو پدې توګه مخکې لدې چې دولت هم تشکيل شی شخړی او جنګونه منځ ته راغلی دی چې دغه پيښی په ويدی عصر کې ليدلای شو.

د هند پياوړی تاريخ ليکونکی دولافوز ليکی «د ويدی عصر د کشمکش او جګړو عصر بلل کيږی او په دې زمانه کې هر څوک بايد په عين حال کې سرباز واوسی، ځکه چې هغوی مجبور وو چې خپل حاصلات، رمې او هستوګنځی له بومی لوټمارانو څخه خوندی وساتی. او د دی ترڅنګه په خپله د دوی ترمنځه ذات البينی اقتصادی توپيرونه هم موجود وو. يعنی د دوی د ساحی او نفوذ په زياتيدو سره ورو ورو سرداران منځ ته راغلل او د خپلو متصرفاتو پراختيا ته يې لاسونه واچول.

نو دا ده چې د هميشنی دفاع او جګړی د پاره يې د وسلی د ودی او حربی آلاتو لاښو جوړولو باندې شروع وکړه»[1] او د پوځی مفکوری هسته

---

۱ - دولاقوز، تاريخ هند، فارسی ترجمه، ص ۷-۸ په حواله.

منځ ته راغله. ګورو چې د ویدی په عصر کې د اردو مسلکونه چې ریګوید کې ورته اشاره کړی ده لاندې صنفونه موجود و:

- پیاده صنف.
- سواری صنف چې اسان او پیلان په دغه صنف کې شامل و.
- د مخابری صنف چې ډول وهونکی څخه عبارت و.

په جګړو کې په اعظمی توګه چټکو ګاډیو څخه استفاده کیدله «په جګړه کې د ګاډیو د چټکتیا څخه په اعظمی ډول استفاده کیدله لکه د ننۍ زرهدارو قوت، دی واسطی دښمن تر پښو لاندې کاوه»[۱].

د ویدی دورې وسلې چې د ریګوید په سرودونو کې معرفی شوی دی ډیره ښه وسله لیندۍ وه چې په ویدی ادبیاتو کې ډیره سپیڅلی وسله ګڼل کیدله.

«همداشان توری، دودمه، تبرزین، نیزی، ژوبین (لنډی نیزي)، فلاخن، پیش قبضه، خود (خول)، زره، او د ولو د ساتلو زره په آریایانو کې ۴۰۰۰ کاله دمخه رواج درلود»[۲].

که د اوستایی عصر پوځی تشکیلاتو ته نظر واچوو ګورو چې په دې عصر کې هم پیاده، سواری او جنګی ګاډۍ صنفونه موجود دی، خو په دغه وخت کې مدافعی وسلو ته ډیر اهمیت ورکول کیږی چې عبارت و له زرادهه خود (خول)، خودهه، ایوخودهه، زرا بنوه خوده، کویری، پیتی دانه، کامره (کمربند چې توره پکې ځړول کیږي)، رانه پانه، سپاره داشته او نور.

**تعرضی وسله یی عبارت وه له:**

ګرز، وجره، چکوشه، لینده (د جنګ د فاتح لقب یې اخستی دی).

په دغه دروه کې سفری اردو هم منځ ته راغلې چې په غیر منتظره واقعاتو کې همیشه د اماده باش (تیارسۍ) په حالت کې وو.

---

۱ - جلالی علی احمد، مطالعه تاریخ افغانستان از نګاه عسکری ج ا، مطبعه اردو ۱۳۴۳ کابل، ص ۴۶.
۲ - نړیوال رازقی، پوهنوال محمد صدیق، د افغانستان پوځی تشکیلات، اردو مطبعه ۱۳۸۸، ص ۲۵.

په اوستایي دوره کې پهلوانانو توره او خنجر هم استعمالاوه نو ځکه د اوستا د وسلو اهمیت په دې کې دی چې په دی دوره کې پهلوانانو له نژدی څخه محاربه کوله.

په دغه برخه کې داسی جوتیږی چې که د وسلی په توګه د تیږو او صیقلی تیږو څخه نیولی تر پورتنیو وسلو استفاده شوی چې ټپ، ترضیض او خلع یې منځ ته راوړی او د هغو سره روغتیایی مرستی شویدی او هرو مرو روغتیایی پرسونل د جګړو په صفونو کې ګډون کړی دی. او د تاریخی اسنادو له مخی ویلای شو چې د روغتیایی مرستو لپاره یو کس چې هم طبیب او هم درمل جوړونکی و ګډون کړی چې تر منځنیو پیړیو (اسلامی دوری) پوری دوام درلود او وروسته جراح (زخم ګندونکی) او درمل جوړونکی د اردو په تشکیل کې زیات شوی دی.

## په اسلامی دوره ( منځنیو پیړیو) کې د نظامی طبابت تشکیلات:

د اسلام (منځنیو پیړیو) د اردو وسلی عبارت وی له توره، نیزه، فلاخن، غشی او لینده، مقوس محرک منجنیق، نیم مقوس محرک منجنیق، اورغور ځوونکی ماشینونه او نور دی. په دغه دوره کې سره جارحه وسله ورځ په ورځ انکشاف پیدا کوی.

«په دې زمانه کې درندو ماشینونو او اورنی وسلی زیاته پراختیا وموندله ترڅو چې د محترقه او انفلاقی موادو چې دمخه یواځی باروت و مهم وسایط ایجاد شول»[1].

په دې توګه که هر څومره وسلی مدرنی کیږی په هماغه اندازه د روغتیایی مرستو حجم هم پراخیږی او د سوختګیو مقابل کې هم راز راز لاری چاری نیول کیږی. روښانه ده چې د طبی مرستو پرسونل کې هم د رشتی له کبله او هم د تعداد له کبله زیاتوالی منځ ته راځی.

همدارنګه د صفاریانو (۲۵۳-۲۹۱هـ)، ســـــامانیانو (۲۹۵-۳۸۹هـ) نظامی تشکیلات او وسلو په برخه کې چې غشی، لینده، توره، نیزه، ګرز، قمه، کمند، سیر، زره، برګتوان (داس زره) او همدارنګه د لرګیو محرک ټانکونه، منجنیق او جنګی قچ او نورو څخه استفاده شوی.

۱ - جلالی علی احمد، مطالعه تاریخ افغانستان از نګاه عسکری ج ا، مطبعه اردو ۱۳۴۳ کابل، ص ۲۰۷-۲۰۸.

خو د غزنويانو (۳۵۱-۵۹۸هـ) د دوری اردو په تشکيلاتو کې د پخوانيو په پرتله ډير زيات توپير لری. پدې صورت کې چې دلته منظم او غير منظم اردو تشکيليږی او پنځه وزارتونه منځ ته راځی چې د حربيی وزارت (د عرض وزارت) هم په دولتی تشکيل کې موجود دی. د اردو مسلکونه هم پراخيږی لکه پلی، سواری، فيل سواران، د عسکری انجينرانو ډله (استحکام)، لوژستيک (د اکمال جزوتامونه) او نور.

هغه څه چې په دغه دوره کې د يادونی وړ ده ګرځنده روغتون تشکيل دی چې په لومړۍ ځپرکی کې ور څخه يادونه شوی ده.

د غوريانو (۵۰۳-۶۱۱هـ) په دوره کې د مؤرخانو له قوله د غزنويانو د دوری ځنی پوځی تشکيلات د غوريانو په دوره کې هم پخپل حال پاتی ليدل شوی دی. او په ختيز کې د وسلو په جوړولو کې زيات شهرت درلود اوعمده صادرات يې د وسلی څخه عبارت وو.

د مغلو (۸۰۷-۹۲۰هـ) د دوری پوځی تشکيلات په هکله بايد وويل شی چې مغولو په لومړي سرکې د بدوی وسلی څخه استفاده کوله، خو د يوی خوانه د فتوحاتو پراختيا او د بلې خوانه په مستعمره هېوادونو کې د پوځی انجينرانو سره د هغوی بلديت د دوی وسلی ته په متنوع ډول وده ورکړه چې د دوی ډيره مهمه وسله لينده وه او د منجنيق څخه په لويه پيمانه استفاده کيدله په جنګونو کې د نفتو او لرګيو ټانکونو نه استفاده شوی ده.

د ګوډ تيمور وسله هم توره، لينده، غشی، نفت او منجنيق و چې ورځنی استفاده کيدله.

## د سدوزايانو(۱۱۶۰-۱۲۵۹هـ) دورى روغتيايى تشكيلات:

د تير بحث څخه معلوميږى چې د اردو په تشكيلاتو كې مختلف صنفونه او وسلى شاملې وې چې د صيقل له تيرو څخه پيل او ورپسى نيزه، لينده او غشى، مانجنيق، سره وسله او نور منځ ته راغلى چې د وسلو د ډولونو له مخى په هماغه سويه په اردوګانو كې د مصدومينو او ناروغانو د نجات او درملنى شكل جريان درلودلى دى.

نو له دې كبله په افغانستان كې عسكرى تشكيلات چې د آريانا د لرغونو مدنيتونو پسى رامنځ ته شويدى او د مختلفو پيړيو په تيريدو سره د افغانستان ملى تشكيلات چې د اتلسمى پيړۍ وروسته لكه د سدوزايى (ابدالى) او محمد زايى دورى روغتيايي تشكيلات په روښانه توګه څېړل كېږى. څرګنده ده چې نظامى تشكيلات تر زياتى اندازى پورى په ملى اقتصاد تكيه لرى او د اردوګانو د حضر او سفر ګرده تشكيلات د همغه د امكاناتو په اساس سنجش كېږى.

د دې نه په غير نظامى تشكيلات د هغه په واقعى مفهوم رامنځ ته كيداى نه شى او په ځينو مواردو كې سرابى بڼه نيسى. نو پدې تشكيلاتو كې كه څه هم ډير ناځيزوى د صحيى څانګه شامل دى او د اردو د ودى او تكامل سره طبابت هم د هغه په خواكى وده او پرمختيا كوى.

«كه د بلې زاويى څخه وكتل شى وسله وال پوځ په لويو مصيبتونو او آفتونو كې د هېواد او خلكو مرستندويه دى، ځكه چې وسله وال پوځ د وظيفى د غوښتنى له مخى د مكفى او رسيدلى پرسونل برسيره يو لړ مكفى تسهيلات لكه د كشف، پلان ګذارۍ، انتقالاتو، اعاشى، البسى، وقايوى، معالجوى او حفظ الصحه او داسى نورو لرونكى وى، او دا تشكيلات د تل د پاره د احضاراتو په حالت كې ساتل كېږى. نو ځكه د آسمانى تباه كوونكو واقعاتو لكه زلزلى، سيلاب، لويى اورلګيدنى، وچكالى، د اپيديمكو ناروغيو سره مجادله او داسى نورو پيښو په مقابل كې خدمتونه چې د بلى هيڅ ډول دستګاه له وسى پوره نه دى د ملت د پاره ترسره كړى او كوى يې»[۱].

له دې امله د وسله والو قواو په منځ ته راتلو سره څرګنده چې صحيه د هغى سره يوځاى ايجاد شوى ده.

۱ - نوروز محمد يحى اركانحرب ډګروال، د اردو مجلى، ۱۳۴۹ كالنى، ص ۵۱.

همدارنګه که چیرته د حفظ الصحی تاریخچی ته کتنه وشی داسی نتیجه لاس ته راځی چې د حفظ الصحی تاریخچه په طبعیت کې د ژوند د راڅرګندیدو سره یوځای شروع کیږی.

د عسکری حفظ الصحی تاریخچه له هغه تاریخ څخه پیل کیږی چې ملتونو د افزارو په واسطه د خپل هر ډول ملی حقوقو د مدافعی او د یوی حربی مکملی قوی په وضع کولو سره د ملت د افرادو له منځه شروع کیږی، منځ ته راځی.

نو د اردوګانو روغتیایی تشکیلات یوازی د جګړی په وختونو او د حرب په زخمیانو پوری مختص نه دی بلکې د عمومو ناروغیو په مقابله کې چې په هر وخت کې د اردو هر غړی پری اخته کیږی د خدمت کولو علاقمند دی او داهم له حقیقته لیری نه ده چې ساری ناروغۍ د حرب او سفربرۍ په شرایطو کې د جګړی د وخت د زخمیانو په نسبت ډیری زیاتی مهمی دی.

که چیرته په افغانستان کې د وسله والو ځواکونو تشکیلاتو ته نظر واچول شی نو د تاریخ له پاڼو څخه به ښکاره شی چې د ابدالیانو د دولت د وسله والو ځواکونو د بیلا بیلو څانګو د داخله، جراحی، کمپودری (دواسازی)، بیطاریه او نورو صحیه پرسونل وظیفه اجرا کوله او په هغو کې له طبابت او طبی مرستو څخه یادونه شویده چې دا دی دا موضوع د تاریخی اسنادو له مخی تر کتنی لاندې نیسو:

د اردو کالنۍ د ۱۳۴۹ د دلوی په میاشت کې «بنیان ګذاران قوای مدافعه ملی افغانستان»[1] تر عنوان لاندې داسی لولو:

د احمد شاه اردو د منظمو او غیر منظمو قواو (ملی قواو) څخه تشکیل شوی و چې په منظمو قواو کې:

۱- پلی.

۲- سواری.

۳- توپچی.

۴- لوژستیک او نور شامل وو.

---

۱ - تورنجنرال عبدالرسول، سالنامه مجله اردو، دلو ۱۳۴۹، ص-۵۰.

...چې هره قوه د ارتباطی، انشأاتی، روغتیایی مرستو، تعمیراتی، اردو بازار او نورو د تشکیل سره د عامه اړتیا وو د ناظر په نوم مقام لاندې اداره کیدل.

که د نولسمی پیړۍ نظامی تشکیلاتو مراجعه وکړو ګورو چې امیر دوست محمد خان (۱۲۵۹هـ/۱۸۳۶م) په زمانه کې په ۱۲ لویو ښارونو کې عسکری قطعات تشکیل شوی وو او روښانه ده چې په غونډونو کې روغتیایی تشکیلات هم موجود وو چې په حضر او سفر کې ناروغانو او ټپیانو سره مرستی رسولی.

کله چې امیر شیرعلی خان (۱۲۸۵هـ/۱۸۶۸م) د دویم ځل لپاره پاچا شونو د هغه وخت د تاریخی پېښو د څېړنو او تحلیل په اساس دی نتیجی ته ورسید «ترڅو پوری چې د یوه هېواد خلک د ملی قوت، ملی شتمنۍ او قومی پوځ له پلوه ښه منظم نه وی هیڅکله ورسره د نړۍ نور ولسونه، نه یوازی همدردی او خواخوږی نه شی کولای بلکې د ده سره د ددوستۍ ټینګولو او یووالی د منځ ته راوستلو خیال هم نه شی کولای» (د پښتو تاریخ دریم ټوک). د امیر شیرعلی خان په وخت کې د عسکری اصطلاحات او افسرانو رتبوی نومونه او نور منځ ته راغلل او په اتو ولایتونو کې نظامی قطعات درلودل.

امیر شیرعلی خان د لومړی ځل لپاره د افغانستان د وسلی جوړولو لویه فابریکه په بالاحصار کې جوړه کړه چې افغانی توپونه، ټوپکی او تومانچې پکې تولیدلی.

مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبی د تاریخ مختصر افغانستان کتاب کې داسی معلومات ورکوی.

د امیر شیرعلی خان په دویمه دوره کې لاندنۍ چاری سرته رسیدلی دي:

۱- په کابل کې یوه چاپ خانه پرانستل شوه.

۲- عسکری ښوونځی پرانستل شو.

۳- یو منظم اردو یې تشکیل کړ.

او په اتو ځایونو کې پوځی قومانداني او قرارګاوی تشکیلی کړی چې په قطعاتو او غونډونو کې د روغتیایی چارو تشکیلات هم موجود وؤ.

کله چې امیر عبدالرحمن خان په ۱۲۹۷هـ.ق کې د پاچهی پر تخت کښیناست منظم او غیر منظم عسکری قوتونه یی تنظیم کړل او روغتیایی مرستو رسولو له پاره په قطعاتو کې طبی تشکیلات هم موجود وو.

په کال ۱۸۸۶ حربی فابریکه یې خریداری کړه چې د بخار په قوه فعالیت کاوه او د ماشین خانی په نوم کابل کې تاسیس شوه. په دې فابریکه کې ۴.۰۰۰ تنو کارګرانو کار کاوه چې اکثره تولیدات یی نظامی برخه کې مصرفیدل، نو ځکه صحی تشکیلات که څه هم ابتدایی و خو موجود وو.

د افغـان او انګلیس د جنګونو څخه داسی نتیجه واخستله شوه چې طبی مرستی باید په یوه ځانګړی محل او د څو کسو له خوا اجرا شی. همدا و چې په کال ۱۲۵۹هـ/۱۸۸۰م د افغان او انګلیس د دویمی جګړی څخه وروسته امیر عبدالرحمن خان عصری طبابت او د ملکی او نظامی روغتونو ته پاملرنه وکړه او په باغ بالا کې پنځوس بستریز نظامی روغتون یې تاسیس کړ. د روغتون اداره د بهجت او چرک په نوم د یوه ترکی دوکتور په غاړه وه.

د امیر حبیب الله خان تقریباً د خپل پلار امیر عبدالرحمن خان د عسکری تشکیلاتو په چوکات اکتفا وکړ او د ضرورت له مخی یې پکې سرسری بدلونونه رامنځ ته کړل. «په هر غونډ کې یو روغتون تشکیل شو چې (یو داکتر، دوه جراح او کمپودر)، آشپز، دهولی، سقاو او جاروکش موجود وو»[1] البته دی طبی پرسونل د طب او درمل جوړولو عالی تحصیلات نه درلودل.

په کال ۱۹۰۹ کې حربی ښوونځی تاسیس شو چې په هغه کې ترکی او افغانی استادانو تدریس کاوه او د جمناستیک یو تن هندی ښوونکی چې شاه جی نومیده درس ورکاوه. همدارنګه دغه ښوونځی لوی او پراخه باغ درلود چې په هغه کې یو روغتون موجود ؤ. احتمال دا دی چې د دې روغتون مسلکی غړی په منځنی سویه وو او د هندی اطباو څخه زده کړه کړی دی.

په کال ۱۲۸۹هـ/۱۹۱۱م کې په پل محمود خان کې یو ملکی روغتون تاسیس شوی چې په دې توګه د امیر حبیب الله خان د سلطنت په دوره کې د کابل په ښار کې دوه روغتونونه موجود وو.

---

۱ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، مطبعه دولتی ۱۳۴۶ کابل، ص-۶۸۰.

«د امیر حبیب الله خان د سلطنت په وخت کې یو ترکی نظامی داکتر چې مسلک یی جراحی وه د منیر بیگ په نامه یادونه شوی ده. نوموړی دوکتور د جراحی په عملیاتو کې د فوق العاده ستونزو سره مخامخ و او خپل عملیاتونه یې پر هغه میز باندې چې شهزادگانو پوری مربوط و تر سره کاوه»[1].

د غازی امان الله خان د سلطنت په وخت کې باید وویل شی د لومړی ځل لپاره د دفاع په وزارت کې د طبیه مدیریت تشکیل شو چې «د امانی دولت د نظام نامو په اثر کې (در بخش نظام نامه تشکیلات اساسیه افغانستان ۱۵ دلو ۱۳۰۲ در ماده ۷ وزارت حربیه) داسی لیکل شوی دی چې د هغو له دوایرو څخه یکې یادونه شوی او د دی مادی په ۶ بند کې د طبیه مدیریت نوم اخستل شوی دی»[2].

د دفاع وزارت د تشکیلاتو او سفربرۍ د مدیریت د ۱۳۰۳-۱۳۰۴ کال کالنۍ کې د روغتیایی پرسونل د یو شمیر کسانو له تغیر، تبدیل او ترفیع څخه یادونه شوی ده. او همداشان په مکتوبونو کې د منسوبینو د تغیر او تبدیل کې د میاشتنی او کلنی معاش اندازه لیکل شوی دی. د بیلگی په توگه د ۴۶ – ۷سرطان ۱۳۰۳ مکتوب پر اساس شهنواز خان جراح د څلورم غونډ طبیب مقرر شؤ د ده میاشتنی معاش اوه سوه روپۍ سمی دی او یا د همدی مکتوب مطابق، ملا جمعه خان د روغتیا طبیب له څلورم غونډه دریم غونډ کې مقرر شو او د ده معاش دری شپیته روپۍ دی.

له دې مثالونو څخه جوته کېږی چې د اردو په قطعاتو کې د صحی تشکیل نیول شوی خو د هماغه وخت د امکاناتو له مخی دومره پراخ نه و. د مثال په ډول، د طیاری د قوماندانی د صحی تشکیل چې د ۱۳۰۴ د وری په ۲۲ پیشنهاد او منظور شوی، یو تن کمپودر، ټپ گندونکی (جراح)، د ناروغ تخلیه کوونکی او تحویلدار ته ځای ورکړ شوی دی چې دا څلورو اړه د طیاری د قوماندانۍ د درستیزوال تر اداري لاندې وظیفه اجرا کوله او هم د دوی د پاره د شیرپور په هوایی ډگر کې یوه کوچنۍ کوټه ورکړ شوی وه.

د اردو د روغتیایی خدماتو د برخی د لارښودو اسنادو او وثایقو په باب حتی په ډیرو لیریو زمانو کې اقدامات شویدی چې د مثال په توگه په یقین سره باید وویل شی چې دا به د افغانستان د اردو د طبابت لومړنۍ لایحه

۱ - مجله کار، شماره ۶-۷، ۱۳۶۹.

۲ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، مطبعه دولتی ۱۳۴۶ کابل، ص-۷۹۵.

وی، چې د دې لايحې د رسمي چارو په اړوند چې د تشکیلاتو د رياست د ۱۳۰۶ په کالنۍ کې تری يادونه شويده داسې ويل شوي دي:

د حربيه وزارت د مکتوب عنوان – د هغې لاندې طبيه دايره ليکل شوی. د مکتوب نمره ۵۹ او تاريخ ۲۶ ورى ۱۳۰۶ دی. د مکتوب متن په لاندې ډول دی:

«ص داکتر بهجت بيگ قبل ازينکه به وطن خود نرفته بود يک لايحه براى اداره و اجرات داخلى شفاخانه قول اردو ترتيب و تنظيم نموده بود. از طرف مجلس عسکرى وزارت تصويب و جهت پيدا نمودن صورت قانونى به رياست شوراى دولت فرستاده شده بود که رياست شورا بچند مواد آن تعديلات لازمه ديده فکر خود را به وزارت حربيه ارقام کرده بود، چون آنوقت شفاخانه قول اردو مربوط به مديريت مستقله طبيه بود که براى ج محمد اکبرخان مدير مستقله طبيه فرستاده شده بود.

اينکه لايحه داکتر موصوف که عبارت ازهشت ورق است براى تان فرستاده شد تا به توسط داکتران شفاخانه هاى مربوط قول اردو دران غور نموده جواب داکتران را به وزارت حربيه مرقوم داريد که بعد به ملاحظه رياست شورا فرستاده شود».

د پورتنی مکتوب له متن څخه معلوميږی چې په دې وخت کې قول اردو يو روغتون درلود او د دفاع وزارت په چوکاټ کې کوم مستقل روغتون وجود نه درلود. لکه چې د ۳۱۲۰ – ۱۳۰۶/۲/۲۴ د مکتوب په اساس چې د دفاع وزارت د طبيه دايرى له خوا ليکل شوی و په هغه کې يادونه شوی وه چې د ښوونځيو او نور ناروغان د قول اردو په مرکزى روغتون کې بستر او تداوى کيږى. ځکه چې حربيه وزارت له ځانه روغتون نه لرى. يواځې په مستعجله ښوونځی او پياده تعليم گاه کې يو يو کتنځی موجود دی.

د ۱۳۰۶ کال له اسنادو څخه همداشان جوتيږی چې ش محمد آصف خان طبيه مدير او د عسکرى روغتون مدير هم و. او په همدی کال کې د روغتيايي يو شمير پرکمشران تر تعليم لاندې نيول شوی او په همدی نيټه تر فراغت وروسته د شاهی ماشيندار ټوليو په بست کې نيول شوی وو.

په همدې توگه په دې کال (۱۳۰۶) کې د حربيه د ښوونځی په پروگرام کې په اونۍ کې څلور ورځی د طلابو د پاره انسانی او حيوانی حفظ الصحوی لوستونه نيول شوی او بهجت بيگ د مرکز د روغتون داکتر او سر بيطار سيد دلاور علی شاه خان د تدريس چارى په غاړه درلودلی.

په همدې شان افغانی هیئت چې د ۱۳۰۵ د مرغومی په ۱۸ نیټه شوروی اتحاد ته روان شو ؤ، د دوی په پلان کې د فابریکو، موسساتو او نورو په جمله کې د ګرځندو (سیارو) او ثابتو عسکری روغتونونو څخه کتنه هم شامله وه چې د ماسکو په ښار کې یې د عسکری د دریم نمبر روغتون څخه کتنه کړې ده.

د روغتیایی خدمتونو د تشکیلات جوړښت له نقطه نظره باید وویل شی چې یو شمیر اسناد شته دی چې له هغو څخه یادونه او نتیجه ګیری کیدلای شی.

امیر امان الله خان روغتیایی چارو ته ډیره پاملرنه درلوده او کله چې په ۱۳۰۴ کال یې کندهار ته سفر وکړ نو د ولایت د نورو چارو د تفتیش په جمله کې ملکی او نظامی روغتونونه هم کنترول شوی دی. نوموړی په ۱۳۰۴ کال د لړم ۲۱ د جمعی ورځی په خطبه کې داسی وویل «اشخاصیکه مجروح میګردند علی الفور به شفاخانه های سیار نظامی تحت معالجه قرار ګرفته میشود»[1] او د پوځی چارو د طبابت په باره کې ویلی چې محمد سرور خان کمپودر چې د ده کارونه هیڅ اساس او ترتیب نه درلود ...د نظامی خدمت څخه طرد شو او د روغتون تحویلدار ۴۰ ورځی حبس شو.

۱ - سرمحقق نصرالله سوکمن و فرهاد محقق ظریفی، نطق های اعلحضرت امان الله، ۱۳۷۰، ص-۴۷.

**په نظامی طبابت کې د هندی او ترکی ډاکترانو ونډه:**

د افغانستان او ترکیي جمهوریت ترمنځه دوستانه اړیکی په تیره بیا کلتوری، فرهنګی او نظامی مناسبات له انګلیس څخه د افغانستان د استقلال تر استرداد او د ترکیي د جمهوری رژیم تر تاسیس وروسته شروع شول.

د دواړو هیوادونو د اړیکو د لا ښه کولو په خاطر یو لوړ رتبه پلاوی چې د هغه په ترکیب کې دکتور حیدر بیګ (حیدر اوزاق) هم شامل و او د ترکیي د دفاع وزرات د روغتیایی چارو په دایره کې یې د مدیریت دنده درلودله افغانستان ته راولیږل شو. نوموړی جګړن په افغانستان کې د طبی پرسونل د روزنی په باره کې د نظریاتو ورکولو او همدارنګه د هغو روغتیایی تاسیساتو په اړوند چې د جوړیدو په حال کې وو د ځیرنی په خاطر نسبتاً ډیره موده په کابل کې تیره کړه.

په ۱۳۰۱هـ/۱۹۲۲م کې د افغانستان د هغه وخت د حکومت د غوښتنی له مخی په کابل کې د طب پوهنځی د تاسیسولو لپاره د جبجی د روغتون د جراحی متخصص دګروال دوکتور رفقی بیګ (رفقی اورګا) یی کابل ته راولیږه نوموړی د جراحی په څانګه کې مهارت درلود.

«په دې ترتیب د دواړو هیوادونو (افغانستان او ترکیه) دوستانه ژور اړیکو لاقوت او تینګښت وموند او ترکانو د افغانستان د اردو د پوځی زده کړو او روغتیایی چارو کې د یادونی وړ ونډه واخستله. په دې وخت کې جمال پاشاه، بدری بیګ، ضیأ بیګ، جنرال فخرالدین پاشاه، جواد بیګ، او جنرال کاظم پاشاه داګرده د ترکیي کار پوه شخصیتونه وو چې افغانستان ته یې خدمت کاوه»[۱].

په ۱۹۳۶-۱۹۳۷ کال په سمت جنوبی کې ښورښ اواله ګوله را پیدا شوه چې د وخت پاچا پروفیسور زهتو برګه، دوکتور ربیعی بیګ د یوه تن هندی داکتر سره مؤظف کړل چې د هغو افسرانو او عسکرو روغتیایی وضع له نظره تیر کړی چې په عسکری سوقیاتو کې یې برخه اخستی وو، چې په اخیر کې دغو داکترانو یو راپور ترتیب او پاچا ته یې وړاندی کړی و. په دې راپور کې د حربیي وزارت په تشکیلاتو کې د یو مشاور دوکتور موجودیت لزوم هم په ګوته شوی و.

باید وویل شی چې د امیر حبیب الله خان سراج تر سلطنت وروسته د دفاع وزارت په تشکیلاتو کې د پاچا په امر د اردو روغتیایی چارو

۱ - میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، جلد اول، مطبعه دولتی ۱۳۴۶ کابل، ص-۷۸۸.

مشاوريت منظور شوی دی. د دې پُست د اشغالولو لپاره د استنبول د روغتون پروفيسور سوريــــا تانـــای نوميده چې په ۱۳۰۸هـ/۱۹۳۹م کال په افغانستان کې دغه دنده واخيست. نوموړی په حربی وزارت کې د اردو د روغتيايی چارو د مشاوريت تر څنګه د حربيی په ښوونځی کې د حفظ الصحی د معلم په حيث هم تدريس کاوه.

ترکی داکترانو له ۲-۳ کلونو پوری په افغانستان کې خدمت کاوه او په ترکيه کې يې رتبه، معاش او نور امتيازات شخصاً په خپله ده ته او يا يی کورنۍ ته ورکول کيده. افغانی لوری پرته د تګ راتګ له لګښته چې د يو کس لپاره ۱۰۰ انګليسی پونډه کيدل او د يو کور څخه نور څه نه ورکول.

په افغانستان کې ترکی افسرانو افغانی يونيفورم اغوسته او د هغی رتبی نه يوه رتبه پورته چې په ترکيه کې درلودله قبليده.

په لومړی سرکې د دوکتورانو انتخاب د ترکيی د حکومت له خوا ؤ چې د وخت د تيريدلو سره ورو ورو د استخدام شرايط د افغانستان له خوا وضع شول.

لومړی هغه داکتر چې تردی شرايطو لاندې د وسله وال پوځ د خدمت په خاطر کابل ته راغی تورن داکتر غالب صبری ګوکړ د ولادی نسايی متخصص و. تر ده وروسته بيا نور متخصصين لکه د جراحی دوکتور سلامی «اهاد»، جګړن دوکتور عابدالدين آغا انګيس شوی، جګړن دوکتور تاج الدين اميز، جګړن دوکتور خليل ګورون، تورن دوکتور طالب روز دولای، جګړن دوکتور حليمی اوزګون، جګړن دوکتور کپتيان اوغلو (دغه وروستی دوکتور په کال ۱۳۳۹ د حربی پوهنتون (مکتب حربيه) چې دا وخت يې د کابل په بالاحصار کې موقعيت درلود د لومړی ټولګی د عسکری کيمياو ګاز (A.B.C- اتومی، بيولوژيکی او کيمياوی وسله) درس پرمخ بيوه چې پوهاند عبدالحی مؤمنی او پروفيسور دوکتور عبدالقيوم طوطاخيل هم د ده شاګردان وو).

همدارنګه جګړن دوکتور توفيق اوسر، جګړن دوکتور نورالدين اوزل، جګړن دوکتور خيری، جګړن دوکتور صبری اونات، جګړن دوکتور اژدت التان، ډګرمن دوکتور همزه واحد ګوغم، تورن دوکتور شوکت تکسيمان او درمل جوړولو جګړن شکری بيګ وو.

جګړن پروفيسور شکری بيګ د اوسنی روغتيايی چارو د ودانيو کومپلکس (ديپوګانی، د درملو د اعمال لابراتوارونه، د الکولو د استحصال د ستګاه او نور)، د صحيی عينياتو تعليمات نامه (۱۳۲۸)، نور لارښوونکی

اسناد یې منځ ته راوړل او د نظامی درمل جوړونکو روزنه د شکری بیګ د زحمتونو مرهون دی.

(باید وویل شی چې د ۱۳۸۱ کال په وروستیو کې د روغتیایی چارو ټولی ودانۍ او د شیرپور تاریخی ودانۍ ړنګی شوی او ځمکی یې د انتقالی دولت رهبری او قوماندانانو خپل منځ کې و وویشلی. په شیرپور کې چې دیپوګانی موجودی وی داسی اعمار شوی وی چې د کال په ټولو موسمونو کې د درملو او لوازمو ساتنی او محافظی ټول تدابیر نیول شوی وو. همدارنګه په لابراتوارونو کې راز راز تابلیتونه، بندیچونه، سیرومونه، زرقی محلولونه او نور لوازم جوړیدل چې بیرته احیا نه شول او د ودانیو او دیپوګانو ټول د انتقال په وخت لوټ او تالان شول– مولفین).

نوموړو دوکتورانو به د استانبول، بغداد، بصری، کراچۍ، پیښور له لاری کابل ته راتلل او د بیرته ستنیدلو لاری یې هم داوی.

د اعلحضرت محمد نادر خان په وخت کې چې شاه محمود خان د حربیی وزیر په حیث وټاکل شو او د پل محمود خان ملکی روغتون یې په عسکری روغتون بدل کړ او اداره یې د هندی دوکتورانو په غاړه وه. چې د اردو روغتیایی چارو د مشاوریت خدمت دوکتور قریشی، دوکتور عبدالغنی او دوکتور هاشم خان په دې روغتون کې تر سره کاوه. په ۱۳۱۰ کال داکتر قریشی د روغتون د سرطبیب په توګه دنده اجرا کاوه.

د افغانی نظامی طبابت لومړی ډله عبارت له مرحوم غلام حسین خان جراح، دوکتور فقیر محمد خان، دوکتور حاجی غلام حسین خان د غوږ‌استونی او پوزی داکتر او دوکتور عزیزالدین خان څخه و چې په دې روغتون کې مؤظف شوی وو.

په کال ۱۳۲۳ کې دغه روغتون نیمه اختصاصی روغتون ته ارتقا وکړ چې زیات داکتران یې تربیه کړی او اوس یو تخصصی روغتون دی. په دغه روغتون کې اوس د نری رنځ، جلدی، عقلی او اعصابو او داخلی ناروغان تر درملنی لاندې نیول کیږی.

د پل محمود خان روغتون چې د دویم لمبر روغتون په نامه نومول شوی و اوس د نظامی طبی علومو اکادمی ضمیموی روغتون په نامه یادیږی چې څلور څانګی یعنی داخله، جلدی، غوږ‌ستونی او پوزی، عقلی او عصبی او نری رنځ لری.

په کال ۱۳۱۸هـ/۱۹۳۹م د حربیې وزیر شاه محمود خان او د مرکزی قواو قوماندان جنرال محمد داود خان د نظامی روغتون د پراختیا په هڅه کې شول، دا وه چې د کابل د هوایی ډګر ته څیرمه ودانۍ چې هلته موجودې وی لاپراخی کړی. او په دې توګه نظامی روغتون د کابل ښار په شمالی برخه کې جوړ شو چې د دی روغتون په جوړولو کې د جګړن دوکتور غالب ګوکر خدمتونه د هیریدلو نه دی. دغه روغتون د قوای مرکز روغتون په نامه ونومول شو. باید وویل شی چې پخوا د قول اردو مرکزی روغتون چې د کابل ښار په باغ بالا کې یې موقعیت درلود د قوای مرکز د روغتون دندی په غاړه درلودلی.

د روغتون او د اردو د جزوتامونو د طبی کادرونو د بشپړتیا په خاطر د طب د پوهنځی فارغانو ته نظامی رتبی ورکړ شوی او د داکتر په حیث یې په نظامی خدمت پیل وکړ په دې وخت کې ترکی داکترانو د حربیه وزارت د روغتیایی چارو د مشاوریت او د مرکزی قوا د دری سوه بستریز روغتون چې د کابل ښار په شمالی برخه کې جوړ شوی و د معالجو داکترانو په توګه وظیفه اجرا کوله.

هندی داکترانو د پل محمود خان د روغتون چې ډیر لومړنی (ابتدایی) و چاری اجرا کولی په دې روغتون کې انګلیسی او امریکایی دوکتورانو هم دندی درلودی.

د نظر وړ مقررو او تعلیمات نامو تدوین هم د دوی له خوانه تهیه کیده چې د اردو په مختلفو جزوتامونو کې د روغتیایی خدمتونو د عملی کولو د پاره زمینه برابره کړه.

د ترکی نظامی دوکتورانو خدمتونه چې د افغانستان په اردو کې ترسره کول د ډیری قدردانۍ وړ دی ځکه په دغه وخت کې په کابل کې دوه قول اردوګانی، یو شاهی ګارد او یو شمیر نظامی ښوونځی هم موجود وو. د دوی د روغتیایی چارو د بررسۍ په خاطر د نظامی روغتون چاری باید مرتبی او منظمی وی، چې د دی مقصد د پاره جګړن دوکتور صبری اناث د مرکزی قوا د سرطبیب به حیث استخدام شو. نوموړی یو زیارکښ شخص و او د ده د وظیفی د تصدی په وخت کې د قوای مرکز روغتون د ودانۍ ساختمان او ملحقاتو په کار کې چې وروسته د لومړی لمبر روغتون په نوم یاد شو او شهرارا ته نژدی پروت و اقدام وکړ ځکه دغه ودانۍ په لومړی سرکې د آسانو طویلی وی. په همدې ډول د هغو ځوانو داکترانو د علمی

سویې په لوړولو کې چې د ده تر امر لاندې ورکړ شوی وو زیات زحمتونه وګالل.

په همدې وخت کې ډګرمن دوکتور نورالدین جمیل اوزل د حربیه وزرات د روغتیا د مشاور په حیث وظیفه اجرا کوله او د دی ترڅنګه یې په روغتیایی چارو کې د مرستندویه پرسونل د روزلو په خاطر لکه نرسنګ، جراح، واکسناتور او داسی نور لازم کورسونه پرانسیتل د حفظ الصحی مضمون یې د حربیه مکتب شاګردانو ته تدریس کاوه.

تر دې وروسته دوکتور توفیق اوسر د قوای مرکز د سرطبیب په حیث کابل ته راغی. ترکی نظامی داکترانو په افغانستان کې لکه د داخلی دوکتورانو په شان د کتنځیو د پرانستلو حق درلودل. د دوی د معاینی فیس (۱۰) افغانی چې د ترکیی د دوه لیرو سره برابره دی ټاکل شوی و.

په همداشان وړاندیز وشو چې نظامی دوکتورانو د پاره د ستاژ یوه دوره تر تطبیق لاندې ونیول شی. د ستـــاژ په دې دوره کې به دوکتورانو په حضر او سفر کې د اردو د جزوتامونو په مختلفو قدمو کې وظیفی درلودلی، همداشان د اکمالاتو طریقی او روغتیایی خدماتو د اکمالاتو قدمی او داسی نور علاقی وړ مسایل لکه د تشخیص په مورد کې، د لابراتواری وسایلو استعمالول، د عدلی طب او د طبابت تاریخ پرنسیبونه او د ساری ناروغیو سره د مجادلی طریقی زده کول.

په دې اړوند هغه تعلیمات نامه چې د ډګرمن دوکتور کامل کپیتان اوغلو له خوا تهیه او د اړوندو مقاماتو له خوا تسجیل شوی وه په هر اړخیز ډول یې په دې مورد کې قانونی خلاوی ډکول.

په عین وخت کې یو شمیر افغانی نظامی دوکتوران د تخصص د بشپړولو په خاطر بیاهم ترکیی ته لیږل کیدل. په همدی ډول د نظامی محصلینو څو دوری هم ترکیی ته لیږل شوی چې تر تحصیل وروسته به د تخصص په سویه افغانستان ته راستنیدل. محصلین د طب په څانګو، درمل جوړولو، او وترنرئ په مسلک کې د تحصیل لپاره ترکیی ته لیږل کیدل، چې د دوی لومړی دوره (د طب د څانګو د داخله، جراحی)، دواسازی او وترنری محصلین په ۱۳۳۸ کال چې شمیر یې یولس تنه وو او د حربی ښوونځی څخه د زده کړو لپاره ترکیی ته روان شول.

**نظامی طبابت د محمد نادر شاه په دوره کې:**

په ۱۳۰۸ کال کې د افغانستان ټولی اقتصادی او فرهنګی منابع دوباره په اعاده کولو پیل کوی او په دی ډګرونو کې اضافی پراختیاوی شروع کیږی. مرحوم ظریف صدیقی د ۱۳۴۹ کال د کالنۍ په ۹۶ مخ کې د (نظری به اردوی افغانستان در سال ۱۳۰۸) تر عنوان لاندې مقاله لیکی.

د حربیه په وزارت کې د طبیه مدیریت تشکیل و چې د طبیه مدیر یې کندکمشر قطب الدین خان و.

همداشان نظامی روغتونونه بیرته فعال کړی شول لکه چې دی مهم کارته د پوره پاملرنی له مخی د یو کال په موده کې چې حربیه وزارت تشکیل شو په مرکزی روغتون کې ۲۵.۶۴۱ تنه نظامی ناروغان او ۸.۵۳۰ تنه ملکی ناروغان تداوی شول.

نوموړی د پورتنی مجلی په ۶۵ مخ کې د ۱۳۱۲-۱۳۱۷ کلونو په اړوند لیکی: په ۱۳۱۲ کال د دفاع وزارت یو ثابت تشکیل درلود چې د صحیه او بیطاریه مدیریت د هغه په تشکیل کې موجود وو. پخوا تردی چې د اردو د روغتون (پل محمودخان) د طبی پرسونل د روزنی په باره کې بحث وشی بهتره به وی چې د نظامی طبابت تشکیلاتو ته اړوند (په ۱۳۰۸ کال) کتنه وشی.

په ۱۳۰۸ کې د حربیه وزارت د صحیی مدیر شجاعت مند (ش) سردار قطب الدین کندکمشر او غیرتمند (غ) عبدالطیف خان ټولیمشر د صحیه سرکاتب و.

د عسکری مجلس د فیصلی په اساس د قول اردو د مرکزی روغتون تشکیل په لاندې ډول دي:

| نمبر | تفصیلات | میاشتنی معاش (تنخواه) | کلنی معاش (تنخواه) | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | سرطبیب یو نفر د غونډ مشر په رتبه | ۲.۰۰۰ | ۲۴.۰۰۰ | |
| ۲ | د سرطبیب مرستیال د کندکمشر په رتبه دوه کسه | | | |
| | - یوتن سارجن اسیستانت | ۱.۵۰۰ | ۱۸.۰۰۰ | |
| | - یوتن د سارجن سب | ۶۰۰ | ۷.۲۰۰ | |
| ۳ | درمل جوړونکي د تولیمشر په رتبه- د درملو په تحویلۍ مکلف دي | ۱۵۰ | ۱.۸۰۰ | |
| ۴ | درمل جوړونکي دوه تنه د بلوکمشر په رتبه د فی نفر معاش سل افغانۍ | ۲۰۰ | ۲.۴۰۰ | |
| ۵ | سرجراح یوتن د تولیمشر په رتبه- د جراح خانی په تحویلدارۍ مکلف دي | ۱۵۰ | ۱.۸۰۰ | |
| ۶ | جراح دوه تنه د بلوکمشرۍ په رتبه- د یوتن معاش سل افغانۍ | ۲۰۰ | ۲.۴۰۰ | |
| ۷ | د اعاشې او البسې تحویلدار د تولیمشر په رتبه | ۷۰ | ۸۴۰ | |
| ۸ | پرستار ۵۰ تنه د فی نفر معاش ۳۵ افغانۍ | ۱.۷۵۰ | ۲۱.۰۰۰ | |
| ۹ | خدمتی ۷ تنه د فی نفر معاش ۲۳ افغانۍ | ۱۶۱ | ۱.۹۳۲ | |
| ۱۰ | اشپز دوه تنه د فی نفر معاش ۳۵ افغانۍ | ۷۰ | ۸۴۰ | |
| ۱۱ | سقاو دوه تنه | ۴۶ | ۵۵۲ | |
| ۱۲ | جاروکش دوه تنه | ۶۹ | ۸۲۸ | |
| ۱۳ | باغوان(باغبان) درې تنه فی نفر معاش ۲۳افغانۍ | ۶۹ | ۸۲۸ | |
| ۱۴ | خرکار یوتن | ۲۳ | ۲۷۴ | |
| ۱۵ | دوبی دوه تنه د فی نفر معاش ۵۰ افغانۍ | ۱۰۰ | ۱.۲۰۰ | |
| ۱۶ | دلاک یوتن | ۴۴ | ۵۲۸ | |
| ۱۷ | د روغتون مدیر د کندکمشر په رتبه یوتن | ۱۵۴،۵۵ | ۱.۸۵۰،۶ | |
| ۱۸ | د روغتون سرکاتب د تولیمشر په رتبه یوتن | ۱۱۳،۶۴ | ۱.۳۶۳،۶ | |
| ۱۹ | د روغتون کاتب د بلوکمشر په رتبه یوتن | ۶۸،۹ | ۸۱۸،۲۸ | |

(د قندهار، هرات، مزارشریف، مشرقی سمت، جنوبی سمت) د هریوه ولایت د مرکزی روغتون هیئت:

| نمبر | تفصیلات | میاشتنی معاش (تنخواه) | کلنی معاش (تنخواه) | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | داکتر یوتن د کندکمشر په رتبه | ۱.۰۰۰ | ۱۲.۰۰۰ | |
| ۲ | سرکاتب یوتن د تولیمشر په رتبه | ۸۳،۹۰ | ۱۰۰۹ | |

| نمبر | تفصیلات | میاشتنی معاش (تنخواه) | کلنی معاش (تنخواه) | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۳ | کاتب یوتن د بلوکمشر په رتبه | ۵۴،۵ | ۶۴۵ | |
| ۴ | کمپودر دوه تنه د بلوکمشر په رتبه د فی نفر معاش ۱۲۰ افغانۍ د درملو په تحویلدار مؤظف او د یوتن ۸۰ افغانۍ، د دوو نفر | ۲۰۰ | ۲.۴۰۰ | |
| ۵ | محافظ (پرستار) ۶تنه د یوتن معاش ۳۵ افغانۍ | ۲۱۰ | ۲.۵۲۰ | |
| ۶ | د داکتر د پاره خدمتی ۲تنه د یوتن معاش ۲۳ افغانۍ | ۴۶ | ۵۵۲ | |
| ۷ | د اعاشی او البسی تحویلدار یوتن د بلوکمشر په رتبه | ۵۰ | ۶۰۰ | |
| ۸ | آشپز دوه تنه یو طباخ او بل یی لاس لاندې د دواړو معاش | ۶۰ | ۷۲۰ | |
| ۹ | جاروکش یوتن | ۲۳ | ۲۷۶ | |
| ۱۰ | سقاؤ یوتن | ۲۳ | ۲۷۶ | |
| ۱۱ | باغوان دوتنه د یوتن معاش ۲۳ افغانۍ | ۴۶ | ۵۵۲ | |
| ۱۲ | خرکار یوتن | ۲۰ | ۲۴۰ | |
| ۱۳ | جراح یوتن د بلوکمشر په رتبه د جراحی د سامان د تحویلداری موظف | ۱۰۰ | ۱.۲۰۰ | |
| | **ټول** | ۲۳.۰۸۰ | | |

د میمنی او فراه د اعلی حکومتونو د مرکزی روغتونونو هیئت:

| نمبر | تفصیلات | میاشتنی معاش | کلنی معاش | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | داکتر د کندکمشر په رتبه یوتن | ۱.۰۰۰ | ۱۲.۰۰۰ | |
| ۲ | کاتب د بلوکمشر په رتبه یوتن | ۵۴،۵ | ۶۴۵ | |
| ۳ | کمپودر د بلوکمشر په رتبه یوتن د ادویی تحویلداری یی هم په غاړه لري | ۱۰۰ | ۱.۲۰۰ | |
| ۴ | جراح د بلوکمشر په رتبه یوتن د جراح خانی د سامان تحویلداری په غاړه لري | ۱۰۰ | ۱.۲۰۰ | |
| ۵ | محافظ (پرستار) دری تنه د یوتن معاش ۳۵ افغانۍ | ۱۰۵ | ۱.۲۶۰ | |
| ۶ | خدمتی یوتن | ۲۳ | ۱۷۶ | |
| ۷ | تحویلدار بلوکمشر یوتن د البسی او اغذیی تحویلدار | ۵۰ | ۶۰۰ | |
| ۸ | طباخ یوتن | ۳۰ | ۳۶۰ | |
| ۹ | سقاؤ یوتن | ۲۳ | ۲۷۶ | |
| ۱۰ | باغوان یوتن | ۲۳ | ۲۷۶ | |
| ۱۱ | خرکار یوتن | ۲۰ | ۲۴۰ | |
| ۱۲ | جاروکش یوتن | ۲۳ | ۲۷۶ | |
| | **ټول** | ۱۸.۶۱۸ | | |

د غونډ د روغتون هیئت:

| نمبر | تفصیلات | میاشتنی معاش | کلنی معاش | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | طبیب تولیمشر یوتن | ۶۰۰ | ۷.۲۰۰ | |
| ۲ | درمل جوړونکی بلوکمشر یوتن | ۱۰۰ | ۱.۲۰۰ | |
| ۳ | جراح بلوکمشر یوتن | ۹۰ | ۱.۰۸۰ | |
| ۴ | خدمتی د سایرپه درجه یوتن | ۲۳ | ۲۷۶ | |
| | ټول | ۹.۷۵۶ | | |

د طوپچی د غونډ تشکیل:

- طبیب او کمپودر دوه تنه

د سواری غونډ تشکیل:

- طبیب او کمپودر دوه تنه

د ګردو کسانو یعنی داکترانو، جراحانو او دواسازانو عموم معاش د قرارداد په توګه دی چې د لیاقت په اساس د سرطبیب د تصویب نه وروسته کم او زیات کیدای شی.

د قول اردو، ولایتونو او اعلی حکومتونو د داکترانو معاش د حربیه وزیر د تصویب او منظوری او د غونډونو د داکترانو او د ولایتونو او اعلی حکومتونو د مرکز د عمومو جراحانو او دواسازانو معاش د سرطبیب د تصویب په اساس تاکل کیږی.

د طبی پرسونل د روزنی په باره کې ښایی یادونه وشی چې روغتیایی افراد، واړه ضابطان (بریدملان) او منځنی طب پرسونل د داکتر مرستیال او دواساز، د صحیه او بیطاریه د مدیریت د تشکیل له لومړی وخت سره سم پیل کیږی.

«کتاب نتیجه، امتحان و تعیین درجه لیاقت داکتران وغیره به همین تفصیلات شهادتنامه برای شان داده می شود» د کتاب له مخی چې زما (مومنی) په واک کې قرار درلود چې د اردو د روغتون (پل محمود خان) د لومړی دوری فارغان په ۱۳۰۸ کال کې وو.

تر تولو دمخه د دې کتاب د خصوصیتونو په باب داسی ویل کیدای شی. د کتاب په لومړی مخ کې د افغانستان د دولت نښان مهر شوی او په چوکاټ کې یې داسی لیکل شوی دی.

این کتاب دارای ۲۰۰ صحیفه و مساوی از (۱۰۰) ورق است. یگانه جهت تحریرات امور رسمی دولت مرتب شده است. مورخه ۶ میزان ۱۳۰۸.

تر دی وروسته په نورو مخونو کې مسایل ذکر شوی چې په همدې شکل لیکل شوی دی.

مخ (　　　) د حربیه جلیله وزارت د مجله متعلق ۱۳۴۸هـ.ق/۱۳۰۸هـ.ش

| شماره | اسم | ولد | قوم | سکونت | عکس | تاریخ | نتیجه امتحان، درجه لیاقت | تسلیمی شهادتنامه | ملاحظات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | علی محمد خان ۳۰ ساله | فتح محمد خان | ارائین | شهر پشاور، باشنده گذر منډوی کابل | | ۹ شوال ۱۳۴۸<br>۲۰ حوت ۱۳۰۸ | معاون داکتری ابتدایی به امراض داخلی و خارجی بدرجه اول<br>امضای داکتر قریشي عبدالغنی شاه | بمورخ ۲۱ عقرب ۱۳۱۱ شهادتنامه را تسلیم شدم<br>امضای علی محمد | نظربه مکتوب ۹۳۷ مورخه ۱۶ مرغومی سنه ۱۳۰۹ مدیریت مستقله طبیه ملکی در اثر فرمان ۱۷۰۹ صدارت عظمی محتوی برای مجلس عالی وزرا و منظوری حضور شاهانه بوده. داکتران داخلی و خارجی افغانستان که دیپلومه رسمی نداشته اند معاون داکتر شناخته می شود و به اسم معاون داکتر یاد می شود.<br>قید ۱۶۵۱ |

په دې کتاب کې ۳۲۶ قطعی فوتو د دوی د شهرت سره موجود دی چې د کتاب ۹۳ مخونه یې ډک کړی دی. او ۹۵ مخونه یې خانه پوری شوی نه دی او سپین پاتی دی.

په دې کتاب کې معاون داکتران، کمپودران (دواسازان) او بیطاران ذکر شوی دی چې د دوی یو شمیرو څخه واړه ضابطان وو او دوباره د دی

مکتبونو تابع شوی دی او افسران منل شوی دی، د دوی د بری لیک امتیاز ۴۰ افغانۍ و. هغه وروستۍ دوره چې زیاتره یې د دوباره کورس تابع شوی په ۱۳۵۱ کې دی چې شمیری ۱۹ ته رسیږی، چې د صحیه د منسوبانو د فراغت د کلونو په موده کې به له هغوی څخه یادونه وشی.

په ۱۳۰۸هـ.ش د ۲۸ تنو په شمیر فارغ شوی (د حوت میاشت ۱۳۰۸) چې ۱۲ تنه ابتدایی معاون دوکتوران د داخلی او خارجی ناروغیو په رشته کې و، ۱۲ تنه یې ابتدایی جراحان او ۴ تنه یې لومړنی دواسازان و. د مسلک لاندې یې د ټولګی درجه د داکتر قریشی او داکتر عبدالغنی لاسلیکونه ښکل شوی دی.

د بری لیک د تسلیمدو نیټه متفاوته ده. په بری لیک کې لیکل شوی و: نظربه امتحانیکه از (    ) ولد (    ) قوم (    ) عمر (    ) ساکن (    ) گرفته شده، نامبرده به درجه (   ) دواسازی ابتدایی را حایز است. لهذا این شهادتنامه برایش اعطا گردید. تاریخ امضا ها په ۱۳۰۹هـ.ش چې د اردو د مجلی د خپریدلو لومړنی کال دی او د اسد له میاشتی پیل شوی ده. دوباره اعاده شوه ځکه چې د تاسیس کال یې ۱۲۹۸ دی. په هغی کې طبی نشرات هم ترسره کیږی چې په دی کلونو او راتلونکو کلونو کې زیاتره طبی مقالی د محترم محمد اکبر دی. د بیلګی په توګه «حرب در کوه» مقاله یې ژباړلی او د ۱۳۰۹ د سلواغی د میاشت په ۲۷ مخ کې خپره شوی ده.

د ۱۳۰۹ کال کې یوشمیر ارقام او اسناد چې په ملګروملتونو کې ثبت شوی یو هم د مسلحو قواو تشکیل او بودجه دی په دی ترتیب چې د اردو تعداد ۷۲.۰۰۰ تنه افسر او سرباز دی. پولیس ۹.۸۴۵ تنه و. په دې کال کې نظامی بودجه ۴۵.۰۰۰.۰۰۰ افغانۍ وی.

د روغتیا مدیر شجاعت مند قطب الدین خان و او داکتر انظار الاسلام قریشی د حربیه وزارت سرطبیب و. د ۴۱۱۷ لمبر (۷میزان ۱۳۰۹) فرمان له مخی د توپچی د غونډ د هیئت نوی تشکیل چې له ۳۶ ضرب څخه مرکب دی په لاندې ډول دي:

- داکتر تولیمشر یوتن.
- سربیطار تولیمشر یوتن.
- بیطار بلوکمشر یوتن.
- کمپودر بلوکمشر یوتن.

☜ جراح بلوکمشر یوتن.

همداشان په دې کالنۍ کې د طبي ځانګو او پرسونل د دندو په اړوند معلومات وړاندې شوي چې د وظایفو د لومړنۍ لایحې په توګه تري په لنډ ډول یادونه کیږی.

**د قول اردو د مربوطو څانګو مربوطی دندی**

**د قول اردو سرطبابت او مرستیال یې:**

قاعدتاً د هری قول اردو په قرارګاه کې د غندمشر په رتبه یوتن سرطبیب اود کندکمشر نه تر غندمشره پوری یو معاون او کاتب شته دی.

**د دوی دندی:**

۱- ذاتیه معاون، صحیه مامورین د ذاتیی مامورینو سره یوځای د څانګو د (شعباتو) متفقاً معاملات.

۲- د قول اردو ټول قطعات څو ځلی په خاصه توګه په مختلفو موسمونو کې تفتیش کړی او نتیجه یې مربوطه مقام ته راپور ورکول (قشلی، ارزاق او د افرادو ماکولات).

۳- د قول اردو د روغتونونو تفتیش او پلټنه.

۴- د مسئوله (ساری) ناروغیو د ظاهریدو په وخت کې د لازمو تدابیرو نیول.

۵- د سفر او یا سفربرۍ په وخت کې د قول اردو د صحیه خدمت (د صحیی د تولی او ګرځنده روغتونونو تشکیل) او د استخدام صورت.

**سربیطار او د هغه مرستیال:**

د صحیی په څیر د هری قول اردو په قرارګاه کې قاعدتاً د غندمشر په رتبه یو سربیطار او د کندکمشر په رتبه یو مرستیال او یوتن کاتب موجود دی.

**دندى يى:**

١- د ذاتيه معاملاتو د څانګو سره يوځاى د بيطاريه مامورينو شخصيه (ذاتى) معاملات.

٢- د قول اردو د حيواناتو د صحيه احوالو تفتيش لكه د آسانو، يابوګانو او د كراچى آسانو (په خاصه توګه د هغوى د اوبو ښبلو ځايونه او د حيواناتو د سطبل معاينه).

٣- د قول اردو د حيواناتو د روغتونونو تفتيش.

۴- د مسئوله (سارى) ناروغيو د ظهور په وخت كې د لازمو تدبيرونو نيول.

۵- د قول اردو د حيواناتو د سفربرئ د روغتونونو او ديپوګانو احضار او د بيطاريه خدماتو له نظره تنظيم.

۶- د بيطاريه هيئت د معلوماتو د پراختيا د پاره لازم تدبيرونه.

٧- د حضر او سفر په وخت كې د معلولو بيطاريه ضابطانو د استخدام صورت او د بيطاريه مامورينو تبديل هوا.

٨- د تقاعد او اخراج راپورونو تدقيق او تصديق په باب معلومات.

٩- په هغه سيمه كې چې قول اردو سوق الجيش لرى د حيوانى ناروغيو او اوبو په باب لازمى ښېړنى.

## د يوې فرقې د قرارګاه تشكيل او دندى

**د فرقى سرطبابت:**

قاعدتاً په حضر كې فرقه د غونډ مشر په رتبه يو سرطبيب او دوه تنه ټولى مشران الحاقى او اخراجى دوكتوران وركول كېږى. خو زمونږ په مملكت كې څه رنګه چې د صحيه تشكيلات دومره پراخ او حقيقى نه دى نو ځكه د صحى چارو د پاره د كندكمشر په رتبه يو سرطبيب او دوه نفر اخراجى كافى دى.

**دندی په لاندې ډول دی:**

۱- د فرقی همدا سرطبیب مؤظف دی چې د حضر په وخت کې د فرقی د روغتیایی تشکیلاتو له مخی د روغتیا اړوند چاری ترسره کړی.

۲- د هغو افسرانو او ضابطانو درملنه چې د غونډ په روغتونونو کې کیدای نه شی باید چې د فرقی په روغتون کې د فرقی د سرطبابت له خوا تر درملنی لاندې ونیول شی.

۳- د فرقی سرطبابت مجبور دی چې د یوه کال په اوږدو کې د ټولی فرقی د روغتیایی حالاتو په خصوص کې ځو پلا د قول اردو سرطبابت ته لازم معلومات وړاندی کړی.

۴- د فرقی سرطبابت په هغه سیمه کې چې د فرقی سوق الجیش وی د صحیه حالاتو او اوبو په باره کې د صحیی لازمی څېړنی اجرا او خپلو مربوطو مقاماتو ته وړاندی کړی.

۵- د فرقی سرطبابت هغه ضابطان چې د ارکان حربی او یا طیاره چې (پیلوټ) د پاره تفریق کیږی باید په ډیر اساسی ډول یې طبی معاینه کړی.

**سربیطاری:**

د انسانی سرطبابت په شان د کندکمشر په رتبه سربیطار او دوه تنه ټولیمشران بیطاران لری.

**د دوی دندی:**

۱- د حضر او سفر په وخت کې د فرقی د ټولو حیواناتو د عمومی روغتیا له احواله مسئولیت لری.

۲- هغه حیوانات چې د ننه په فرقه کې معالجه کیږی هغه دی د بیطارۍ او عسکری له پلوه وګوری.

۳- هغه حیوانات چې په غونډ او یا نورو مرکزونو کې نه تداوی کیږی هغه دی د فرقی خسته خانی ته راولی او دلته تداوی کیږی.

۴- سربیطار مجبور دی چې په یوه کال کې څو پلا په بیلا بیلو موسمونو کې د فرقی گرده حیوانات تفتیش او نتیجه دی، د راپور په شکل مربوطو مقاماتو ته عرض کړی.

۵- په هغه سیمه کې چې فرقه او سپړی د حیوانیه او نورو ناروغیو په باب دی لازمی څېړنی اجرا او مربوطو مقاماتو ته دی راپور ورکړی.

د طبی منځنی کادر د ښوونی او روزنی په باب باید وویل شی چې په دې کال کې ۷۶ تنه فارغ التحصیل شوی دی. د ۱۳۰۹ د وری د میاشتی له دویمی نېټی څخه د هغوی فراغت پیل کېږی د مسلک له مخی په لاندې ډول طبقه بندی شوی ده:

- ابتدایی جراحی ۲۱تنه.
- ابتدایی دواسازی ۲۱تنه.
- ابتدایی معاون داکتری د داخله او خارجی ناروغیو په رشته کې ۲۵تنه.
- ابتدایی سربیطاری ۱تن.
- ابتدایی بیطاری ۸تنه.

د پورتنی کتاب د مسلک او امتحان د درجی په جدولونو کې د داکتر قریشی او داکتر عبدالغنی خان امضاگانی او د بیطارانو د مقابلو خانه پوریو برسیره د دی دوو داکترانو پرته ملک خان د صحیه او بیطاریه د مدیریت د بیطاریه د بخش سربیطار هم لاس لیک کړی و.

د اردو مجلی د ۱۳۱۰ کالنی په دویم کال کې د محرقی د تبی د حفظ الصحی د ماهیت او اهمیت په باب لنډی او ضروری لارښوونی د ورځنیو خوراک او څښاک په نسبت او د پیاده ټولی د تشکیلاتو (صحیه، د صحیی یو خوردضابط، دوه تذکری او اته تنه تذکره وړونکی وي) او نورو وسایلو په باب یادونه شوی چې بالترتیب د خارجه وزارت د فخری کاتب محمد حسین خان (په ۴۵ مخ) او د داکتر عبدالروف قریشی په (۳۵) او (۵۰) مخونو کې لیکل شوی دی.

داکتر قریشی په دې وخت کې د حربیه وزارت (پل محمود خان) د روغتون سرطبیب ؤ.

د صحی او بیطاری تشکیل په کال ۱۳۱۰ کې پخوانی تشکیل سره زیات تفاوت نه لری چې د ۱۳۱۰ کالنی کې د دفاع وزارت دایری په لاندې ډول مشاهده کیږي:

**د حربیه وزارت د دایرو تشکیل د اردو ریاست صحیه او بیطاریه**

الف: د روغتیا ځانګه، ب: د بیطاریی ځانګه، ج: دطبیه مدیریت. دغه مدیریت د وزارت په تشکیل کې موجود و.

| | | | |
|---|---|---|---|
| د اردو ریاست تعلیه | د صحی او بیطاری مدیریت | | مدیر د آمر په درجه یوتن کندکمشر امیر محمد خان |
| | | صحیه | - سرطبیب یوتن دوکتور قریشي<br>- سرکاتب یوتن<br>- لمړی درجه کاتب یوتن<br>- دویمه درجه کاتب یوتن |
| | | بیطاریه | - سربیطار یوتن<br>- سرکاتب یوتن<br>- کاتب یوتن<br>ټول ۳تنه<br>د صحی او بیطاریی ټول پرسونل ۸تنه |

د تشکیل گراف په لاندې ډول ذکر شوی دي



په دغه کال کې د سفری فرقی تشکیل ترتیب شوی چې د ١٣١٠ کال کالنی کې داسی ثبت شوی دی.

د سفری د قرارگاه تشکیل

سرطبابت:

- سرطبیب د کندکمشر په رتبه یوتن.
- جراح د تولیمشر په رتبه یوتن.
- کمپودر د تولیمشر په رتبه یوتن.

سربیطار:

- سربیطار د کندکمشر په رتبه یوتن.
- بیطار دوه تنه.

د سفری پیادی غونډ د هیئت تشکیل

- سرطبیب د غونډمشر په رتبه یوتن.
- جراح دوه تنه.
- کمپودر یوتن.

د پیاده کندک تشکیل

- طبیب د کندکمشر په رتبه یوتن.
- جراح دری تنه.
- کمپودر یوتن.

د پیاده تولی تشکیل

- د روغتیا پرکمشر یوتن.

د ثقیل ماشیندار تولی

- د طویلی پرکمشر او د روغتیا پرکمشر دوه تنه.

د سواری غونډ هیئت

☜ سرطبیب د غندمشر په رتبه یوتن.

☜ سرجراح دوه تنه.

☜ کمپودر یوتن.

☜ جراح یوتن.

☜ مهتر دوه تنه.

سواری ټولی

☜ د روغتیا پرکمشر یوتن.

☜ د طویلی پرکمشر یوتن.

د طویچی غونډ

| | انسانی | حیوانی |
|---|---|---|
| - داکتر د غونډمشر په درجه | یوتن | یوتن |
| - جراح | یوتن | یوتن |
| - کمپودر | یوتن | یوتن |
| - بیطار | یوتن | یوتن |
| - د بیطار لاس لاندی | یوتن | یوتن |

د استحکام کندک

☜ کمپودر او جراح دوه تنه.

د استحکام ټولی

☜ د روغتیا پرکمشر یوتن.

☜ د روغتیا نفر څلور تنه.

<u>د مخابرې د کندک هیئت</u>

- جراح یوتن.
- کمپودر یوتن.
- د طویلې سر پرکمشر یوتن.

<u>د بې سیم د مخابرې ټولی</u>

- روغتیا پرکمشر یوتن.
- تذکره چې دوه تنه.

<u>د مخابرې ټولی</u>

- روغتیا پرکمشر یوتن.
- تذکره چې اته تنه.

د ۱۳۱۰ کال کالنی کې د هوایی تشکیلات داسې ښودل شوی دی.

د هوایی قول اردو د هیئت تشکیل

| | | | |
|---|---|---|---|
| روغتون | - داکتر | کندکمشر | یوتن |
| | - جراح | بلوکمشر | یوتن |
| | - کمپودر | بلوکمشر | یوتن |
| | - پرستار | سایر (سرباز) | څلور تنه |

د هوایی فرقی د هیئت تشکیل

| | | | |
|---|---|---|---|
| روغتون | - داکتر | تولیمشر | یوتن |
| | - جراح | بلوکمشر | یوتن |
| | - کمپودر | بلوکمشر | یوتن |
| | - پرستار | سایر (سرباز) | څلور تنه |

هوایی غونډ

| | | |
|---|---|---|
| - داکتر | تولیمشر | یوتن |
| - جراح | بلوکمشر | یوتن |
| - کمپودر | بلوکمشر | یوتن |
| - پرستار | سایر (سرباز) | دری تنه |

همدارنګه په کال ۱۳۱۰ د طیاری د قوماندانیت تشکیل په دی ډول راغلی دی.

روغتون
- معاون داکتر تولیمشر یوتن
- جراح بلوکمشر یوتن
- کمپودر بلوکمشر یوتن

د یوی دستی کشف طیارو په تجهیزاتو کې ویلی شوی دی چې یو روغتون او داکتر د ۱.۰۰۰ افغانیو معاش سره او د روغتون یو عراده موتر موجود وی.

د روغتیا مدیریت د طیاری د قوماندانی په چوکات کې د تورنجنرال محمد احسان له خوا په کال ۱۳۱۴ کې تشکیل شوی او په کال ۱۳۱۸ د هوایی قواو نوی تشکیل جوړ شو چې د روغتیا مدیریت یې لاندې تشکیل درلود.

روغتون
- داکتر یوتن
- جراح یوتن
- کمپودر یوتن
-پیاده خدمتی یوتن
د روغتون ټول پرسونل څلور تنه

هغو اشخاصو چې د هوایی صحی په مدیریت کې دنده اجرا کړی په لاندې ډول دي:

- ح محمد شریف خان ولد ګل محمد خان کابل
- ح محمد نصیر خان ډګروال کنر
- ح عبدالصمد خان ډګروال کابل
- ح سید اسدالله خان ډګروال لوګر
- ح علی محمد خان دګرمن کابل
- ح مسافر خان دګرمن کنر
- ح نورالحق خان دګرمن بګرام
- ح محمد سعید خان غریبمل جبارخیل ډګروال حصارک ننګرهار
-ح عبیدالله خان ډګروال کاپیسا
-ح عبدالرسول ډګروال لغمان

<u>د ولایتونو د پولیسو د قرارگاه تشکیل</u>

☜ کمپودر یوتن.

☜ جراح یوتن.

<u>د پیاده ژاندارم غونډ د هیئت تشکیل</u>

☜ داکتر تولیمشر یوتن.

☜ جراح یوتن.

☜ کمپودر یوتن.

<u>د پیاده ژاندارمی ټولی تشکیل</u>

☜ د روغتیا پرکمشر یوتن.

☜ سقاؤ دوه تنه.

<u>د ژاندارم سواری غونډ</u>

☜ داکتر تولیمشر یوتن.

☜ کمپودر یوتن.

☜ جراح یوتن.

<u>د ژاندارم سواری ټولی</u>

☜ د روغتیا پرکمشر یوتن.

☜ د طویلی پرکمشر یوتن.

په دې سنه کې (۱۳۱۰) کې د صحیی مدیر ش قطب الدین خان و.

د مرکز او ولایتونو منظور شوی بودجه په ۱۳۱۰ کال کې:

د عسکری روغتونونو معاش ۹۰.۰۷۸ افغانۍ

مصرف ۱۰۳.۰۹۲

میزان ۱۹۳.۱۷۱

همداشان د روغتیایی مدیریت معاشونه په لاندې ډول وو.

سرطبیب ۹.۶۳۶ افغانۍ

مدیر ۲.۰۱۷ افغانۍ

سرکاتب ۱.۰۹۰ افغانۍ

لومړی کاتب ۹۰۵ افغانۍ

دویم کاتب ۸۱۸ افغانۍ

د لومړی ځل د پاره صحیی تکتیکی اشارات (۱۳۱۰) په لاندې ډول ټاکل شوی وو.




د ۱۳۱۰ کال د فارغ التحصیلانو په باب باید وویل شی چې د مختلفو مسلکونو څخه د ۳۲ تنو په شمیر په لاندنی ترکیب سره فارغ شوی دي:

- ابتدایی معاون داکتری ۱۱تنه.
- ابتدایی دواساز (درمل جوړونکی) ۱۱تنه.
- ابتدایی جراح ۷تنه.
- ابتدایی بیطار ۳تنه.

د ۱۲تنو اسناد عبدالغنی شاه خان او سید رشیدالدین خان لاسلیک کړی او د ۱۳تنو نورو عبدالغنی شاه خان او داکتر قریشی لاسلیک کړی او د بیطارانو اسناد د عبدالغنی شاه خان، قریشی او فقیر محمد خان څخه علاوه سربیطار ملک خان لاسلیک کړی دی.

د کابل ۱۳۱۱ کالنی له مخی د صحیه شعبی مدیر شجاعت مند امیر محمد خان کندکمشر او د حیواناتو د شعبی مدیر شجاعت مند محمد حسن کندکمشر و او هغه اجرأت چې په حربیه وزارت کې ترسره شوی د اردو د صحیه تشکیلات، د ښوونی او روزنی تشکیلات، په مرکز او ولایتونو کې د عسکری روغتونونو له جوړولو څخه عبارت دی.

همداشان لکه چې په تیرو فصلونو کې یادونه وشوه د طبی پوهنځی تاسیس، د داکتری د معاون طبی ښوونځی د دوه کلنی زده کړی د دوری سره، د کمپودری او پرستاری د مکتبونو تاسیس او نور ترسره شوی چې په دی تحصیلی موسسو کې نظامی پرسونل هم شامل شوی او تحصیل یې کړی دی او یا دا چې ملکیان وو او تر تحصیل وروسته عسکری ساحی ته ورکړ شوی دی. د اعلحضرت محمد نادر د دوری په اصولنامو کې – د افغانستان د عالیه دولت د اساسی اصولو په (۱۰۸) ماده کې (۳ مرغومی ۱۳۱۱) راغلی دي:

خارجه تبعه په عسکری مسلک کې د داکتری د صنف او حربی معلمی نه په استثنا سره نه منل کېږی. له همدې کبله و چې د طبی پوهنځی استادان د اردو د صحی خدماتو په بخش کې نه هیریدونکی کارنامی په یادگار پریښوولی دی. هغوی د صحیی په مختلفو بخشونو کې د صحیی کورسونه د حربیه وزارت په روغتون کې تاسیس کړی او ځینویی د تدریس چاری پرمخ بیولی دی.

د صحیی د تعمیراتو ساختمان، ترتیب او تنظیم، د دیپوگانو، لابراتوارونو په تجهیزولو، د درملو په اکمال د الکولو د تهیی دستگاه او د صحی تعلیم نامو په ترتیبولو کې په تیره بیا د روغتیایی عینیاتو، او نورو تعلیمنامو ترتیب، د صحیه خدماتو د تشکیل ترتیب او تنظیم، د حربیه وزارت د قطعاتو او جزوتامونو د روغتیا د مدیریت د تشکیل او تنظیم په چارو کې ټولو مشاورینو په تیره بیا شکری بیگ فارمسست نه ستړی کیدونکی فعالیتونه د قدر وړ دی.

د دې کلنی په عکسونو کې د عسکری روغتون د سرطبیب محترم داکتر علی شاه خان او د دی روغتون د داکتر محترم نور محمد خان عکسونه هم موجود و.

په عسکری روغتون کې د صحیه پرسونل د ښوونی او روزنی له نقطه نظره باید وویل شی چې د ۱۳۱۱ کال په اوږدو کې د ۱۸ تنو په شمیر فارغ شوی چې ۱۳ تنه یې درمل جوړونکی، دوه تنه جراح، دوه تنه بیطار او یوتن معاون داکتر و، چې د دوی د فراغت اسناد داکتر قریشی، عبدالغنی شاه خان او نور محمد خان لاسلیک کړی دی.

د تشکیلاتی نقطه نظره د (غزنی د فرقی) د یو روغتون او بیطاریی د یو تشکیل د نمونی په توګه ذکر کولای شو:

| | تفصیلات | شمیر | کتني |
|---|---|---|---|
| د روغتون | داکتر | ۱ | |
| | سرکاتب | ۱ | |
| | کاتب | ۱ | |
| | کمپودر | ۲ | |
| | محافظ | ۴ | |
| | تحویلدار | ۱ | |
| | نفر خدمت | ۲ | |
| | آشپز | ۱ | |
| | د آشپز لاس لاندی | ۱ | |
| | جاروکش | ۱ | |
| | سقاو | ۱ | |
| | باغوان او خرکار | ۳ | باغوان ۲تنه او خرکار ۱ تن |
| | جراح | ۱ | |
| | جمع | ۲۰ | |
| بیطاریه | بیطار | ۲ | |
| | کاتب | ۱ | |
| | پیاده | ۱ | |
| | جمع کل | ۲۴ | |

هغه موضوع چې د یادونی وړ ده ۳۵۸- ۱۷میزان ۱۳۱۱ له مکتوب څخه عبارت دی چې د حربیه ریاست ارکان له خوا حرکاتو ته لیکل شوی دي: «صاحب منصبان و عایله شان که بخارج مریض می باشند (در منزل) داکتران شفاخانه عسکری ملکف اند که بدون فیس مریض را نظر به اطلاع ریاست به خانه شان معاینه و تداوی نمایند، ادویه تداوی مذکور از شفاخانه تادیه می شود. در معاوضه این تکلیف از معاش کندکمشران الی سپه سالار

به قرار ذیل ماهوار وضع شود، تولیمشران و بلوکمشران مستثنا اند از گردانیدن پول:

۱- سپه سالار ۵ افغانۍ.

۲- شهزاده وکیل وزارت ۵ افغانۍ.

۳- نایب سالار و فرقه مشران ۲ افغانۍ.

۴- غندمشران و کندکمشران ۱ افغانۍ.

مدیریت صحیه اقدام نماید» (د دفاع وزارت د تشکیلاتو او سفربرۍ د ریاست د کالنۍ په حواله).

**د محمد ظاهر شاه د سلطنت په دوره کې نظامي طبابت:**

په ۱۳۱۲ کې مستقل مدیریت چې د وزیرانو د شورا په چوکاټ کې مستقل و د صحي ریاست ته یې ارتقا وکړ چې رئیس یې ج محمد اکبر خان و. د حربیه وزارت د صحیه او بیطـاریه د مدیریت په باب باید وویل شي چې مدیر یې ش عبدالباقي خان کندکمشر او سرطبیب یې عزتمند انظار الاسلام قریشي و او په دې کال کې سربیطار نه و مقرر شوی.

همداشان د حربیه وزارت په چوکاټ کې د عسکري گردو روغتونونو په مرکز او ولایتونو کې تنظیمدلی او په فراه کې د عصري روغتون ودانۍ او د جنوبي سمت د قول اردو د لومړي او دوهمي فرقو یو یو روغتون منظوري په نظر کې نیول شوی ده. د تشکیلاتي له پلوه باید وویل شي چې د تیرو کلونو په نسبت دومره زیات تغییرات نه دي راغلي لکه چې د فرقي او غونډونو په روغتون او بیطاري په تشکیل کې د یادوني وړ بدلون منځ ته نه دي راغلي. یوازې د لومړي ځل د پاره د صحي مرکزونو او د مرکز په موسسو او قطعاتو کې د خدمتکار په نوم یو مرکز ورزیات شو چې د صفاکار په توگه یې په عسکري ساحه کې د ښځو او نارینه وو د پاره په کار کې د منلو زمینه برابره کړه. (پخوا په نظامي بخش کې ملکي پرسونل موجود نه و)

په ۱۳۱۲ کې د حربیه وزارت د صحیه له کورسونو څخه ۲۱تنه فارغ شول چې ۴تنه یې بیطار، ۱۰تنه یې دواساز، ۴تنه یې جراح او یوتن یې معاون داکتر و. د هغوی په اسنادو کې داکتر قریشي، عبدالغني خان، نور

محمد خان او د ځینو په اسنادو کې د اسمعیل جوېری او هاشمی او بیطارانو په اسنادو کې سربیطار فقیر محمد خان لاسلیکونه کړی وو.

په ۱۳۱۳ کې د صحیه او بیطاریه مدیر ش عبدالباقی خان، سرطبیب قریشی و او سربیطار نه لری. په عسکری روغتون کې سرطبیب داکتر سید عبدالغنی شاه خان، سرجراح داکتر نور محمد خان او معاون یې سید محمد صالح خان و.

په دې سنه کې د صحیی ریاست، د صحیی وزارت ته ارتقا وکړه چې وزیر یې غلام یحیٰ خان ؤ.

د ګردیز د عسکری روغتون تعمیر تکمیل شوی او د حربیه وزارت د صحیه او کمپودری له کورس څخه ۱۲تنو طلابو د خپلی زده کړی دوره پوره کړی او فارغ التحصیل شول چې ۱۰تنه یې درمل جوړونکی او دوه تنه یې جراح ؤ د هغوی د فراغت په اسنادو کې داکتر قریشی، سید عبدالغنی شاه خان او نور محمد خان لاسلیکونه کړی دی.

د تشکیلاتی نقطه نظره باید وویل شی چې په دې کال کې د صحیه تشکیل د رشدیه په مکتب کې عبارت و له یوتن کمپودر او محافظ څخه، د روغتون د پاره دوه تنه او د پیاده د عالی کورس په تشکیل کې یوتن داکتر د تولیمشر په درجه د میاشتنی ۲.۴۰۰ افغانۍ په معاش، یو کمپودر د بلوکمشر په رتبه په ۱.۲۰۰ افغانۍ معاش او یوتن د صحیی افراد د ۲۹۴ افغانۍ په معاش شامل و.

په ۱۳۱۴ کې د صحیه وزارت په چوکاټ کې د دواسازی او کیمیاګرۍ مکتب تاسیس شو چې نظامی محصلینو هم پکی زده کړه کوله. د طبی منځنۍ ښوونی او روزنی پرسونل د عامی روغتیا وزارت په چوکاټ (د عامی روغتیا وزارت د طبی منځنیو تعلیماتو انستیتوت یا د غصنفر د صحی علومو انستیتوت) کې تر ۱۳۷۰ کال پوری جریان درلود چې د دواسازی، معاون داکتری، نرسنګ، اکسریز، لابراتوار، غاښ جوړولو، وقایوی طب او نورو په څانګو کې مساعدت کړی چې د دی انستیتوت یو شمیر فارغان تر اوسه پوری په اردو کې هم دندی اجرا کوی.

په دې سنه (۱۳۱۴) کې د حربیه وزارت د روغتون په چوکاټ کې د طبی متوسط پرسونل ۲۶تنه فارغ شوی چې ۱۳تنه یې درمل جوړونکی، ۴تنه یې بیطار، ۵تنه یې جراح او ۴تنه یې معاون داکتر و. د دې فارغانو د اسنادو په پای کې عبدالغنی شاه خان، قریشی، نورمحمد، هاشمی او محمد صادق خان لاسلیکونه کړی دی.

په دې کال کې د صحيه او بيطاريه مدير حسين علی خان غونډمشر او سرطبيب داکتر قريشی او د عسکری روغتون سرطبيب عبدالغنی شاه خان، سرجراح نور محمد خان او د هغه معاون سيد محمد صالح خان و.

د پياده د يوه غونډ د صحيه پرسونل معاشونه په دې سنه کې په لاندې ډول و:

- داکتر توليمشر ۷.۲۰۰ افغانۍ.
- جراح بلوکمشر ۱.۰۸۰ افغانۍ.
- کمپودر بلوکمشر ۱.۲۰۰ افغانۍ.
- صحيه پرکمشر ۳۱۵ افغانۍ.

د سواری غونډ معاشونه په لاندې ډول ورکول کيدل:

- داکتر توليمشر ۷.۳۶۳ افغانۍ.
- جراح بلوکمشر ۱.۲۴۳ افغانۍ.
- کمپودر بلوکمشر ۱.۳۶۳ افغانۍ.
- د صحيه پرکمشر ۴۷۸ افغانۍ.

په ۱۳۱۴ کې د معاون داکترانو لومړنۍ ډله او په ۱۳۱۶ کې د طب د داکترانو او دواسازانو لومړنۍ ډله فارغ شوی ده چې د دوی له جملی څخه مرحوم دوکتور ميرغلام حسين خان، دوکتور حاجی غلام حسين خان او دوکتور عزيزالدين خان د پل محمود خان په روغتون کې مقرر شول او نظامی طب ښه رونق وموند (د مرحوم دوکتور نور محمد خلمی د مرکی په حواله).

په ۱۳۱۵ کې د تشکيلاتی له مخی د صحيه او بيطاريه مدير حسين علی خان دويم غونډمشر، سرطبيب عزتمند انظار الاسلام دوکتور قريشی و او په عسکری روغتون کې سرطبيب عزتمند دوکتور عبدالغنی شاه خان، سرجراح داکتر نور محمد خان، معاون داکتر سيد صالح خان او جراح داکتر اسمعيل جوهری و.

د صحيه په برخه کې د حربيه وزارت اجرأت د عسکری روغتون ترميم څخه عبارت و او د دی په ترڅ کې په دې کال کې د پسيکولوژی (علم الروح) کتاب چاپ شوی چې د محترم احمد الله خان پوپلزايی له خوا تاليف او ترجمه شوی و.

د ملکی روغتون او د مرکزی روغتونونو د کمپودرانو یو شمیر د دوکتور انور علی خان تر زده کړی لاندې په معینو ورځو کې زده کړه کاوه او د کمپودرۍ کورس یی بیا له سره په عمومی درملتون کې پرانست چې په هغه کې نظامی پرسونل هم زده کړه کوله.

په همدې شان د حربیه وزارت د روغتون په چوکاټ کې د مختلفو کورسونو څخه ۳۶تنه یعنی د درمل جوړونکی څخه ۱۲تنه، د معاون داکتری څخه ۵تنه د جراحی څخه ۶تنه، د بیطاریه څخه ۹تنه فارغ او اردو ته تقدیم شوی دی. د څلورو نورو تنو مسلک د جدول د نه خانه پرۍ له امله معلوم نه کړای شو.

د فراغت په اسنادو کې محترم قریشی، عبدالغنی شاه، هاشمی، نورمحمد او اسمعیل جوهری لاسلیکونه کړی دی.

په ۱۳۱۵ سنه کې د صحیه تشکیلاتو په اړوند یوشمیر نظامی موسسی لکه د موزیک مکتب، حربیه مکتب، رشدیه مکتب، احضاریه مکتب او د قطعاتو د صحیه په تشکیل کې جزیی تغییرات راغلل، خو څه چې د یادونی وړ دی هغه د دفاع وزارت د قوا او بودجی راپور دی چې د دفاع وزارت له خوا د بهرنیو چارو وزارت او له هغه ځایه جنیوا (ژنو) ته لیږل کیده چې په لاندې ډول دي:

- پرسونل ۱۰۳.۱۱۹تنه.
- کلنۍ بودجه ۷۰.۲۷۰.۲۲۹ افغانۍ.

دا دواړه موضوعګانی د جنیوا په کالنۍ کې درج شوی دی.

همداشان د اردو د روغتون د سامان آلاتو مصرف ۵.۰۰۰ افغانۍ ښودل شوی دی. په عین وخت کې د هرات په فرقه کې ۱۵ بستره او د ۱۰ ناروغانو د پاره خوراک منظور شوی دی.

په ۱۳۱۶ د طب پوهنځی د فارغانو څخه دوه تنه دوکتور فقیر محمد خان (چی په توتله فقیر مشهور و) او دوکتور میرغلام حسین خان نظامی جراح و چې د حربیه وزارت روغتون چې په پل محمود خان کې پروت او د عسکری روغتون په نوم یادیده مقرر شول.

په دې کال کې د صحیه او بیطاریه مدیر حسین علی خان دویم غونډمشر او سرطبیب داکتر قریشی دی او په عسکری روغتون کې

سرطبیب عبدالغنی شاه خان، سرجراح نور محمد خان، معاون یی سید صالح خان او جراح یی اسمعیل جوهری و.

هغه اجرأت چې په دې کال شوی دی د مرکز او ولایتونو د فرقو د افرادو د تکمیلولو د نفوس په اندازه او صحی معایناتو په اساس و.

پردې برسیره په دی کال کې د عسکری صحیه کورسونو څخه ۲۶تنه چې د دواسازی ۱۴تنه، جراحی ۹تنه، معاون داکتر ۳تنه فارغ التحصیل شوی دی او د هغوی تحصیلی اسناد هاشمی، نورمحمد، عبدالغنی شاه او اسمعیل جوهری لاسلیکونه کړی دی.

په همدې شان د دفاع وزارت د تشکیلاتو او سفربری ۱۳۱۶ کال کالنۍ له مخی د عسکری ښوونځیو د قوماندانیو تشکیلات او تعلیمات ترتیب شوی چې د دی ځینی برخی په لنډه توګه تر بحث لاندې نیول کېږی.

## د صحیه د پنځمی څانګی وظیفه:

د قوماندانۍ د صحیی د احوالوسره ضابط، معلم، طلبه او مستخدمین چې د مکتب او موسسو په ټولو څانګو کې د قوماندانی تحت الامروی، له نژدی سره علاقه درلودل. او په قیدو قبول کې د طلبه معاینه، د ده د صحت په باب او هغه مستخدمین چې د بدنیه قابلیت د تعلیمات نامی سره موافق نه وی، معامله کول. هغه ناروغۍ چې د طلابو په منځ کې لیدل کېږی د مجادلی د پاره د تدبیرونو نیول او د ناروغیو د ظهور د مخنیوی. د روغتون او رویر (پولی کلنیک) د انتظام حالت کنترول. (د ۱۳۴۵-۱۳۴۶ پوری د پکتیا په ۱۲ فرقه کې رویر موجود و چې هلته د سراپا ناروغان معاینه کیدل او لازم درمل یې ترلاسه کول. هلته د ناروغانو د پاره بستری موجودی نه وی چې دا ځای د رویر په نوم یادیده چې اوسنی نوم یې پولی کلنیک بللای شو – پوهاند مومنی) د ښوونځیو د عمومیه نظافت او طهارت څارنه، د صحیی استاتستیک او ګرافیک تنظیم، د صحیی غوښتنو له مخی د ماکولاتو او مشروباتو او عمومی پاکیو کنترول او د قوماندانی په مقابل کې د لازمو تدبیرونو نیول او د لازمی تکلیفونو اجرا کول د دی شعبی وظیفه ده.

## د «رویر» روغتون:

د حربی ښوونځی، عسکری لیسی، د منځنیو او ابتدایی ښوونځیو د ناروغو طلابو او ضابطانو د معاینی او درملنی د پاره رویر تشکیل شوی دی.

دلته یوپنځوس بستری روغتون موجود و او د پنځمی شعبی د مدیر په واسطه قومانداني پوری مربوط دی. د هغی اداره د یوی ځانګړی تعلیمات نامی په واسطه تدویر کیدله.

د ښوونځیو د روغتون تشکیل:

- ☜ سرطبیب کندکمشر ۱تن.
- ☜ انضباط ضابط تولیمشر ۱تن.
- ☜ د حساب مامور ۱تن.
- ☜ داکتر تولیمشر ۳تنه.
- ☜ جراح مامور ۱تن.
- ☜ د پنځمی شعبی مدیر کندکمشر ۱تن.
- ☜ ملحق ضابط تولیمشر ۱تن.
- ☜ پرستار مامور ۳تنه.
- ☜ د روغتون د خدمت افراد ۱۰تنه.
- ☜ آشپز ۲تنه.

د رشدیه په مکتب کې د حفظ الصحی مضمون په هفته کې دوه پلا تدریس کیده.

په همدې ډول په نوموړی سند کې د یوی عصری فرقی د تشکیل په هکله یادونه شوی ده چې د صحیی کندک د صحیی د یو ټولی سره، دوه ګرځنده روغتونونه د ناروغانو د پاره، د وړلو راوړلو د لاریویو بلوک شامل و. ضابطان یې ۴۱تنه، واړه ضابطان یې ۹۰تنه، افراد یې ۴۴۶تنه پرسونل درج شوی دی.

**د یو عصری فرقی تجهیزات**

- ☜ بندچ ۳۱.۲۴۴ دانی.
- ☜ کلورکلک ۱۵.۶۲۰ پوری.

☜ کلورکلک پودر ۱۵.۶۲۰ قطۍ.

د گاز د محافظی مالزمه:

☜ ماسکه گاز د فلتر او د پوش د قطۍ سره ۱.۸۰۰

☜ د هایدروجن آله ۵۰

د خیمی تجهیزات:

☜ - د ۱۵-۲۰ تنو د پاره مخصوصه خیمه ۴۰بابه.

صحیی تجهیزات:

☜ د صحیه بکس (جوره) ۴۵۰

☜ چانته ۱۳۰

☜ د بندچ بکس ۱۲۰

☜ تسکره ۱۲۰

☜ د صحیی صندوق ۲۵

په همدې ډول د روغتون مخصوص موټرونه ۵ عرادی په عصری فرقه کې درج دی.

**د فضایی ټولی تشکیل:**

د روغتون هیئت:

☜ معاون داکتر ۱تن.

☜ کمپودر ۱تن.

☜ جراح ۱تن.

☜ نفر خدمت ۲تنه.

☜ د صحیی د عرادی موټر چلونکی ۱تن.

د ۱۳۱۶ کال له تشکیل څخه څرگندیږی چې د لومړی ځل د پاره موټری وسایط د صحیی په تشکیل کې نیول شوی دی.

د احضاریه مکتب د روغتون تشکیل:

☜ سرطبیب مامور اتن.

- معاون داکتر مامور ۱تن.
- جراح او کمپودر مامور ۴تنه د هر یو دوه دوه تنه.
- تحویلدار ۱تن.
- پرستار ۱تن.
- د روغتون د پاره بستری ۳۰دسته.

د حربیه رشدیه مکتب د روغتون په تشکیل کې لاندې پرسونل ته ځای ورکړ شوی دی.

- معاون داکتر مامور ۱تن.
- کمپودر مامور ۱تن.
- پرستار مامور ۱تن.
- بستری ۱۰جوړی.
- د حفظ الصحی معلم (خارجی) ۱تن.

که چیرته د ۱۳۱۷ کال وکتل شی، لیدل کېږی چې د صحیه او بیطاریه مدیر دویم غوندمشر محمد سعید خان او سرطبیب داکتر قریشی و او د عسکری روغتون سرطبیب عبدالغنی شاه خان، سرجراح نور محمد خان، معاون یی سید صالح خان او جراح اسمعیل جوهری و.

په دې کال کې د اردو د صحیی د چارو تنظیم او تدویر ترسره شوی او د طبی، جراحی او بیطاریه موسساتو څخه جدی څارنه عملی شوی ده. په دې سنه کې د عسکری روغتون له کورسونو څخه په مختلفو څانګو کې ۳۰تنه فارغ شوی دي: جراحی ۱۲ تنه، دواسازی ۱۲ تنه، معاون داکتری ۶ تنه او بیطاریه یو تن. د دو تحصیلی اسناد داکتر قریشی، داکتر هاشمی، داکتر نور محمد خان او داکتر عبدالغنی شاه خان په واسطه امضا شوی دی.

په دې کال کې د حربی وزارت (اردو) په تشکیل کې لاندنی اداری شاملی دي:

«د اردو د چارو عمومی مدیریت (د اردو ریاست) چې په دی کې مامورین، د عسکر ونیول، عسکری صحیه او بیطاریه، حربیه تعمیرات او د نقلیه وسایطو تهیه شامل وو»[1].

دلته کولای شو چې یو تاریخی ټکی ومومو او هغه دادی چې د ننګرهار د کهی د صحیه او بیطاریه ضروری درملو د اکمالولو په خصوص کې د وخت دفاع وزیر داسی امر کړی و:

«۱- ملاحظه شد ۲۶ دلو ۱۳۱۷ یکصدوسی و یک قلم ادویه کار آمد شفاخانه مفرزه کهی منظور از طرف ریاست اردو تکمیل شود، قلماتیکه موجود نباشد از دواخانه های حکومتی وزارت صحیه اکمال شود.

۲- ملاحظه شد ۲۶ دلو ۱۳۱۷ نودو هشت قلم ادویه کار آمد بیطاریه مفرزه کهی شینوار طرف ریاست اردو تکمیل و فوری فرستاده شود».

څرګنده ده چې د صحیی او بیطاری مدیریت د لوازماتو د عمومی ریاست په تشکیل کې شامل نه و او له ۱۳۲۲ کال راهیسی یی د اردو د صحیی ریاست په نوم فعالیت کاوه، خو کله چې شوروی وسلی او تخنیک په ۱۳۴۰هـ کې افغانستان ته وارد شول د هغی تکتیک هم تر اجرا لاندې ونیول شو چې د صحیه خدماتو د آمریت په نوم د لوژستیک په تشکیل کې شامل شوی دی. باید یادونه وشی چې د لوژستیک ریاست د مسلکی او اکمالاتی په ارتباط او د معالجوی او وقایوی او همدارنګه د ناروغانو او زخمیانو په تخلیه کې هم مرسته نشو کولای. پدې ترتیب وپتیله شوه چې د صحی ریاست په مستقل ډول د دفاع وزارت په چوکاټ کې فعالیت وکړی. په ۱۳۷۰ کال د اردو صحیه خدماتو آمریت د صحیه ریاست په توګه د لوژستیک د ریاست له تشکیل څخه وایستل شو او په مستقلانه ډول یی خپلی دندی د ملی دفاع وزارت په چوکاټ کې اجرا کولی. چې په دغه برخه کې د جنرال دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل هڅی د قدر وړ دی.

د ۴۴۳۵- ۲۶ دلو ۱۳۱۷ مکتوب پر اساس د صحیه او بیطاریه مدیریت د سل بستری یو مرکزی روغتون او د سل بستری ګرځنده روغتون تشکیل جوړ کړی دی.

په ۱۳۱۷ کال د امراض چشم یو رنګه کتاب د دوقتور فواد اسمعیل طوغار له خوا په عمومی مطبعه کې چاپ شوی دی چې په ۷۸۵ مخ کې د

---

۱ - د دفاع وزارت د تشکیلاتو او سفربرۍ د ریاست د ۱۳۱۷ کالنۍ په حواله.

قابلیت بدنیه عسکریه نظام نامی یوه برخه د سترګو د ناروغیو د معاملی په هکله داسی لیکل شوی دي:

**بعضی مواد نظام نامه قابلیت بدنیه عسکریه**[۱]

A: عوارضی که قابلیت خدمت مسلحه را اخلال نمی کند:

۱- تراخومیکه در آن کثافت قرنیه موجود ولی قوه رویت را در هر دو چشم تنقیص نکرده باشد.

۲- حول خفیفی که مانع فعالیت هر دو چشم نمی شود. کثافت قرنیه که بعد از تصحیح با عدسیه، قوۀ رویت چشم از ۱/۲ کم نباشد.

۳- نقصانیت رویت در یک چشم که بعد از تصحیح، مساوی نصف قوۀ رویت چشم سالم گردد (شخصیکه چشم راست موؤف باشد ترجیحاً به صنف پیاده داخل نشود).

۴- قصرالبصریکه با عدسیه مقعره ۵-۶ د یو پتری قوۀ رویت ۱/۲ را حاصل کند.

B: عوارض که برای خدمت غیر مسلحه مساعد است:

۱- امراض جفنیه، غشاء منضمی و طرق د معیه یکه در یک چشم بوده و خدمت عسکریه را بقدر اهمیت خلل دار نمی سازد.

۲- تراخومیکه کثافت قرنیه تولید کرده قوۀ رویت هر دو چشم را ربع و یا کمتر از آن تنقیص کند.

۳- حولیکه در اثنای نظر مستقیم، محیط طبقه قرنیه به زاویه انسیه و یا وحشیه تماس بکند و تشنج عین.

۴- تناقص قوه رویتکه بعد ازت تصحیح قوۀ رویت از ۱/۲ یا ۱/۴ اضافه نشود.

۵- قصرالبصری که قوۀ رویت آن بعد از تصحیح با عدسیه مقعره ۵-۶ د یو پتری از ۱/۴ اضافه نشود.

۶- عمی تام در یک چشم و رویت چشم دیگر بدون تصحیح از ۱/۲ اضافه نباشد.

---

۱ - دوقتور قواد اسمعیل طوغار، امراض چشم، ۱۳۱۷ مطبعه عمومی کابل، ص-۷۸۵.

C: امراضیکه یک عدم قابلیت موقت تولید کرده با مرور زمان قسماً و یا بصورت تام شفایاب گردیده قابلیت خدمت مسلحه واپس تأسس می کند:

١- امراض مهم و موقتهٔ اجفان، منضمه و طریق د معیه.

٢- هجمات تراخومیکه مترافق با افراز مبذول قیحی بوده اختلاط قرنی تولید نکند.

٣- امراض و خیمهٔ موقتهٔ عضلات چشم، جهاز انکسار و غشای داخل کرهٔ عین.

D: عوارض که قابلیت عسکریه را برای همیشه غیرممکن می سازد:

١- امراض اجفان و غشای منضمهٔ هر دو چشم.

٢- التصاقات دایمی و واسعه در بین منضمهٔ صلبه و اجفان.

٣- شتر داخلی مترقی که از سبب تماس اهداب بالای کرهٔ عین حرکات فعالهٔ عین را خلل دار بسازد.

۴- تراخومیکه کثافت قرنیه تولید کرده قوهٔ رویت هر دو چشم را ۱/۴ و یا کمتر از آن تنقیص کند.

۵- اعراض و خیمهٔ اعضا دمعیه که غیر قابل شفأ میباشند مانند ناسور دمعی.

۶- فلج عضلات عینیهٔ هر دو چشم که غیر قابل تداوی و مانع قابلیت حرکات عینیهٔ می باشد.

٧- تناقص قوهٔ رویت که بعد از تصحیح قوهٔ رویت ۱/۴ و یا کمتر می باشد و یا مادهٔ یک عمی قابل اثبات داشته باشد.

٨- موجودیت عمی در هر دو چشم و یا یک چشم در صورتی که قوهٔ رویت چشم دیگر بدون عدسه مصححه نصف رویت طبیعی و یا کمتر از آن باشد.

په ١٣١٨ د صحیه عمومی مدیر میر محمد سعید خان دویم غوندمشر و. او د هغه اجرأت د دی سنی د کابل د کالنی له مخی د اردو د صحی چارو تنظیم او اداره، د طبی، جراحی، بیطاریه او د ټولو روغتونونو د لازمو موادو د اکمالولو جدی مراقبت ؤ.

په دې کالنۍ کې له ۱۳۱۸ کال وروسته د حربیه وزارت د تشکیل او اجرأتو په اړوند څه لیکل شوی نه دی او د محرمو اسنادو په شکل – په راتلونکو کلونو کې په جریدو او مجلو کې ترې یادونه شوی نه ده.

په دې سنه کې د صحیی په کورسونو کې ۳۲تنه یعنی دواساز ۱۱تنه، معاون داکتر ۱۰تنه، جراح ۱۱تنه زده کړه کړې او فارغ شوی دی چې اسناد یی داکتر قریشی، عبدالغنی شاه خان او نورمحمد خان لاسلیکونه کړی دی.

په دې سنه کې د یو شمیر قطعاتو او جزوتامونو تشکیل منظور شوی چې ځنی یی په دی ډول دي:

د یوسف خیل د روغتون تشکیل:

| ګڼه | تفصیلات | اصل بست | منظوری | کتنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | داکتر | ۱ | ۰ | د صحیه وزارت څخه دی ونیول شي |
| ۲ | معاون داکتر | ۳ | ۰ | د صحیه وزارت څخه دی ونیول شي |
| ۳ | کمپودر | ۲ | ۰ | د هغه ځای د قطعاتو څخه خدمتی دی واخستل شي |
| ۴ | جراح | ۳ | ۰ | د هغه ځای د قطعاتو څخه خدمتی دی واخستل شي |
| ۵ | سرکاتب | ۱ | ۱.۵۰۰افغانۍ | |
| ۶ | دوهم درجه کاتب | ۱ | ۱.۰۸۰افغانۍ | |
| ۷ | تحویلدار | ۱ | ۱.۲۰۰ افغانۍ | |
| ۸ | د تحویلدار لاس لاندی | ۱ | ۶۰۰ افغانی | |
| ۹ | آشپز | ۱ | ۷۲۰ افغانۍ | |
| ۱۰ | د آشپز لاس لاندې | ۱ | ۴۸۰ افغانی | |
| ۱۱ | سرمحافظ | ۲ | ۱.۲۰۰ افغانۍ | |
| ۱۲ | دلاک | ۱ | ۴۸۰ افغانی | |
| ۱۳ | سقاو | ۲ | ۶۰۰ افغانی | |
| ۱۴ | محافظ | ۳۵ | ۱۰.۵۰۰افغانۍ | |
| ۱۵ | پیاده | ۴ | ۱.۲۰۰ افغانۍ | |
| ۱۶ | جاروکش | ۲ | ۶۰۰ افغانی | |
| ۱۷ | خرکار | ۲ | ۶۰۰ افغانی | |
| ۱۸ | دوبی | ۲ | ۱.۹۲۰ افغانۍ | |
| **جمع** | | | **۲۲.۶۸۰افغانۍ** | |

د ټولیو او بطریو په تشکیل کې بدلون نه دی راغلی. د مرکز او اطرافو په غونډونو کې ډاکتر تولیمشر یوتن، کمپودر بلوکمشر یوتن، او جراحی بلوکمشر یوتن نیول شوی دی.

په همدې ډول د هوايي قوماندانی د نوی روغتون تشکيل ترتيب شوی چې په لاندې ډول دي:

- ☜ داکتر ۱تن.
- ☜ کمپودر ۱تن.
- ☜ جراح ۱تن.
- ☜ پياده خدمتی ۱تن.

په کال ۱۳۱۹ د هغه په کورسونو کې اته تنه (معاون داکتر ۴تنه، دواساز ۲تنه او جراح ۲تنه) تر زده کړی وروسته فارغ شوی چې د هغوی په اسنادو کې داکتر قريشی، عبدالغنی شاه خان او نور محمد خان لاسليکونه کړی دی.

دا کورسونه د ۱۳۱۹ کال وروسته وځنډيدل او بیاځی په ۱۳۵۱ کې دوباره (هغه هم له ملکيانو جذب شوی) او د صحيه د خورد ظابطانو روزل شوی هم هلته شامل شوی – دا کورس فعال شوی چې ټول ۱۹تنه وو او له يوه دوو تنو په استثنا نور پاتی ټول درمل جوړونکی وو.

په ۱۳۱۹ کې د کورسونو پرځای چې په عسکری روغتون کې يې درس لوسته ځانګړی تشکيل ترتيب او تردی وروسته د عسکری روغتون مربوط نه و.

د صحيه ضابطانو د کورس انسانی تشکيل ۴۰تنه او د وړو ضابطانو مکتب ۱۰۰تنه او بيطاريه ۲۰تنه و.

- ☜ انضباط ضابط توليمشر ۱
- ☜ د اعاشی (لوازم) ضابط بلوکمشر ۱
- ☜ د ټولګی ضابط بلوکمشر ۱
- ☜ د حساب کاتب اول ۱
- ☜ عمومی تحويلدار ۱
- ☜ د تحويلدار لاس لاندې ۱
- ☜ د تحويلخانی پياده ۱
- ☜ خانه سامان باشی ۱

- چایدار ۱
- اشپز ۱
- د خانه سامان لاس لاندې ۱
- د چایدار لاس لاندې ۱
- د اشپز لاس لاندې ۱
- د صحیه خوردضابطانو مداوم ۱۰۰
- د معاون داکتر، کمپودر او د قطعی د جراح مداوم ۴۰تنه د دوی معاش د دوی له قطعاتو ورکړل شی.
- له افرادو نعلبندی مداوم ۵۰
- د بیطاریه د وړوضابطانو مداوم ۲۰
- خاصه تراش ۲
- دوبی ۲
- سقاو ۲
- باغوان ۱
- امربر ۴
- کراچی وان ۳
- خیاط ۱
- سراج ۱
- نجار ۱

د صحی د ضابطانو د کورس او د صحیی وړوضابطانو د ښوونځی د تعلیمی سامان تشکیل:

- پلانس او جودیرونه ۱
- د هدوکو اسکلیت ۱
- جهاز دوران ۱
- جهاز عصبیه ۱

- ☜ جهاز تنفس ۱
- ☜ جهاز احشاء ۱
- ☜ جهاز عضلات ۱
- ☜ د صحیه نفر د جیب اسطونج ۱
- ☜ د صحیه ښځنلو اسطونج ۱
- ☜ د تسکره چې اسطونج ۱
- ☜ د صحیه ریانس چانته ۱
- ☜ د صحیه شپی چانته ۱
- ☜ د قطعاتو ضد و قچه ۱

د یو شمیر قطعاتو په تشکیل کې طبی تجهیزات هم شامل شوی دی.

**د حربیه وزارت د قوماندانۍ د هیئت تشکیل:**

- ☜ جراح بلوکمشر ۱
- ☜ د صحیی دلګیمشر ۱
- ☜ تسکره وړونکی ۱

تجهیزات:

- ☜ چانته ۱۲

په ۱۳۲۰ کې د صحیه او بیطاریه مدیر میر محمد سعید خان غونډمشر و چې د دی مدیریت اجرأت په کورسونو کې د صحیی او بیطاریی د ضابطانو، وړوضابطانو له ښوونی او روزنی رسولو څخه عبارت وو. چې ۱۳۲۰ کال د تلی په لومړی نېټه د صحیی د کورس لومړۍ دوره فارغ التحصیل شوی دی.

په دې کال کې د رشدیه مکتب چې د قوای مرکز روغتون په تعمیرونو کې موجود و لیسی ته ارتقا وموندله او له دی ځای څخه مهتاب قلعه (د اوسنی حربی ښوونځی مقر) ته انتقال وموند او د رشدیه د مکتب

پخوانی محل د یوی روغتون د پاره د ترمیم او تجهیز لاندې ونیول شو چې د قوای مرکز په روغتون ونومول شو.

همداشان په ۱۳۲۱ کال کې د صحیه او بیطاریه مدیر غونډمشر میر محمد سعید خان و او د دی مدیریت اجرأت عبارت و له:

- د صحیه او بیطاریه له کورسونو څخه د تحصیل اکمالول او د یو شمیر نورو داکترانو مقررول.
- د طبی پوهنځی د هغو فارغ التحصیلو دوکتورانو د عسکری ستاژ دپاره د تعلیم ګاه تاسیس چې اردو ته راغلی دی.
- په مشرقی سمت کې (د غنی خیلو په قشله کې) د یوه روغتون د تعمیر کار تکمیلول چې له هر پلوه د ناروغانو اړتیا وو ته ځواب وویلای شی.

په دې کال کې خارجی مستخدمین یعنی ترکی مستخدمین چې د صحیه خدماتو په ساحه کې یې وظیفی اخستی وی چې د اردو د صحیی د ریاست مسلکی تاسیسات په همدغه وخت کې د ساختمان چاری شروع او تکمیل شوی دی.

د ترکی متخصصینو په مرسته د احضاریی مکتب د روغتون په شرایطو برابر شو. چې په ۱۳۲۲ کال کې سرطبیب او جراح یی له ملکی ساحی څخه و چې په امریکا کې یې تحصیل کړی او مرحوم داکتر محمد یوسف ټاکل شوی او دی روغتون چې په شهرارا کې موقعیت درلود د قوای مرکز د روغتون په نوم ونومول شو.

په دې وخت (۱۳۲۲) کې د صحیی او بیطاریی مدیریت د اردو د ریاست اداری لاندې و. د دی مدیریت کفالت د جګړن (کندکمشر) عبدالواحد خان په غاړه و (په ترکی اسنادو کې یې عبدالواحد خان د اردو د صحیی رئیس معرفی کړی دی چې لومړی یی په کفالت کار کاوه او بیایې ریاست اشغال کړ). دا ریاست د شوروی تکتیک په راننوتلو د لوژستیک ریاست په تشکیل کې د اردو د صحیه خدماتو د آمریت په نوم شامل شو.

په ۱۳۲۲ کې د حربیه وزارت اجرأت په لاندې ډول دي: د صحیه، بیطاریه او نعلبندی د ورِوضابطانو فارغول، د صحیی د ضابطانو د دریمی دوری ختمول، د یو شمیر د طبی فارغ التحصیلو داکترانو د ستاژ د دوری بشپړول و چې اردو ته راغلی وو.

د درملنی او ناروغو حیواناتو د عملیاتو د پاره د یوی حیوانی دایری تاسیسول دی.

په ۱۳۲۳ کال کې د نظامی محصلینو څخه دوه تنه محترم دوکتور نور محمد خلمی او دوکتور عبدالله فراهی د طب په پوهنځی کې شامل شول او په ۱۳۲۸ کې له فاکولتی څخه فارغ او اردو په روغتونونو کې یې په کار پیل وکړ.

په دې کال (۱۳۲۳) کې د اردو د مفتشیت په چوکاټ کې د صحیه مفتشیت هم شامل شو او د صحیه او بیطاریه مدیریت د اردو ریاست په چوکاټ کې فعالیت درلود. د دی کال اجرأت داسی ښودلای شو:

دواړه روغتونونه (قوای مرکز او پل محمود خان) د نیمه اختصاصی روغتونونو په شکل چې یوازی داخله او جراحی څانګو ته مختصی وی فعالیت درلودل.

د قوای مرکز روغتون د خپل تاسیس له وخته د دوه تنو ترکی داخله او جراحی متخصصینو په واسطه په فعالیت شروع وکړ.

د پل محمود خان روغتون تصدی د هندیانو په غاړه وه. په دې کال لاندنی چاری ترسره شوی دي:

- ☜ د بیطاری کورس د تشکیل تهیه کیدل.
- ☜ د صحیه او بیطاریه د مکتب د دوهمی دوری د طلابو فارغیدل.
- ☜ د غاښونو جوړولو د موسسی د سامان توريد او د هغو په کار اچول.
- ☜ د اردو په ټولو قطعاتو کې د موسمی واکسینو واکسیناسیون.
- ☜ د عسکری روغتون د لابراتوار تنظیم.
- ☜ د فارمکولوژی د موسسی تنظیمول.

د صحیی په ریاست کې د درملو جوړولو لابراتوارونو او د الکولو د تقطیر دستګاه په فعالیت پیل وکړ چې تولیدات یې دا و:

- ☜ زرقی محلولات (امپول او ویال)، تابلیتونه، پومادونه، ټینچرونه، سلوشنونه او نور.

په ۱۳۲۳ کال کې د لومړی ځل د پاره د حربیه وزارت په اجرأتو کې روغتیایی چاری مستقلی عنوان شوی دی.

د نظامی روغتیایی ښوونځی فارغ التحصیلان ۷۱تنه وو چې په دویمه دوره کې یې بری لیکونه ترلاسه کړل او د صحیه ضابطانو په حیث د اردو په قطعاتو کې وویشل شول.

د دی دوری د طلابو د لیاقت درجه په لاندې ډول وه:

۱- ډیرښه ۲۰تنه.

۲- ښه ۲۱تنه.

۳- منځنی ۳۰تنه.

په ۱۳۲۴-۱۳۲۵ کلونو کې د صحیه او بیطاریه مدیریت د اردو د ریاست په چوکاټ کې و چې اجرأت یی په لاندې ډول وو:

☜ د دواسازی د کورس تشکیل.

☜ د صحیه او بیطاریه مکتب، د وړوضابطانو او د صحیې ضابطانو د دریمی دورې فراغت.

☜ د یوی اندازی مکفی درملو او د جراحی د سامان تورید.

☜ د اردو په قطعاتو او موسساتو کې د اجباری او موسمی واکسیناسیونونو ترسره کول.

☜ د یوی زیاتی اندازی د انتی لاؤس پودر او د انتی ملاریا د کریم تورید او د هغو د استعمال د طرز په باب د صحی لارښوونو سره په قطعاتو کې د هغو ویشل.

☜ د ملاریا پرضد د مجادلی د زده کړې په غرض د صحیه یو هیئت ټاکل او هند ته لیږل.

☜ په اردو کې د صحیې د استاتستیکو د اخستلو په چارو کې لازم اصلاحات.

☜ د اردو د بدنیه قابلیتونو تعلیماتنامې ترتیب.

☜ د عسکری روغتون د درملو په حسابی چارو کې تجدد.

☜ د درملو د مختلفو او زانو بدلول د متریک سیستم په اوزانو.

☜ د حربیه وزارت او قوای مرکز د پاره د روغتونونو د وسایطو تهیه کول او رانیول.

نظامی طبابت هغه وخت خپل حقیقی فعالیت ته دوام ورکړ چې هغه ځوان عسکری دوکتوران چې په داخله او جراحی په څانګو کې یې تخصص درلود تر لوړو زده کړو وروسته فارغ التحصیل او له ترکیی څخه خپل وطن ته راستانه شول لکه مرحوم دوکتور منصور شرق، مرحوم دوکتور محمد قاسم عسکریار د پل محمود خان په روغتون او د قوای مرکز په روغتون کې په فعالیت پیل وکړ.

په دې وخت کې د پل محمود خان او قوای مرکز په روغتونونو کې د عمومی جراحی او عمومی داخله پر څانګو (دیپارتمنتونو) برسیره د جراحی، اورتوپیدی، اکسریز، یورولوژی، غوږ او ستونی، سترګو، نسایي، عقلی او اعصاب، انتانی او نور بخشونه رامنځ ته شول.

په نظامی روغتونونو کې د درملتون او درمل جوړولو چارو رونق پیدا کړ، زرقی محلولات (نواکیئن په مختلفو فیصدیو، سیروم ګلوکوز او فزیولوژیک)، پومادونه، ترکیبی پودرونه، عصاری، پیلولونه، مختلف شربتونه، جوشاندی، سلوشنونه تهیه او اعمالیږی.

نظامی طب هغه وخت خپل ارزښت لوړې درجې ته ورساوه چې د طبی او فارمسی چارو رسمی او لارښوونکی اسناد لکه تعلیماتنامی، رهنماګانی او نور د طبابت د چارو او نظامی طبی اکمالاتو د تنظیمدلو په خاطر منځ ته راغلل. چې د اردو د بدنيي قابلیت له تعلیماتنامی او نورو څخه یادونه شوی او یو نور شمیر اسناد چې زمونږ لاس کې دی له هغو څخه په لنډه توګه یادونه کیږي:

د زمانی قدامت له مخی لومړنی کتاب د «صحیه عینیاتو د محاسبی تعلیماتنامی» څخه عبارت دی چې د ۱۳۲۸ د غویی په شلمه طبع او خپور شوی ده.

د دې تعلیمات نامی په لیکنه او تجدید نظر کې داخلی افسرانو (لوژستیک او صحیی) او ترکی افسرانو او دواسازی او لوژستیک متخصصینو برخه اخستلی ده. دا تعلیمات نامه ۱۶۴ مادی لری چې له څلورو فصلونو څخه مرکب دی. دغه کتاب د کابل په عمومی مطبعه د پنځه سوو په تیراژ طبع شو او دوه برخی لري:

☜ په لومړی برخه کې د محاسبوی اسناد مسایل توضیح شوی.

☜ په دویمه برخه کې د جدولونو، دفترونو او لستونو نمونی لیکلی شوی دی.

په لومړی برخه کې لاندنۍ موضوعګانی لکه متفرقه احکام، د موجود یو متعلقه حکمونه، د لوازمو جنسونه، حربی جنسونه، د جنسونو د استعمال موده او میعاد، د پلټنی او حساب اخستلو مسایل شامل و. او په دویمه برخه کې ځانګړی فصلونه شامل دی لکه:

لومړۍ فصل: د صحیی جنسونو له نقطه نظره صحیه تشکیلات.

دویم فصل: د اردو د صحیې جنسونه.

دریم فصل: دندی:

☜ دصحیه د جنسونو د محاسبی د رئیس وظیفی.

☜ د محاسبی د مدیر په صفت د صحیه او بیطاریه د ریاست د لومړی څانګی وظیفی.

☜ د اردو د صحیی د جنسی محاسبینو وظیفی.

☜ د صحیه جنسی معتمدینو وظیفی.

څلورم فصل: د جنسی محاسبی د چارو متعلق د صحی جدولونو دفترونه او د هغوی د استعمال صورت.

دلته ښایی چې د ۱۴۶ مادی د ځینو برخو چې د نسخی موضوع تشکیلوی درج کړو:

☜ هغه درمل چې ناروغانو ته به ورکړ شی باید چې د ۲۴ ساعته احتیاج او یا د داکتر د لزوم دید له مخی د ضرورت په اساس د دری ورځنی احتیاج په اندازه وی (مرهم، د غړغړی دوا، او قطری چې د غوږ او ستونی او یا هغه قطره درمل چې د خوراکی د پاره ورکړ کیږی له دی حکمه مستثنی وی، دا ډول درمل له ۲۴ ساعتونه د زیاتی مودی د پاره هم ورکول کیدای شي).

پورتنی مسایل د افرادو د پاره وی د ضابطانو او د هغوی د کورنۍ د پاره په لاندې ډول اجرأت کیږی.

☜ درمل باید په روغتون کې موجود وی.

☜ درمل د درې ورځو او یا د ضرورت په اساس پنځه ورځنۍ ورکول کېږي.

☜ نسخه باید د درملتون د آمر، سرطبیب او په ځینو حالاتو کې د هماغې قطعې د قوماندان په امضا رسیدلې وي. نو بیا د روغتون له درملتون څخه اجرأ کیدایی شي.

☜ که چیرته درمل په روغتون کې موجود نه وي، پورتنی (لوړ مقام) دیپوته ښایي مراجعه وشي.

☜ که چیرته سرطبیب او یا قوماندان شکمن شي چې د نسخې درمل د صاحب منصب یا مامور د ضرورت له مخې نه ده او د نورو د پاره یې رانیسي، کولای شي چې هغه مسترد کړي.

که چیرته درمل په درملتون کې موجود نه وي او د هغې معادل درمل موجود وي باید چې اجرأ شي او که معادل یې موجود نه وي باید له بازاره واخستل شي.

☜ د نسخو د اجرأت صلاحیت لرونکې آمرین شخصاً په ځیر سره (دقت) کېږي او موقع نه ورکوي چې ځینې کسان له هغې څخه ناوړه ګټه واخلي. د یوه ناروغ د حقیقي احتیاج نه علاوه درمل ورکړ شي، بلکې دا ډول اجرأت داسې دي چې شخصاً د امر ورکوونکې آمرین مسئولیت لري د قانوني تعقیبونو برسیره د هغې تاوان هم ورکوونکې دي.

بله تعلیماتنامه کې چې په ۱۳۲۸ کال کې خپره شوې ده «د قطعاتو د دوکتورانو وظیفو له تعلیماتنامې» څخه عبارت ده.

دا تعلیماتنامه چې په ۵۱ مخونو چاپ شوې ۲۲۳ مادې لري چې د موضوعګانې فهرست په لاندې ډول دي:

الف: د کندک د دوکتورانو د وظیفو تعلیمات.

ب: د غونډ د سرطبیبانو وظیفې.

ج: د فرقې د سرطبیب وظیفې.

د: د قول اردو د سرطبیب وظیفې.

هـ: د اردو یا اردوګانو د سرطبیبانو وظیفې.

و: د فرقې، د قول اردو او اردو د سردواسازانو وظیفې.

په همدې شان په ۱۳۲۸ کال کې «د صحیی د هیئتونو تعلیماتنامه» چې ۱۵ فصلونه لری چاپ شوی ده.

په ۱۳۳۳ کې «په سفر کې د اردو د صحی خدمتونو تعلیماتنامه» د ۲۰۰ ټوکو په تیراژ چاپ شوی ده. دا تعلیمات نامه له ۲۰۰ مادو څخه تشکیل شوی چې مهمی موضوعګانی یې په لاندې ډول دی:

- عمومی اساسات:

هغه چاری چې د سفربری د اعلان سره اجرا کېږی:

- ☜ په قطعاتو کې صحیه خدمتونه.
- ☜ په جګړه کې د فرقی صحیه خدمات.
- ☜ په قول اردو کې صحیه خدمات.
- ☜ ګرځنده روغتونونه.
- ☜ په اردوګانو کې صحیه خدمات.
- ☜ د اردو د حرب روغتونونه.
- ☜ د اردو لابراتوارونه.
- ☜ د اردو د صحیی دیپوګان.
- ☜ د اردو د داخلی سیمی د تخلیی چاری.
- ☜ د مملکت په د ننه کې صحیه خدمات.
- ☜ هغه چاری چې د ترخیص په وخت کې اجرا کېږی.

د دی تعلیمات نامی ۴۷ ماده د دلچسپی له مخې د هغی یوه برخه دلته د مینه والو په واک کې ورکول کېږی.

د جنیوا د ۱۹۳۹ د جون د ۲۹ نیټی د تاریخی معاهدی له مخی چې په هغی کې د نړی ټولو هېوادونو ګډون کړی و د لاندې موادو د تطبیقېدلو غوښتنه شوی ده.

الف: د اردو پرسونل چې هرڅه تابعیت یې دی که چیرته زخمی، ناروغ او مصیبت ځپلی وی، د حمایی لاندې دی.

ب: د دښمن ټول مړی د یوی عمومی او خصوصی معاینی په تعقیب د درناوی په مراسمو ښخېږي.

په ۱۳۳۲ کال د سفلیس د تداوی د کتابچی جزودان د صحیه او بیطاریه د عمومی مدیریت له خوا په ۲۰۰ ټوکو تیراژه چاپ شوی دی. د پنسلین پواسطه د هغی د تداوی زمان، بسموت (څلور دوری) او بیا د سیمابو سره په نیم منحله بسموت (یوه دوره) تداوی کېږي.

د هری دورې تر ختمیدو وروسته ناروغ ته یوه میاشت استراحت ورکول کیده او بیایې راتلونکی دورې پیل کیدلی.

په ۱۳۳۲ کال په اردو کې د سفلیس سره د مجادلی او درملنی تعلیمنامه چې دوه فصله یې درلودل د صحیه او بیطاریه عمومی مدیریت له خوا د ۲۰۰ ټوکو په تیراژ طبع شوه.

لومړی فصل: د وقایی او درملنی صورت.

دویم فصل: د سرایت د څرنګوالی، د مختلفو دورو او د تداوی د عوارضو په باب لنډ معلومات.

په ۱۳۳۳ کال لومړنی نظامی جراح داکتر محمد قاسم عسکریار تر تحصیلاتو وروسته له ترکی څخه د جراحی د متخصص په توګه افغانستان ته راستون شو او د قوای مرکز په روغتون کې د جراحی د متخصص په توګه یې په کار پیل وکړ او وروسته ډاکتر نور محمد خان خلمی هم له ترکیی څخه تخصص راوړ. تر مرحوم عسکریار د مخه یوازنی عسکری جراح مرحوم میر غلام حسین خان و.

د ۱۳۳۴ د کابل په کالنۍ کې د طبی لارښونو مسایلو څخه برسیره «په غرنیو حرکاتو کې د لوژستیک فعالیتونو» په باب چې د لوازمو د ټولیمشر تورن شیر محمد له خوا ترجمه شوی دی (ص – ٦۹ د غویی میاشت ۱۳۳۴) «په غرنیو شرایطو کې د طبی مرستو» په هکله په پوره تفصیل سره توضیح شوی او د ټولی د صحیی د قسم دندی، د غونډ د داکتر وظیفی او په غرنیو سیمو کې د روغتیا ساتنه چې د خاص اهمیت درلودونکی دی تشریح شوی دی.

نوموړی د نوموړی کالنی په ۲٦ مخ کې د امریکا په اردو کې د عینیاتو د محاسبی په باره کې یوه مقاله ژباړلی چې د محاسبیت قدمی له لوا او فرقی څخه پیل شوی. خو په تولی او د هغه معادلو مفرزو کې – لوژستیکی تشکیلات «محاسب» نه لری.

د ۱۳۳۵ کال د سرطان د میاشتی د اردو د مجلی کالنۍ په ۱۲ مخ کې یوه په زړه پوری موضوع چې د اوسنیو شرایطو سره ډیر نږدی مطابقت لری یعنی د ناروغانو د انتقال او تخلیی په باب چې ارزښتناکه ده او اساسی مسایل یی په لاندې ډول دي:

لومړۍ فصل: د لاس په واسطه د ناروغانو وړل راوړل.

دویم فصل: د تسکری پواسطه د ناروغانو وړل راوړل.

دریم فصل: په تسکره کې د حمل و نقل مرستی.

څلورم فصل: د امبولانس د موټرونو په واسطه وړل راوړل.

پنځم فصل: د حربی عمومی عراده جاتو بدلول د ناروغانو د وړونکو عرادو په شکل.

شپږم فصل: د ریل پواسطه د ناروغانو وړل راوړل.

اوم فصل: د هوا له لاری د ناروغانو حمل و نقل.

اتم فصل: په اوبو کې د ناروغانو حمل و نقل.

دا موضوع (۱۱۳) مادی لری.

همدارنګه د نوموړی کال د قوس د میاشتی د دغه کالنۍ په ۶۱ مخ کې د تورن شیر محمد له خوا یوه څیړنه او لیکنه شوی چې پر له پسی توګه یې د حوت میاشتی پوری دوام کړی دی، چې عبارت دی له «د عینیاتو د محاسبی په شاوخوا کې» مطالبو څخه عبارت دی چې عمده برخی یې په لاندې ډول دي:

- محاسبه
- حساب
- د تجارت محاسبه
- د دولت محاسبه
- د اردو محاسبه
- وثیقی
- اجمالات

- ☜ محاسب او د عینیاتو محاسب
- ☜ امر اعطا، د عینیاتو د اعطا آمر، لومړی درجه او دوهمه درجه امر اعطا
- ☜ معتمد
- ☜ عینیات
- ☜ د عینیاتو د محاسبی مراقبت او تشکیلات
- ☜ په حضر او سفر کې د عینیاتو محاسبین
  - د محاسبینو وظیفی او مسئولیتونه
  - د اکمال د آمرینو دندی
- ☜ د محاسبینو د حساب ورکولو صورت
- ☜ د محاسبینو دورتسلیم
- ☜ معتمد او د هغه دندی
- ☜ موجودی ګانی
- ☜ هغه باقیات چې د پلټنی په نتیجه کې رامنځ ته کیږي

په هر صورت دا اثر د نظامی طبی اکمالاتو له مخی د پوره اهمیت وړ بلل کیږی.

په ۱۳۳۶ «د اردو د منسوبینو درملنی» تر عنوان لاندې یوه تعلیماتنامه د زرو ټوکو په تیراژ له چاپه راووتله چې (۲۰) مادی یې درلودلی.

په دې تعلیماتنامه کې هغه مستحقین چې باید اردو هغه تداوی کړی او همداشان هغه مستحقین چې باید په بهر کې تداوی شی توضیح او تشریح شوی چې دا یو ارزښتناک اثر دی او حتی په اوسنیو شرایطو کې هم د تطبیق وړ ده.

د دې تعلیماتنامی په دوهمه ماده کې ویل شوی دي: هغه اشخاص چې په اردو کې له معاینی او تداوۍ څخه ګټه اخستلای شی په لاندې ډول دي:

الف: صاحب منصبان او د کورنۍ غړی یې.

ب: همردیفان او کورنۍ یې.

ج: عسکری مامورین او کورنۍ یې.

د: عسکری متقاعدین (صاحب منصب، همردیفان او مامور).

هـ: واړه ضابطان.

و: عسکری طلاب.

ز: افراد.

ح: مستخدمین او اجیران.

**تبصره:**

کورنۍ د صاحب منصب یا همردیف یا مامور عبارت دی له ښځی، مور او پلار، زوی، لور، ورور او خور ځخه او یا د هغو ځخه عبارت ده چې د معشیت متکفل یې وی.

هغه زوی، لور، ورور یا خور چې عایله یې تشکیله کړی وی او یا هغه زوی او ورور چې عمر یې له ۱۸ ځخه زیات چې په تحصیل کې شامل نه وی او دایمی معلول نه وی او یا پلار او مور، ورور، خور چې د دوی معشیت د زوی او یا نورو متعلقینو په واسطه تامینږی د دی تعلیماتنامی د مندرجاتو له مخی له معاینی او تداوي ځخه استفاده کولای نه شی.

د دې تعلیماتنامی په ځلورمه ماده کې د معاینی او درملنی هغه شکلونه یې رعایت کیږی ښودل شوی چې په ځلورو شکلونو دي:

الف: په رویرونو، روغتونونو او عسکری کتنځیو کې د سراپا په شکل.

ب: په کور کې د عسکری داکترانو له خوا.

ج: په رویرونو یا عسکری او ملکی روغتونونو کې د بستر په شکل.

د: د هېواد نه د باندی.

د دې تعلیماتنامی اتلسمه ماده داسی تصریح شوی ده:

د دولت د مالی وضعی د مساعدت تر وخته پوری د هغو کسانو د معاش ځخه چې د معاینی او درملنی حقوق لری په لاندې ډول د میاشتنۍ روپۍ اخستل کیږي:

الف: له صاحب منصبانو، همردیفانو او عسکری مامورینو څخه:

۱- پخپله له دوی څخه په هره میاشت کې (۱۰) افغانۍ.

۲- د دوی د کورنۍ د هر غړی څخه چې په بیان نامه کې تثبیت شوی دی (۲) افغانۍ.

ب: له وړو ضابطانو، مستخدمینو او اجیرانو څخه (۵) افغانۍ.

په دې تعلیماتنامه کې د هغو کسانو جدول چې باید خارج کې تداوی شی او د صحیه هیئت فورمه هم موجوده وی.

د اردو روغتون (قوای مرکز او پل محمود خان) کال په کال پراختیا کړی او نوی څانگی پکې فعال کیدل او د داخلی متخصصینو شمیر هم مخ په زیاتښت وو.

درملتون او د درمل جوړولو چاری د اردو د صحیی په ریاست کې او هم په روغتونونو کې له زیاتو ښیگڼو درلودونکی وو اود عسکری طبابت کیفیت هم تکامل کړی. د داخله ناروغیو تداوی ښه رونق موندلی او د جراحی عملیات هم تر سره کیدل.

په ۱۳۳۸ کې د توراکس لومړی عملیات چې د «CARDIOMYOTOMIE de HELLER» څخه عبارت و د کارد یو سپازم په واقعه کې ترسره شو.

په هغه وخت کې انستیزی دلو کال، لومبیر او قطره یی په انستیزی منحصره وه. داخلی انستزیولوگ موجود نه و. د ترکی انستیزیولوگ په مرسته د اندو تر خیال د انستیزی سره د هائیدبرنگ د جهاز په واسطه نوموړی عملیات ترسره کیدل (د دوکتور خلمی له قوله).

(که څه هم د اوسنی زمانی له مخی پورتنی عملیات د عملیاتو د سیستم او انستیزی تجهیزات یې په ډیر وروسته پاتی حالت کې و خو په عین وخت کې د نظامی دوکتورانو او نظامی طبابت دپاره ستر بری ؤ – مولفین).

په ۱۳۳۹ کې «د حرکاتو په ساحه کې د اردو د صحیه خدماتو تعلیماتنامه» کتاب د اردو د صحیه خدماتو د ریاست له خوا له چاپه راووت. دا کتاب چې د ۹۸ مخونو درلودونکی دی صحیه خدمتونه په مختلفو قدمو کې توضیح کوی لکه:

لومړی قدمه: غونډ او مستقل کنډکونه.

دويمه قدمه: فرقه.

دريمه قدمه: د اردو قدمه او د اردو ګرځنده روغتون.

څلورمه قدمه: د صحيه خدماتو د منزل د ساحی قدمه.

پنځمه قدمه: د هېواد د ننه قدمه.

د دې اثر په وروستيو مخونو کې د صحيی تکتيکی اشاری رسم شوی دی.

د تحصيل له وتلو څخه داخلی دوکتورانو او دواسازانو په زياتښت سره د روغتونونو وضع ډېره ښه شوی په قطعاتو او جزوتامونو کې صحيه تشکيلاتو ښه رونق پيدا کړی، د غونډ او فرقی په سويه سارايي تطبيقاتونو کم کم په علمی شکل د تطبيق په ډګر کې پلی شوی دی.

د صحيی د برخی لومړنی صحرايی (سارايي) تطبيقات چې په اسنادو کې ثبت دی په ۱۳۴۰ کې دی. دا تطبيقات د ۱۳۴۰ د وړی د مياشتی د اردو د مجلی د کالنی په ۷۰ مخ کې خپور شوی دی چې د بريدمن نورالحق عبادی (البته دا وخت د عسکری نوی اصطلاحات رواج شوی وو) د هغه راپورتاژ تهيه کړی دی. څرنګه چې دا تطبيقات د پوځيانو د پاره تاريخی اهميت لری نو له دی امله يې محتويات دلته اقتباس کېږي: «بيست و هفتمين تطبيقات آشدار حربی پوهنځی در تپه ټولواک ساعت ۱۰-۸ تاريخ دوشنبه ۱۳۴۰/۵/۲ شروع ګرديده و ساعت ۱۱:۴۵ لوی درستيز و ساير جنرالان و صاحب منصبان از مرکز حمايت نخستين ديدن فرموده و راپور اجرأت صحی مراکز نخستين کندک از طرف دګروال دوکتور محمد قاسم عسکريار رئيس صحيه به حضورشان عرض ګرديد. سپس دوکتور اردوغان عزت ادروال (مشاور و استاد ترکی در حربی پوهنځی – مولفين) اجرای معاونيت های نخستين را چنين توضيح نمودند.

در هر کندک يک بلوک صحيه موجود بوده که بلوک صحيه اکمال صحی کندک را اجرا می نمايد. وظيفه بلوک صحيه استاسيون معاونيت نخستين کندک را تاسيس و بکار انداختن آن می باشد.

**در بلوک صحیه قسم های ذیل موجود است:**

۱- قسم تسکره چی ها:

این تسکره چی ها در هر تولی ۸ نفر بوده که عبارت از دو گروپ تسکره می باشد. در اثنای محاربه گروپ های تسکره به امر تولی ها داده شده و این تسکره چی ها – زخمی ها و مریض ها را الی استاسیون (شعبه مرکز صحیه) معاونیت نخستین نقل و تخلیه می نماید.

۲- در هر تولی یک اکیب (گروپ) صحیه موجود بوده که عبارتند از یک دلگی مشر صحیه و یک نفر نرس صحیه است. وظیفه آنها در داخل تولی اجرای معاونیت نخستین صحی است، بعد از کمک مریض و زخمی ها توسط گروپ های تسکره به استاسیون معاونیت نخستین کندک تسلیم می نماید. علاوتاً این ها فش (کارت ابتدایی – مولف، مومني) مریض و زخمی ها را خانه پوری می نمایند. یعنی نوع مریضی و مریض و زخم و اینکه چگونه مداخله صحی اجرا شده و کدام نوع ادویه در فش ها تثبیت کرده، بعد از آن این اشخاص مریضان و زخمی ها را بواسطه گروپ های تسکره به استاسیون نخستین معاونیت کندک نقل می نمایند.

درینجا باید ایضاح گردد که غایه تاسیس استاسیون معاونیت نخستین کندک، صریحاً تخلیه مریض و زخمی ها بوده و از همین سبب است که تحت امر استاسیون مذکور ۱-۲ جیپ تسکره بردار نیز موجود بوده بواسطه آن به سرعت، مریضان از جبهه الی استاسیون مذکور در تخلیه مریضان و زخمی ها وظیفه می بیند.

قوماندان بلوک صحیه که عبارت از دوکتور کندک می باشد این استاسیون (استیشن – مرکز صحیه کندک) معاونیت نخستین را نظر به وضعیت محاربه در یک محل مناسب تاسیس می کند.

در استاسیون معاونیت نخستین تحت نظارت داکتر کندک یک تکنیشن جراحی، یک تکنیشن طبی و تکنیشن دواسازی و یک خورد ضابط انضباط با افراد لازمه موجود می باشد.

استاسیون معاونیت نخستین کندک از چهار قسم متشکل است:

۱- قسم قبول و قید مریضان: مریضانیکه درین قسم می آیند احصائیه شان گرفته شده و وضعیت شان از طرف دوکتور تدقیق گردیده بعد از آن این مریضان را بدیگر قسم های استاسیون معاونت صحی کندک تسلیم می نمایند.

۲- قسم جراحی سنگین: این قسم زخمی های سنگین را بعد از معاینه داکتر می پذیرد.

۳- قسم جراحی ضعیف: عیناً مانند قسم جراحی سنگین وظیفه می بیند.

۴- قسم تخلیه: این قسم مریضان و زخمی هایکه تخلیه آن به غنډ ایجاب می کند کندک توسط امبولانس های غنډ و هلی کوپتر تخلیه می نمایند».

(لکه چې لیدل کېږی پورتنی راپورتاژ د ژورنالیستی ژانر د اصولو سره سم لیکل شوی نه دی، خو اهمیت یې په دې کې دی چې د هغه وخت د نوموړی پیښی معلومات یې تردی وخته را ورسول) (پوهنوال رازقی نړیوال).

په ۱۳۴۰ کې صحی نشرات د طب د دوکتورانو او د نظامی محصلینو له خوا په ورځپاڼو، جریدو او مجلو کې شروع کېږی، چې په زړه پوری او گټوری مقالی د اردو په مجله کې چاپ شوی دی. دلته گرانه ده چې د هغو ټولو لیکوالانو د نومونو یادونه وشی، خو د دوکتور قمرالدین اکسیر د اردو د دویم لمبر روغتون د رادیولوژی د متخصص څخه یادونه کولای شو. نوموړی د تحصیل په وخت کې او یا ځوان نظامی ډاکتر و چې د نورو په نسبت یې زیاتی مقالی چاپ ته رسیدلی دی.

د فارمسستانو له جملی څخه د عبدالوهاب ترین (وروسته د صحی ریاست د اکمالاتو د مدیر په توگه) څخه یادونه کولای شو.

د اردو صحیه خدماتو کال په کال وده او پراختیا موندله او د خپل فعالیت له محدودی څخه د باندې وتلی او په ملی او نړیوالو کنفرانسونو کې یې گډون کاوه.

دا وخت افغانستان د نړیوالی نظامی صحی مجلی غړی و چې دوکتور محمد قاسم عسکریار د نوموړی مجلی د لیکنی د هیئت (پلاوی) غړی هم و او د افغانستان د اردو د صحیه خدماتو استازی هم و. د دې مجلی سره په ۱۳۵۸ کال د اقتصادی ستونزو له کبله قطع شوی چې بیا وروسته دوباره احیا شوی دی.

مجربو دوکتورانو او متخصصینو هر کال په داخل او بهر کې په بیلا بیلو کنفرانسونو کې گډون درلود چې د نمونی په ډول د نړیوالی روغتیا د ورځی چې ۱۳۴۳ کال د وری میاشتی ۱۸ نیټه په حربی پوهنتون کې

ونمانځل شوه (محترم رازقی نړیوال چې په هغه وخت کې محصل و خپل یو روغتیایی شعر یې لوستلی دی).

په دې محفل کې لاندینو ذواتو ګډون کړی او مقالی یې ایراد کړی دي:

- ☜ تورنجنرال دوکتور محمد قاسم عسکریار د اردو د صحیه خدماتو آمر.
- ☜ دوکتور سید منصور شرق د اردو د روغتون د داخله رنځونو متخصص.
- ☜ دوکتور محمد نعیم ننګرهاری د اردو د روغتون د داخله رنځونو متخصص.
- ☜ دوکتور محمد افضل امان زی د حربی پوهنتون سرطبیب.
- ☜ ډګروال دوکتور محمد نصیر د صحیه آمریت د تداوی مدیر.
- ☜ دوکتور محمد یوسف بختیار.
- ☜ دوکتور عبدالقیوم نیازمند د اردو د روغتون د ساری ناروغیو متخصص.
- ☜ دوکتور عبدالفتاح ایازی د حربی ښوونځی د روغتون سرطبیب.

دا عنعنه تر اوسه پوری جریان لری د اردو طبیبان د روغتیا نړیواله ورځ، د ماشومانو د روغتیا نړیواله ورځ، د سری میاشتی نړیواله اونۍ او داسی نورو ملي او نړوالو مراسمو کې ګډون کړی دی.

په ۱۳۴۴ کال «په صحرا کې د صحی خدمتونو نوټونه» کتاب د دفاع وزارت له خوا چاپ شوی دی. دا کتاب چې ۱۰۸ مخونو درلودونکی دی. دا لومړی اثر دی چې په افغانستان کې د شوروی اتحاد د نظامی تکتیک د پیاده کولو وروسته طبع شوی دی. هغه آثار چې تردی د مخه لکه چې ورته مخکې اشاره شوېده نشر شوی هغه د ترکیی د جمهوریت او د امریکا متحده اضلاعو له تکتیک څخه اقتباس شوی وو.

افغانستان ته د شوروی اتحاد د وسلی او تخنیک د واردیدلو سره جوخت په حربی پوهنتون او د افسرانو په عالی کورس (کورس آ) کې د شوروی اتحادیو شمیر نظامی استادان استخدام شول او په نظامی موسساتو کې د ترکانو نقش ته خاتمه ورکړه شوه.

د دې کتاب مفردات او موضوعات د افسرانو په عالی کورس کې د ۴۵ ورځو د پاره د شوروی اتحاد مشاورینو له خوا د اردو دوکتورانو او فارمسستانو ته درس ورکړی دی.

دا کتاب د خاص اهمیت درلودونکی او دتطبیق وړ وو. موضوعات یې عبارت دی له:

- صحیه خدماتو دندی.
- په حرب کې د صحیه خدمات.
- د صحیه تشکیلات.
- د غونډ صحیه مرکز.
- د فرقی لوژستیکی قدمی.
- د فرقی صحیه قسم.
- د صحیه پرسونل او د صحیه جزوتامونو دندی.
- د لومړی خط صحرایی ګرځنده روغتونونه.
- د چانتی محتویات.
- طبی مرستی.
- د حمل و نقل او تخلیی وسایط.
- صحی تلفات او د ډله ایز اسلحی تاثیر.
- صحیه تامینات د دسته جمعی اسلحی تاثیر د چاودنی په اجاق کې.
- د حفظ الصحی او د ساری امراضو پر ضد تدابیر.
- په تعرض، تدافعی او د رفتار د وخت په محاربه کې صحیه تامینات.
- صحیه اکمالات او د لوژستیکی خدماتو سوق او اداره.
- د صحیه تاميناتو پلان او محاربوی فعالیت.
- او بالاخره د بندیانو سره معامله او په لس ګونو واړه واړه مطلبونه یکی ځای شوی دی چې د دوکتورانو فارمسستانو او آمرانو دپاره ډیر ښه لارښود دی.

په همدې کال (۱۳۴۴) د حوت په میاشت کې د طب د پوهنځی د فارغ التحصیلانو شمیر ۲۵ تنه وو چې د نوو دوکتورانو په حیث اردو ته معرفی شول. د شپږو تنو په شمیر چې د حربی ښوونځی تر فراغت وروسته

د حربی پوهنتون په لومړی ټولګی کې نه وو شامل شوی او له ملکی ساحې څخه نظامی ساحې ته راغلی وو د همردیف په توګه معرفی شوی دی.

تر ۱۳۵۷ کاله پورې هغه داکتران او فارمسستان چې د کابل یا ننګرهار پوهنتونونو څخه فارغ التحصیل کیدل که چیرته یې تر پوهنځی د مخه یې شپږ میاشتی په حربی پوهنتون کې درس لوستلی او بیا په ملکی پوهنتونونو کې شاملیدل تر فراغت وروسته د خپلو همصنفانو د رتبو مطابق په افسری منل کیدل.

خو هغو کسانو چې د حربی پوهنتون په درسونو کې یې ګډون کړی نه وو او یا د ملکی ښوونځیو له دولسم ټولګی څخه په ملکی پوهنتونونو کې د نظامی محصل په حیث شاملیدل نو تر فراغت وروسته د همردیف په حیث (همردیف د یو شمیر امتیازاتو لکه نفر خدمت، منظم ترفیعات، مادی امتیازات او نور څخه محروم وو او حتی یونیفورم یې هم باید د نورو افسرانو سره فرق درلودلای) په اردو کې شاملیدل او هغه وخت یې چې په حربی پوهنتون کې یو سمستر کورس پای ته رساوه د صاحب منصب په حیث پیژندل کیده.

خو د دغه ټکی د پای ته رسولو په خاطر د ۱۳۵۷ په وروستیو کې د طب یو شمیر داکتران، فارمسستان، او طبی منځنی پرسونل چې همردیف شمیرل کیده په حربی ښوونځی کې د یوی میاشتنی کورس اخستلو وروسته د اردو د صحیی ریاست تر لاښوونی لاندې د افسر په توګه وپیژندل شول او د همردیف کته ګوری د تل لپاره په اردو کې له منځه لاړ. په دغه برخه کې د جګړن عبدالحی مومنی ابتکار د قدر وړ دی.

په ۱۳۴۶ کې یو مهم او ارزښتناکه اثر «لومړنۍ مرستی» تر عنوان لاندې چې مولف یې ډګرمن ارکانحرب محمد یحیٰ نوروز ؤ چاپ شو.

د دې اثر د مندرجاتو په فهرست کې، د لومړنۍ مرستی تعریف او اهمیت، زخمونه، سوختګی، کسرونه، په وجود کې بهرنی اجسام، اسفیکسی، بیهوشی، مصنوعی تنفس، د ناروغانو او مجروحینو انتقال او انفرادی حفظ الصحه شامله ده (که څه هم محترم ارکانحرب محمد یحیٰ نوروز طبیب نه ؤ خو خپل مهم او ارزښتناک اثار او مقالی یې د صحیه خدماتو په بخش کې د اردو په مجلو او د هغه وخت په نورو نشراتو کې چاپ کړی دی — مؤمنی).

همداشان په ۱۳۴۶ کال کې «د اردو د بدنیه قابلیت تعلیمات نامه» طبع شوی چې ۹ فصلونه، ۷۱ مادو او یو شمیر جدولونو درلودونکی ده.

په ۱۳۵۷ کال کې د هغه وخت د شرایطو مطابق په دی تعلیمات نامه کې یو لړ تغییرات منځ ته راغلل یعنی په حقیقت کې پراختیا یې وموندله چې د یوه رهنمود په شکل د جلب او احضار ټولو صحی ګروپونو ته چې په ولایاتو کې توظیف شوی وو هغوی ته یوه یوه کاپی ورکول شوی او د هغو په اساس اجرأت کیدل.

په راتلونکو کلونو یعنی د جګړی په سختو په شرایطو کې د اردو د بدنیه قابلیت تعلیمات نامه، فوق العاده محدوده شوه او د جګړی دشرایطو سره سم د داکتر عبدالقیوم طوطاخیل په مرسته په یوه تعلیماتنامه بدله شوه. او له ۱۳۶۵ کال را وروسته دغه محدودیتونه تر یوه حده پوری لیری شول او په ۱۳۷۰ کال کې پر هغی یو بل نوی نظر وشو.

د اردو په روغتونونو (لومړی نمبر – قوای مرکز، دوهم نمبر – پل محمود خان) کې اختصاصی شعبو پراختیا وموندله او ورو ورو د دی دواړو روغتونو تر منځه وظیفی لامشخصی شوی لکه د جراحی برخی د لمړی نمبر روغتون پوری وتړل شو او د داخله عمده برخی په دوهم نمبر روغتون کې تداوی کیدل.

دا دواړه روغتونونه د یو واحد تشکیل درلودونکی و او پنځه سوه بستری یې درلودل چې ۳۰۰ بستری یې په لومړی روغتون کې (په ۱۳۵۰ کال کې یې ۲۷۰ بستری درلودلی چې د جراحی، داخله، ساری ناروغی، عقلی او سترګی سرویسونه په هغه کې فعال و) او ۲۰۰ بستره په دویم نمبر روغتون کې فعالیت درلود.

په همداشان د ننګرهار، د پولسمی فرقی روغتون په جلال آباد کې په مجهز صورت تقویه شو چې ۱۳۴۸ کال راوروسته یې زخمیانو او ناروغانو سره تخصصی او اختصاصی مرستی کولی. زرقی محلولات (نواکئین، سیروم ګلوکوز او فزیولوژیک) د هغه په دواخانه کې همدارنګه ترکیبی دواګانی هم تهیه او اعمال کیدلی. (د درملتون متخصص جګړن عبدالحی مؤمنی او مؤلفین).

د افغانستان د اردو د اړتیاوو د طبی مرستو د تطبیق حجم په کابل کې د دوو روغتونو په محدوده نه ترسره کیده، هماغه و چې د ۱۳۴۹ کال د غویی په میاشت کې د چارصد بستر روغتون (د اردو مرکزی روغتون) بنسټ کیښودل شو او د جوړولو کار یې پیل شو.

په ۱۳۴۹ کال کې یو بل رهنمودی اثر د «افغانستان د شاهی اردو، د لوژستیک د صحیه خدماتو د وقایوی طب تعلیمات» په نوم چې پنځه فصلونه

يې درلودل له چاپه راووته چې خاص ارزښت يې درلود او په اوسنيو شرايطو کې هم د تطبيق وړ دی.

په ۱۳۵۰ کال «د افغانستان د شاهی اردو د مشترکو عينياتو د محاسبی تعليماتنامه» خپره شوه. د ملی دفاع د وزير په لومړنۍ امر کې ويل شوی دي: «هر صنف خدمت تعليماتنامه اکمال صنف مربوط خود را با تمام تفصيلات و خصوصيات بحيث متمم اين تعليماتنامه حاضر نموده و بعد از منظوری بمعرض تطبيق بگذارد».

بايد وويل شی چې تراوسه پوری د عينياتو د محاسبی تعليماتنامه نه ده تدوين شوی او قسماً د ۱۳۲۸ کال د صحيه د عينياتو د محاسبی تعليماتنامی څخه چې د اوسنی وخت او شرايطو سره مطابقت نلری، استفاده کيږی.

هغه عوامل چې د صحيی خاصه تعليماتنامه موجوده نه ده په دې ډول دي:

۱- د مشترکو عينياتو د محاسبی تعليماتنامه تريوی اندازی پوری مشکلات ليری کوی.

۲- د مربوطو کدرونو نشتوالی، د مشترکو عينياتو د تعليماتنامی د تدوين راهيسی مو په دې اوږدو مودو کې – او همداشان دی مامول ته نه پاملرنه.

۳- د جګړو شرايطو هم مربوطو کدرونو ته ډير کم مجال ورکړ.

۴- څه رنګه چې د طبابت او فارمسی ساحه ډيره پراخه ده، چې اصلاً د يوی تعليماتنامی حجم هومره بايد پنډ شی چې وړل يې ډير ګران دی، نوځکه د صحيه عينياتو د محاسبی لارښودونکی اسناد د نړۍ په زياتره هېوادونو کې د رهنمودونو، د دفاع وزير د اوامرو، تعليماتنامو او نورو کې خپريږی. لکه چې د سولی او جګړی د وخت د طبی عينياتو نورم، يوه ډيره لويه مجموعه ده چې د دفاع د وزير د امر په حيث له هغه څخه استفاده کيدلای شی. او د طبی عينياتو د استعمال د معياد سره، د طبی عينياتو د ساتنی، د وسله والو قواوو د درملتونونو د فعاليت طرز او داسی نور په ځانګړی ډول تنظيم، د رهنما، ديرکتيف او نورو په شکل د يوه رسمی سند په توګه له هغه څخه استفاده کيږی.

د افغانستان د شاهی اردو د مشترکو عینیاتو د محاسبی تعلیماتنامه چې ۹ فصلونه او ۲۹۲ مادی او ضمایم لری او د محاسبی د نوی سیستم په اساس رامنځ ته شوی ده په وسلوالو قواو کې د تطبیق وړ ده، کنترول او تفتیش د همدې تعلیماتنامی په اساس صورت مومی، د صحیی د اکمال آمرینو، د درملتونونو د آمرینو، سرطبیبانو او د صحیي مرکزونو د آمرانو د کار پر میز د دی تعلیماتنامی موجودیت حتمی او ضروری ګڼل کېږی.

د اردو د مرکزی روغتون د ودانولو کار د وخت د دولتی حاکمیت د خاصی پاملرنی لاندې قرار درلود او همیشه د دولتی مشرانو د څارنی لاندې وو. لکه چې د ۱۳۵۱ د مرغومی په ۱۲ نیټه اعلحضرت محمد ظاهر شاه د افغانستان پاچا د دې روغتون د کار جریان وکوت، او محمد موسی شفیق صدراعظم هم د دې کال د مرغومی په ۱۹ نیټه د دی روغتون د کار د جریان څخه کتنه وکړه. *(د مرکزی روغتون او د هغه د پراختیا پړاوونه په ځانګړی څپرکی کې وړاندی کېږی – مولفین)*

لومړی نمبر او دوهم نمبر روغتونونه همیشه د ودی او پراختیا په حال کې وو او تل نوی ځانګی د وخت د غوښتنی او د کادری او اقتصادی امکان په اساس پرانستل کیدلی. لکه چې د اردو په لومړی نمبر روغتون کې د ۱۳۵۲ کال د غبرګولی په ۹ نیټه د چارشنبی په ورځ نسایی او د کوچنیانو ځانګی (سرویسونه) پرانستلی شوی.

د پورتنی موضوع په اړوند د اردو د مجلی د ۱۳۵۲ کال د وری د میاشتی د ګڼی په ۷ مخ کې داسی مطلب چاپ شوی چې دلته کټ مټ اقتباس کېږی.

«اردوی شاهی افغان که در تامین وقایه صحت صاحب منصبان، افراد و سایر منسوبین عسکری با تاسیس کلنیک های مختلف در شفاخانه های اردو و تربیه دوکتوران و متخصصین همواره وظیفه مهم خود را از پیش برده است، به مناسبت شعار روز جهانی صحت (که خانه کانون صحت است) در سال ۱۳۵۲ سرویس های نسایی و اطفال در شفاخانه نمبر یک اردو افتتاح و فعال ساخته است».

د دی دواړو ځانګو د افتتاح تاریخ داسی ښئ چې د نظامی طب په برخه کې وروستنی ګام د اعلحضرت محمد ظاهر شاه په وخت کې پورته شوی دی ځکه چې د ۱۳۵۲ کال د چنګاښ په ۲۶ نیټه دولتی حاکمیت سردار محمد داود خان ته منتقل شو (مؤلف، مومنی).

## نظامی طبابت د محمد داود خان د جمهوریت نه تر ۱۳۸۰

مرحوم محمد داود خان کله چې د صدراعظم په توګه دنده اجرا کوله نظامی طبابت سره یې ډېره مینه درلودله او په دغه برخه کې لویې لاس ته راوړنې او پرمختګ شوی دی. او د جمهوریت په دوره کې باید وویل شی چې هم د ښوونې او روزنې او هم د روغتونونو د پراختیا په برخه کې ارزښتناک کارونه شوی دی د بیلګی په توګه باید وویل شی چې:

د منځنی طب د منسوبینو تعلیم او تربیه د اردو د صحیه ریـــاست او د هغه په روغتونونو کې له اوږدو کلونو راهیسی ادامه درلودله او تراوسه پوری دوام لری چې د مختلفو دورو د فارغانو په هکله یادونی شوی دی. دا دی یو ځل بیا د فارغانو یوه بله دوره تر نظر تیروو.

«د ۱۳۵۲ کال د وړی ۲۷ پنجشنبی ورځ په ۱۱ بجو او ۳۰ دقیقو د عسکری کورس د اردو د روغتونونو د نرسانو تصدیق نامی او جوایز د ډګرجنرال محمد نذیر کبیر سراج د ملی دفاع وزارت د لوژستیک د رئیس له خوا فارغانو ته وویشل شول»[۱].

دا کورسونه په ۱۳۵۱ کال کې پیل شوی او نهه میاشتی دوام وکړ. کورس په دوو سمسترو تقسیم شوی چې لومړی سمستر څلور میاشتی او په دی کې توپوګرافی، خریطی، کیمیا و ګاز، خدمات داخله، پښتو او روسی ژبو مضمونونه او په دویم سمستر کې چې پنځه میاشتی یې دوام درلود، د صحیه خدماتو د حرب جراحی، ساری ناروغۍ، مشترک عینیاتو او د پښتو او روسی ژبو تدریس شوی دی. له کورس څخه ۱۲تنه فارغ شوی چې تورپیکۍ شیرزی په لومړی درجه، پیغله نادره حکیمی په دویمه درجه او پیغله شکریه غفور په دریمه درجه بریالی شوی دی.

نور فارغان لکه پیغله ماری، ګل مکۍ، ذکیه، نذیره، عایشه، صدیقه، میرمن نادره، پیغله راحله او حبیبه دی.

د حرب طبابت د ودی او پراختیا لکه (اورګانزیشن او د صحیه خدماتو تکتیک، نظامی طبی احصائیه، نظامی طبی اکمالات، جراحی حرب، داخله حرب، اپیدیمولوژی او د حرب حفظ الصحه، رادیو لوژی، د حرب توکسیکولوژی او نور) په باب باید وویل شی چې دا پروسه په لومړنۍ شکل د صحیه ریاست د کورسونو د مدیریت په واسطه (په لومړی وخت کې د

---

۱ - د اردو مجلی کالنی د ۱۳۵۲ کال د لړم میاشت ۱۰۰مخ.

قوای مرکز په روغتون او بیا د صحیه ریاست په قرارګاه او د افسرانو عالی کورس کې) پرمخ بیول کیدل.

طبیبانو او فارمسستانو د کابل او ننګرهار په پوهنتونونو کې تحصیل کاوه او یوازې مسلکی مضمونونه یې زده کول او د حرب د طبابت په نوم یې کوم مشخص مضمون نه لوستل، فارغ التحصیلانو تر فراغت وروسته د ستاژ یوه کلنه دوره د مرکز په اختصاصی روغتونونو او په صحیه ریاست کې تیروله او د مسلک د ستاژ کورس یې په دې موده کې (هره ورځ تر دولسو بجو وروسته) هم پای ته رساوه، دا کورس تر ۱۳۵۲ کال پورې دوام درلود.

عسکری طبیبانو او درمل جوړونکو په دی کورس کې د جراحی صحرا، داخله صحرا، انتانی، حفظ الصحه، د طبی عینیاتو محاسبه (نظامی اکمالات) مضمونونه هغه هم په ډیره نامنظمه توګه لوستل، چې د مسلکی کیفیت له مخی په ډیره ټیټه سطحه کې یې قرار درلود.

د پورتنی کورس ترڅنګه د ۱۳۴۰ کال له لومړیو څخه راهیسی کله چې په اردو کې شوروی عسکری تکتیک وارد شو نو یوشمیر داکتران او فارمسیستان د لینن ګراد (سن پطرز بورګ) طبی اکادمی ته ولیږل شول چې ځینی یې نظامی طبی اکمالاتو په برخو کې او یوشمیر یې د صحیه خدماتو د اورګانزیشن په برخه کې تحصیل وکړ او یوشمیر ځوانو دوکتورانو د لیننګراد د طبی اکادمی د طب په پوهنځی کې تحصیل کړی و، او کله چې هېواد ته راستانه شول د حرب د طبابت په وده یې پوره اغیزه واچوله، کله چې له ۱۳۵۰ کال را په دیخوا په نظامی نشراتو (اردو مجله) کې په دې هکله مضمونونه چاپ شوی دی.

له همدې ځایه و چې له ۱۳۴۸ په تیره بیا د ۱۳۵۲-۱۳۵۷ کلونو ترمنځه ده چې له ۱۳۵۴ کاله را په دیخوا د اردو د صحیی ریاست ته د شوروی صحیه مشاورین راتګ پیل کیږی. د حرب طبابت پلان ګذاری او ترویج، د مسلکی او محاربوی تعلیم او تربیی پرمخ بیول، د زده کړی د تقویمی پلانونو ترتیب و تنظیم، د صحیه خدماتو سوق و اداره، د جزوتامونو او معالجوی موسسو او د صحیی د اداری بخشونو د تشکیلاتو نوی کول او پراختیا، په ژمنی او دوبی تعلیمی دورو کې (په کال کې دوه ځلی) د قطعاتو او روغتونونو د صحی خدماتو د سرطبیبانو او امرینو د قصیر المدتو کورسونو تدویرول، د قطعاتو او جزوتامونو په صحی مرکزونو کې د چارو د ښه والی سازمان دهی، د طبی احصائیوی او محاسبوی اسنادو ترتیب او

خانه پوری. د غونډ او فرقی په سطح د صحیه خدماتو د تکتیکی تطبیقاتونو پرمخ بیول. د لکچر نوټونو تهیه کول، د لویو جزوتامونو په صحی مرکزونو او روغتونونو باندې تکثیرول او ویشل، او همداشان یو نور شمیر تدبیرونه د حرب د طبابت د ودی او پراختیا د پاره نیول کیدل.

هغه ستر گام چې د نظامی طبابت په پراختیا کې یې نوی نقش ولوباوه هغه د اردو د مرکزی روغتون (۴۰۰بستر روغتون) و چې د ۱۳۵۵ کال د لیندۍ د میاشتی په لومړۍ نیټه پرانستل شوه، هغه چې د شوروی اتحاد د دولت په مادی او تخنیکی مرسته ودانه او تجهیز شوی ده، دی روغتون په سیمه کې ساری نه درلود.

په دې روغتون کې چې تشکیل یې لکه د طبی علومو اکادمی په شان جوړ شوی و. په دې کې معالجوی او تشخیصوی څانګی او دیپارتمنتونه پرانستل شول چې مستقیماً د نظامی طبابت سره تړاو درلود. په دې روغتون کې تقریباً یوسل بستری د جراحی د مختلفو څانګو د پاره تشکیل شوی او نور پاتی څانګی یې د داخله د پاره وو. نو څکه په دې اثر کې مخکې له دی چې د اردو مرکزی روغتون په ۱۳۶۹ کال کې د مسلحو قواو د طبی علومو اکادمی ته ارتقا وکړه د طبی علومو اکادمی په نوم هم یاد شوی دی.

د وخت د شوروی اتحاد تحصیل یافته نظامی متخصصینو دوکتورانو فارمسستانو د نورو نظامی داکترانو او متخصصانو ترڅنګه په اردو کې د نظامی طبابت او اکمالاتو د ودی او پراختیا پروسی ته چټکتیا ورکوله، د مرکزی او اطرافو فرقو په تطبیقاتونو کې د دی روغتون متخصصینو ګډون کاوه.

په قطعاتو او جزوتامونو کې صحیه تشکیلات تنظیم شول، په یوشمیر غونډونو کې د فرقی د وضع الجیش څخه لیری پراته وو یوشمیر صحی مرکزونه فعال شول. د طبی عینیاتو اکمال بهتره بڼه ونیوله او یوشمیر فرقی او حتی غونډونه د صحرایي کامپلیتونو له پلوه اکمال شول.

د قندهار د قواو د اړتیاوو د لیری کولو په خاطر د ۱۳۵۵ کال په وری میاشت کې دریم نمبر اختصاصی روغتون د ۱۵۰ بسترو په ظرفیت تاسیس شو چې د داخله او جراحی څانګی او مجهز درملتون یې درلود.

د ۱۳۵۷ کال د غویی د اومی نېټی له پیښی راهیسی د نظامی صحی خدماتو په تامیناتو او عرضه کولو کې بدلونونه رامنځ ته شول. خو نه ښایي چې د دې نېټی څخه د مخه کلونو په لاس ته راوړنو چې د اردو د صحیه خدماتو په برخه کې ترسره شوی د بطلان کرښه وایستل شی، بلکی باید

وویل شی چې په هغه وخت کې د شرایطو، ایجاباتو، اقتصاد (پولی تخصیص) او د مسلکی کادرونو د نه شته والی له مخی ستر کارونه ترسره شوی او اغیزمن کارونه سرته رسیدلی دی. خو ډیره گرانه وه چې ټولی چاری په مطلوبه توګه اجرا شوی وای. د نمونی په ډول باید یادونه وشی کله چې په ۱۳۵۷ کې د صحیی ریاست اسناد له نظره تیریدل څرګنده شوه چې محترم مرحوم دوکتور خلمی څومره زیاتی هلی ځلی کړی دی چې یو لړ ستونزی په تیره بیا د صحیی ریاست د معتمدینو او محاسبینو، حسابات چې د کلونو راهیسی لاینحله پاتی وو حل و فصل کړی، خو د ده په وړاندی خنډونه موجود وو، ترڅو چې دا زمینه مساعده شوه چې د ۱۳۵۷ را وروسته یوشمیر ستونزی له منځه یووړل شوی.

هغه څه چې د ۱۳۵۷ کال د غویی له اومی نیټی را وروسته د صحیه خدماتو په برخه کې ترسره شول او د انتقاد ګوته ور باندې باید کیښودل شی هغه په لاندې توګه دي:

۱- د اداری او مسلکی کادرونو تعویض په ژوره توګه صورت وموند چې باید داسی شوی نه وای.

۲- په نظامی طبابت کې سیاست ور داخل شوی یا په واضحه توګه وویل شی چې هم سیاستمدار، هم اداره چې هم معالج، هم متخصص او هم درمل جوړونکی نور او نور. دا په دی معنی وو چې لکه دوه دانی هندوانی په یو لاس کې ونیول شی.

خو څه باید شوی وای د هماغه وخت او زمان، ملی او بین المللی شرایط و چې په اصطلاح په مترقی هېوادونو کې باید چې یو حزبی سیستم موجود وی. سیاست په ټولو شئوناتو لکه اقتصادی، اجتماعی، فرهنګی، کلتوری نور او نورو کې، سردمدار وی. له دې ځایه ده چې هغه په مطلق ډول اشتباه شمیرل کیدای نه شی ځکه په هماغه وخت کې هماغه غوښتنی لازمی ګڼل کیږی ځکه له یوی خوا د حزبی کادرونو د کموالی په صورت کې کیدای شی چې یو کادر په دوه دری ځایونو کې کار وکړی. له بلې خوا مونږ نه غواړو د واقعیت نه د باندې برتری او یا که په ګزاف ګویی سره وویل شی او تر دی دوری پوری ورته لا لوړه جلوه ورکړو، خو بیا هم هغه څه چې پېښ شوی هغه به ولیکو:

۱- د کابل او ننګرهار د نظامی طب محصلینو په شمیر کې زیاتوالی. (هر کال ۷۵ تنه د کابل په طب او ۲۵ تنه د ننګرهار په طب کې).

۲- له پنځو سو تنو محصلینو چې ۴۰ تنه یې ځمکنی طب او ۱۰ تنه په هوایی طب کې د دوستو هېوادونو ته لیږل کیدل.

۳- هر کال سل تنه ښځینه او نارینه نرسان – ۱۰ تنه په ننګرهار، ۲۰ تنه په قندهار، ۷۰ تنه د عامی روغتیا وزارت په مرکز او نور پاتی نظر په لزوم دید د مرکزی روغتون کې تر تدریس لاندې نیول کېږی.

۴- د عامی روغتیا په لوړو کورسونو (منځنی تعلیمات) کې په دواسازی، لابراتوار، اکسریز هر یوه کې لس لس تنه – د غاښونو او وقایوی طب کې پنځه پنځه تنه هر کال روزل کېږی.

۵- د طبی آلاتو د ترمیم په برخه کې د امکان په صورت ۲۰ تنه د تخنیک د ښوونځی او یا بکلوریا فارغ التحصیلان په یوه دوست هېواد کې (د هر هېواد چې طبی تخنیک په صحیه کې ډیر زیات دی، لکه شوروی یا چکوسلواکیا) د روزنی لاندې نیول کېږی.

۶- د دیپو داری، درمل پیژندنی، طبی سامان، مالزمی او آلاتو او د طبی عینیاتو د ساتنی د طریقو په رشتو کې د دولسمو ټولګیو فارغانو ۲۰تنه په دوستو هېوادونو کې تر روزنی لاندې نیول کېږی.

۷- د مخکنۍ طب، هوایی طب (بالخاصه د پارا کلنیک څانګی) په برخو کې هر کال د دوکتورانو او دواسازانو لس لس تنه د اوردنیا تورۍ د تحصیلاتو په غرض دوستو هېوادونو ته لیږل کېږی.

۸- د علمی کادرونو د شمیر د زیاتښت په غرض او د دوکتورا (Ph.D) د اخستلو د پاره د طبابت په مختلفو څانګو کې هر کال یو یو نفر دوستو هېوادونو ته لیږل کېږی.

۹- د ګرده صحی پرسونل د معلوماتو د لوړولو د پاره، دری میاشتی، شپږ میاشتنی کورسونه پای ته رسول چې پلان یې دوستو هېوادونو ته ورکړل شوی دی ترڅو چې مستقیماً د هغو هېوادونو په صحی موسساتو کې عملی فعالیت وکړی.

۱۰- دعلمی توأمیت یو تړون د صحیی ریاست (مرکزی روغتون) او د شوروی اتحاد د لیننګراد د نظامی طبی علومو اکادمی ترمنځه او یا نورو هېوادونو ورته صحی موسسو ترمنځه لاسلیک کېږی.

۱۱- په یوه پنځه کلنه دوره کې له ۱۵-۲۰ تنو پوری د طب دوکتوران او دواسازان پخپله د مرکزی روغتون کې د تخصصی تربیی لاندې نیول کیږی.

۱۲- د مرکزی روغتون په چوکات کې د نظامی طب پوهنځی پرانستل د ۱۳۶۲ کال تر لومړنیو پوری تر څیړنی لاندې نیول.

۱۳- د ضرورت له مخی د دوستو هېوادونو مشاورین په روغتونونو او د صحیه خدماتو او هوایي په آمریت کې ګمارل کیږی.

۱۴- د صحیه خدماتو د قرارګاه، دیپوګانو او د هغو د ملحقاتو د پاره ۲۰-۲۵ جریبه مځکی استملاک او د هغوی د تعمیراتو جوړول (په هغه ساحه کې چې اوس (۱۳۵۷) د صحیه ریاست موقعیت لری په ۱۳۵۵-۱۳۵۶ کلونو کې د هغی مځکه د نومرو د ودانولو په خاطر خلکوته توزیع شوی وه. د صحیی ریاست د هغه وخت د پالیسی له مخی مجبور و چې د خپلو شعباتو د پاره بل چیرته یو ځای تدارک کړی چې په دې غرض د هوخست د فابریکی لویدیزه ساحه انتخاب او استملاک شوه).

۱۵- د مرکزی روغتون پراختیا – د تعمیراتو او د علمی ریسرچ د لابراتوارونو له مخی.

۱۶- د وسله وال پوځ د دویم نمبر روغتون د بلاکونو ودانول د اطفالو، نسایی او ولادی ۲۰۰ بسترو د پاره.

۱۷- د وسله وال پوځ د لمړی نمبر روغتون د بلاکونو تجهیزول د ۵۰۰ بسترو د پاره.

۱۸- په ۱۱-۱۲-۱۴-۲۵- او ۱۸ فرقو کې د اړتیا وړ بلاکونه ترمیم او جوړول او له ۷۵ څخه تر ۱۰۰ بسترو ته د هغو لوړول.

۱۹- د هغو غونډونو د صحی مرکزونو انکشاف چې د فرقی د وضع الجیش څخه یې مسافه له ۵۰ کیلو مترو لیری وی، د ۲۰بسترو په ګنجایش – د غاښونو او لابراتوار د ځانګو سره.

۲۰- د ۱۰۰-۱۵۰ بسترو په ظرفیت د عقلی او عصبی ناروغانو د پاره د یوه روغتون ودانول او تجهیزول.

۲۱- د ۱۰۰-۱۵۰ بسترو په ظرفیت د یوه سناتوریم تدارک او ودانول.

۲۲- د ۱۰۰-۱۵۰ بسترو په ظرفیت د هوایی قواو د پاره د یوه روغتون ودانول چې په عصری آلاتو (باروکامر) مجهز وی.

۲۳- د قندهار د ۱۵۰ بستریز روغتون ۳۰۰ بسترو ته لوړول. د اداری او پرسونل د پاره او نور چې په طبی آلاتو مجهز وی د بلاکونو ترمیم او جوړول.

۲۴- په جلال آباد (ختیز زون)، پکتیا (جنوبی زون)، شین ډنډ (لویدیز زون) او د شمال په زون، هر یوه کې د ۲۰۰-۲۵۰ بسترو په ظرفیت د روغتونونو ودانول، او د مرکزی قول اردو د قطعاتو د پاره د یوه روغتون جوړول. (د دی روغتونونو ټیپیکی نقشی د تعمیراتو په ریاست کې تکمیلی شوی دي). پر دی برسیره په دغه روغتونونو کې مجهز پولی کلنیکونه هم په پام کې نیول شوی دی.

۲۵- د فرقو د صحی مرکزونو په شمیر د اکسریز، غاښونو، نرکوز، مقطری اوبه او تعقیم د دستگا وو اکمال.

۲۶- د فرقو د صحی مرکزونو په شمیر د طبی، جراحی او تشخیصی سامان آلاتو او لوازم اکمالول.

۲۷- د فرقو په صحی مرکزونو کې د لابراتواری سامان آلاتو اکمال.

۲۸- د اردو د تشکیل له مخی د سفربرۍ د طبی عینیاتو (سفری کامپلیتونو) اکمال.

۲۹- د اردو د تشکیل له مخی د سیارو لابراتوارونو، گرځنده اکسریز او گرځنده جراحی موټر اکمال.

۳۰- په پنځه کلن پلان کې د بودجی زیاتوالی.

۳۱- د هغو طبی آلاتو د فالتو پرزه جاتو اکمال چې له کاره لویدلی وی.

۳۲- د طبی آلاتو د ترمیم د یوه مکمل ورکشاپ اکمالول.

۳۳- د مرکزی روغتون په واک کې د یوی پایی گستدنرماشین ورکول.

۳۴- د مرکزی روغتون په چوکات کې د یوه طبی ژورنال (مجلی) تاسیسول.

۳۵- د مرکزی روغتون د افرادو د پاره د استراحت د کوټو، طعامخانه، آشپزخانی ودانول او د مرکزی روغتون د کورسونو د مداومینو د پاره یو لړ ودانی جوړول[1].

☜ د تشکیلاتی موضوع له مخی باید وویل شی چې په دې کال (۱۳۵۷) کې لومړی دومره ستر بدلونونه رانغلل، منتها د صحیه خدماتو په تشکیل کې د ترانسپورت یو ټولی فعال کړی شو، چې د هېواد له زیاترو سیمو څخه یې نـــاروغان او ټپیان (لکه د پروان، غزنی، میدان ښار، گردیز، جلال آباد، سروبی او نورو څخه) په مرکزی ډول همدې ټولی په واسطه تخلیه ترسره کیدله. همداشان یو شمیر الوتکی لکه ان-۲، می-۴، اومی-۸ هم د صحی خدماتو په خدمت کې گمارل شوی وو.

☜ د اردو د مرکزی پولی کلنیک تشکیل تکمیل او د ۱۳۵۸ کال د غبرگولی په ۱۵ نیټه یې په فعالیت پیل وکړ.

☜ د کادرونو د تکمیل د پاره ۱۹تنه د طب داکتران، ۲تنه فارمسستان او ۳۰تنه نرسان د عامی روغتیا وزارت څخه د اردو د صحیه خدماتو په لست کې ورکړ شول.

☜ د ښوونی او روزنی په باره کې ویل کیدای شی، چې د طبی علومو په اکادمی، د لوژستیک د لوی ریاست په تربیوی مرکز او د قندهار په روغتون کې طبی منځنی کورسونو پرانستل شو.

☜ دوکتوران، طبی او وترنری پرسونل چې تر دی وخته د (۱۳۵۷) پوری همردیف وو د کورس په اخستلو سره د افسر په حیث وپیژندل شول او د افسری ترفیعاتو او امتیازاتو څخه برخوردار شول.

☜ د روغتونونو، فرقو او مستقلو قطعاتو د صحی مرکزونو سرطبیبانو او صحیه امرانو د پاره او ړنې او ژمنۍ قصیرالمدت کورسونه تدویر او هغوی په دی وسیله د قدموی تخلیوی پرنسیبونو، په قدمو کې د طبی مرستو د تطبیق طریقی او حجم، د ساری ناروغیو پر ضد د وقایوی تدبیررونو، د طبی علومو اکادمی او پولی کلنیک د فعالیت طرز او د دوی ترمنځه وظیفوی ارتباط، د طب نوی حضری او سفری او عصری تخنیک، د سفربرۍ د

---

۱ - د خلکو د وسله وال پوځ د طبی علومو اکادمی د ۱۳۵۸ کال کالنی ــ ۸مخ.

صحی کمپلیتونو، د درملو او طبی تجهیزاتو تولید، د دیپوګانو د ترتیب او تظیم شکل، او د صحیه خدماتو د سوق او اداری د چارو سره آشنایی پیدا کړی شوه.

- د محاسبوی چارو (طبی احصایی) د ترتیب او تظیم په برخه کې باید وویل شی چې د طبی عینیاتو اکمال لومړنی پلان هومره پراخ و خوله نیکه مرغه تطبیق شو چې صحیه خدمات د خپل موجودیت په موده کې دومره طبی عینیات نه واکمال کړی.
- د محاسبی په چارو کې اصلاحات رامنځ ته شول، په لس ګونو معتمدین محاسبین چې په کلونو کلونو یې حسابی چاری لاینحلی پاتی وی او په ملیونونو افغانۍ یې را نیول تصفیه شولی.
- ډیپوګان په عصری ډول تجهیز، تنظیم او ترتیب شول. اضافی او د استفادی غیر قابل عینیات تصفیه او قید یی کړل. د یو شمیر طبی عینیاتو ځخه د حرب پاکتونه، د C.B.A کمپلیتونه ترتیب شول چې د غونډ د صحیه مرکز د طبی مرستو حجم یی (دوکتوري) د صحرا به شرایطو کې تکافو کاوه او په قطعاتو وویشل شو.
- د مقطرو اوبو او د صحرایی تعقیم دستګاوی، د دوش (وینځلو) او عفونی ضد دستګاوی اکمال او د تشکیل له مخی په قطعاتو وویشل شوی.
- د پانسمان او د جراحی موتر فعال او په لس ګونو محاربوی فعالیتونو کې تری ګټه واخستل شوه او سیار صحرایی لابراتوار هم فعال شو.

د پورتنیو دستګاوو په اړوند د صحیه خدماتو په آمریت کې د زده کړی کورسونه جوړ شول.

- د پلان ګذاری سیستم منځ ته راغی او د پلان په مدیریت کې د طبی عینیاتو محاسبیت رامنځ ته شو. سفری کمپلیتونه اکمال او په غونډونو او فرقو وویشل شول.
- د وقایی، معالجی او تشخیص په هکله باید وویل شی، چې معالجوی پروسه په روغتونونو او صحی مرکزونو کې خاص کیفیت درلود. هغو طبی کادرونو چې پخپلو مسلکونو کې پیاوړی وو په موقتی ډول په اطرافو کې توظیف شول او په دې توګه صحی مرکزونه فعال کړی شول.

☜ د وقايی په باب بايد ووايو چې موجز تدبيرونه په دې هکله ونيول شول. او د تشخيص په برخه کې نوی ميتودونه (انجيو ګرافی، اندوسکوپی او نور) رويکار شول.

☜ د طبی عينياتو د توليد په برخه کې ښايی يادونه وشی چې د اردو صحيه رياست د اعمال لابراتوارونه بيا احيا او يوه پايه د تابليت جوړولو مدرن ماشين چې د مخی پېرودل شوی و د هغه د ملحقاتو سره نصب شو، د الکولو د تقطير دستګاه د ۲.۵۰۰ ليترو په کلنۍ توليد فعاليت درلود او د ضرورت وړ مميز (کشمش) له موسسو او د ميوی د سمون شرکت څخه په وړيا ډول مرسته کيدله.

☜ په همدې شان د طبی علومو اکادمی د روغتون، مرکزی پولی کلنيک او د نورو روغتونونو درملتونونه به لس ګونو قلمونه زرقی او غير زرقی درمل اعمال کولی.

☜ د اردو د صحيه خدماتو آمريت، داخله وزارت او د کار د قواو روغتيايی ارګانونو ترمنځه نږدی ارتباط تامين شو چې د دوی په سرکې د اردو صحيه خدماتو قرار درلود او د هغوی سره مرسته او کومک کاوه.

☜ د علمی څېړنو په باب بايد وويل شی چې د ۱۳۵۷ کال يکشنبه د وږی د مياشتی ۲۷ نيټه د لومړی ځل د پاره د هېواد په يو ستر معالجوی او علمی مرکز کې علمی او پراتيکی کنفرانس جوړ شو، چې دی پروسی په عنعنوی ډول تر ډير وخت پوری دوام درلود.

متخصصينو، دوکتورانو او فارمسستانو د شوروی اتحاد د محدودو مشاورينو سره يو ځای په دی موسسه کې علمی او پراکتيکی فعاليتونه پيل کړل چې د خپل علمی فعاليتونو د کار محصول يې په دغه علمی او پراکتيکی کنفرانس کې منعکس کړل.

څه رنګه چې دا کنفرانس د اردو د صحيه خدماتو لومړنی کنفرانس و او تاريخی حيثيت لری نو ښايی چې يو څه لازم بحث پری وشی.

د کنفرانس په پيل کې چې د عامی روغتيا وزارت، د لوړو زده کړو وزارت د کابل پوهنتون او د کابل د پوهنتون د روغتونونو عالمانو، پوهانو، متخصصينو او ډاکترانو ګډون درلود، د اردو مرکزی روغتون په تالار کې د وخت د انقلابی شورا پيغام ولوستل شو.

وروسته د عامې روغتیا وزیر، د لوژستیک عمومی رئیس، د صحیی رئیس او د اردو مرکزی روغتون قوماندان خپلې بیانې و اورولې.

تر دې وروسته کنفرانس په دوو برخو خپل فعالیت تنظیم کړ او د جراحۍ او داخلې په برخو کې ادامه وموندله. په دی کنفرانس کې د اردو د مرکز د نظامی متخصصانو برسیره، د روغتونونو سرطبیبانو، د فرقو او مستقلو قطعاتو د صحی مرکزونو آمرانو او داکترانو، د کورنیو چارو د وزارت او د کار د قواوو د روغتونونو آمرین او دوکتوران هم را بلل شوی وو.

په دې کنفرانس کې په بیلا بیلو بخشونو کې ۳۵ عنوانه علمی او مسلکی مقالې ولوستل شوی او په ډیر شور او شعف پری بحث وشو او د ګډون کوونکو د زیاتی دلچسپی وړ وګرځیدلې.

دا کنفرانس د ملکی د ساحی پوهانو دومره زیات خوښ شو چې یادونه یې ګرانه ده. لکه چې د نسایی ناروغیو پروفیسور، د طب د پوهنځی استاد او د عامې روغتیا وزیر محترم پروفیسور محمد عثمان انوری په دې برخه کې ژور احساسات وښودل او د کنفرانس ستاینه او درناوی یې وکړ.

په کنفرانس کې د اردو د صحیی رئیس جګړن عبدالحی مومنی د راتلونکی پنځه کلن پلان (لکه چې مخکی لیکل شوي) او د اجرا شویو کارونو په هکله معلومات وړاندی کړ، او د اردو مرکزی روغتون قوماندان دګرمن دوکتور محمد غنی اندړ د اکادمی د دوو کلونو اجراتو په هکله او د هغو اساسی پرابلمونو په باب چې کار پری روان و او په راتلونکی کې پری څیړنی کیدلی توضیحات ورکړل چې په لاندې ډول وو.

**- د جراحی په ساحه کې:**

١- په وسله وال پوځ کې د تراوماتیزم مطالعه، احصائیه او د پرابلمونو تدقیق او د هغه د وقایی د لارو پیشنهاد.

٢- د بیلا بیلو پریتونیتونو د مدهش پرابلم مطالعه، د روغتون تر قدمو پوری د هغو د سم اورګانیزاسیون سره د عاجلو مرستو تشخیص.

٣- د مود دیفیکاسیون مطالعه او احصائیه. د وسله وال پوځ د منسوبانو او د هغوی د کورنۍ د غړو په نزد توبرکلوزیک پریتونیت کامپلکسی معالجه.

۴- په ټول وسله وال پوځ کې د یو واحد سیستم په شکل د نظامی طبابت د اساسی دکترینو ترتیب، تنظیم او د عمل په ساحه کې د هغو پلی کول.

۵- په حادو او مزمنو واقعاتو (کسور متعدد در واقعات حاد و تشکیل کل های معیوبه توأم با کوتاهی و درازي) کې د خارج عظمی د اوستیوسنتیز له میتودونو څخه د پراتیک پراخه استعمال.

۶- د عاجلو مرستو د پرابلمونو د مطالعی تکامل، د بی ځنډو مرستو د تطبیق د سیستم ترتیب او تنظیم له لومړی قدمی څخه تر روغتون پوری.

۷- د شپږ میاشتینو کورسونو ترتیب او تنظیم او بیا د مختلفو قطعاتو د دوکتورانو د پاره د دوو کلونو تخصصی کورسونو جوړول.

۸- د پریودیک په شکل نورو جراحی موسساتو او د وسله وال پوځ قطعاتو ته د لازمو هدایاتو د کانسلتیشن ورکول.

**- په داخله ساحه کې:**

۱- د افغانستان د شرایطو له مخی په وسله وال پوځ کې د قلبی اسکمیکو ناروغیو پرابلم او د هغو د عاجلو او مدرنو لارو بررسی.

۲- په وسله وال پوځ کې د سږیو د مزمنو او غیر وصفی ناروغیو علمی او عملی کار، د هغوی احصائیه، تشخیص او تداوی د بین المللی سویې په مدرنو وسایلو سره.

۳- د افغانستان په شرایطو کې د طحال او کبدی ناروغیو پرابلم چې په وسله وال پوځ کې یې ډیری سرآیت کوونکی ناروغی تشکیلی کړی دی.

۴- د داخلی غړیو او مفصلونو د روماتیزم علمی او پراکتیکی کار، او په وسله وال پوځ کې د فزیوتراپی په مدرنو وسایلو سره د هغوی تداوی او د مسلحو قواو د جګړه ایزی وړتیا لوړول.

۵- د افغانستان په شرایطو کې د اندوکرین په تیره بیا د شکری ناروغی او د درقیه غدی د سیستم علمی او پراکتیکی کار او د درقیه د غدی د ناروغی د اندمیکی سیمو احصائیه او تعیین.

۶- په وسله وال پوځ کې د معدی او معایی ناروغیو علمی تحقیقات او د هغو د تداوی شکل.

۷- د ځوانانو د فانکسیونل ناروغیو په تیره بیا په وعایی قلبی سیستم او معایی معدی جهاز کې.

۸- د هیپوویتامینوز او د غذایی موادو د کمښت څخه را پیدا شوی د وینی او فقرالدم د ناروغیو پرابلم.

۹- د استمأ برانشیل او نورو الرژیکی ناروغیو او د ضد حساسیت د انتی ژنیک د موادو د تامین او پرابلم د حل کولو په برخه کې علمی څېړنی.

۱۰- د تنفسی د مزمنو او د ریتان د غیر وصفی ناروغیو انسانی تداوی.

۱۱- د معدی په ناروغیو کې د گاستروگرافی په معایناتو کې د علمی کار تحقیقات.

۱۲- د بیوشمیک د معایی باکتریاوو د وصف په کلاسیک او سریع میتود سره د معایناتو د نتیجو نسبتی ارزش.

۱۳- د برونکوگرافی اجرا د مزمنی پنومونی تشخیص.

۱۴- د فوتومتریک په اصولو د هیموگلوبین د مقدار او د وینو د سرو کرویاتو د شیمر تامینول.

۱۵- د اکادمی د روغتون د متریال له مخی د استما برانشیل د ناروغانو په تشخیص او تداوی کې د تنفس د تعیینولو اهمیت.

۱۶- په وسله وال پوځ کې د جلدی ناروغیو د خصوصیاتو په برخه کې علمی کار.

۱۷- په وسله وال پوځ کې د انتانی ناروغیو او د هغو د مخنیوی پرابلم.

۱۸- د وسله وال پوځ او د هغوی د متعلقینو توبرکلوز د پرابلم په نظر کې نیولو سره او د عسکری سناتوریم تاسیس او د توبرکلوز سره د مجادلی د نورو مرکزونو سره د هغو اړیکی[۱].

---

۱ - د طبی علومو د اکادمی د ۱۳۵۸ کالنی ۱۴ مخ په حواله.

د ۱۳۵۷ کال د غويي د اومی پېښی وروسته د وخت د ضرورت او غوښتنو له مخی لازم شول چې د مرکزی روغتون او د هغه په تشکیلاتو کې تغییرات رامنځ ته شی چې دا تدابیر په لاندې ډول دي:

په دوامداره توګه د اردو مرکزی روغتون ته د ۱۳۵۸ کال د وری له پیل کیدو څخه راهیسی په کتلوی توګه د ناریه جروحاتو مجروحین چې د دی کال تر پایه پوری د هغوی شمیر ۴.۵۰۰ تنو ته رسیده مراجعه کړی ده. په دی وخت کې د اردو مرکزی روغتون (د طبی علومو اکادمی روغتون) د تداوی تر پایه پوری د وسله وال پوځ د زخمیانو د جراحی د تصنیف او د عاجلو او تخصصی مرستو د اجرا کولو د مرکز په توګه تاکل شوی و، او پورتنیو شرایطو ایجابوله چې د روغتون چاری او تداوی او تشخیصی فعالیت په یو بل شکل تغییر وموممی او د هغی د بسترو شمیر له ۴۰۰ څخه ۱.۱۰۰ بسترو ته ورپورته شی. نو له دی امله لاندنی دیپارتمنتونه (سرویسونه) یا څانګی ترتیب شول.

- ☜ د قحف، عنق، شمزیو (ستون فقرات)، غوږ او ستونی، سترګو او ستوماتولوژی د ناروغانو څانګه د ۱۳۵ بسترو په ظرفیت.
- ☜ د فخذ او کبیره مفاصلو د زخمیانو د پاره د تراوماتولوژی ۱ نمبر څانګه د ۱۶۰ بسترو په لرلو.
- ☜ د هډوکو د ناریه کسورو د پاره د تراوماتولوژی ۲ نمبر څانګه د ۱۸۰ بسترو په ظرفیت.
- ☜ د تقیحی اختلاطاتو سره د ناریه جروحاتو څانګه د ۱۴۵ بسترو په ظرفیت.
- ☜ د سپکو ناریه جروحاتو څانګه د ۲۰۰ بسترو په ظرفیت.
- ☜ د شوک ضد او ریانیماسیون څانګه د ۲۰ بسترو په ظرفیت.
- ☜ د ساری څانګه د ۵۰ بسترو په ظرفیت.
- ☜ داخله څانګه د ۵۵ بسترو په ظرفیت.
- ☜ د قید او قبول څانګه د ۱۰ بسترو په ظرفیت.

په دې هر یو سرویس (څانګه) کې له ۲-۳ پوری د پانسمان میزونه او د تراوماتولوژی په څانګو کې ۴-۵ پوری میزونه د پلستر د پاره ترتیب شوی وو.

د ګسترو انترولوژی، وعایی قلبی، کوچنیانو، نسایی ولادی، او جلدی څانګو پخپله په مرکزی روغتون کې خپل فعالیت ته خاتمه ورکړه.

همداشان د ۷۰ بسترو په شمیر د تداوی په حوض کې ترتیب او هلته هغه زخمیان چې تپونه یی التیام شوی او یوازی فزیکی او میخانیکی تداوی ته یې ضرورت درلود تنظیم شوی وی.

په ۱۳۶۴ کال کې د ناروغانو دا برخه ساری تعمیر ته انتقال شوه او د ساری سرویس د وزیر اکبرخان مینی په ۱۵ سرک کې ځای پر ځای شو چې د اورګانزیشن له مخی معقول کار نه و ځکه د خلکو د کورونو په منځ کې ساری دیپارتمنت ځای پر ځای شوی و. ترڅو چې په ۱۳۷۰ کال کې دوباره خپل اصلی تعمیر ته را انتقال شو.

د ۱۳۵۸ جنګاښ په میاشت کې د اردو لومړی نمبر روغتون (قوای مرکز) د سپکو ټپیانو د پاره ۳۰۰ بستری ترتیب او د همدې کال د تلی په میاشت کې د وزیر اکبر خان روغتون د ۲۰۰ بسترو په ظرفیت د عامی روغتیا وزارت له خوا د دفاع وزارت په خدمت کې ورکړ شو، چې زیاتره د تراوماتولوژۍ د روغتون په توګه د اطرافو د غیر ناریه ترلو او خلاص (باز و بسته) کسرونو، د قحف، صدر او بطن مصدومینو د درملنی د پاره چې جراحی مداخلی یې نه ایجابول د استفادی وړ وګرزیدله. او په دی توګه یو ۱.۶۰۰ بستریز روغتون بیز چې په هغه کې مرکزی روغتون د جراحی د تخصصی یو شمیر څانګو روغتون په حیث د تصنیف دندی یې هم په غاړه درلودلی تشکیل شو.

د مصدومینو او ناروغانو د قبلولو او تصنیف د پاره په لومړی سرکې دوه ګروپه او بیا وروسته د تصنیف دری ګروپه پکې ترتیب شول چې په هغه کې یو داکتر، دوه نرسان او څلور تنه تسکره وړونکی موجود وو. دی ګروپونو د ۲۴ ساعته نوکریوالی کې خپلی دندی ترسره کولی او په قید و قبول کې د مراجعینو تصنیف او په حتمی توګه د پانسمان تبدیل او د مخصوصو علایمو نصبول تر سره کول.

د نوکریوالی په ګروپ کې د انتانی ناروغیو د تجرید له مخی د زخمیانو د معاینی په مقصد د همیشه دپاره یو تن د انتانی داکتر او یو تن د داخله داکتر برخه اخستله او دا اقدامات په خپل ذات کې، د جګړه ایزو شرایطو سره سره د داسی ناروغیو د مخنیوی د حفظ الصحوی مرکزونو د نشتوالی یا وجود د انتانی ناروغیو په مخنیوی کې بیخی زیات اغیزمن تمامیدل.

د شوک ضد کوټو کې د دوکتورانو د کمبود په نسبت د داخله دوکتورانو څخه کار اخستل کیده په لومړی سرکی د روغتون د محاربوی چمتووالی د پلان مطابق د زخمیانو سره د جراحی د مرستو د اجرا کولو په خاطر په لاندې ډول ۷ ګروپه تنظیم شوی وو.

۱- د قحف د عملیاتو د پاره ۲ ګروپه.

۲- د صدر، بطن او حوصلی عملیاتو د پاره ۲ ګروپه.

۳- د اطرافو د ناریه جروحاتو د عملیاتو د پاره ۳ ګروپه.

خو په وروستی مرحله کې د ستونزو په نسبت د جراحی مرستو تغیر وموند.

- د جراحی ټول دوکتوران په درو ګروپونو باندې تقسیم شوی وو چې خپله ۲۴ ساعته نوکریوالی یی یو د بل پسی په غاړه درلودله. د نوکریوالی د ګروپ د نه کفایت په نسبت د هغوی د دغی نوکریوالی ورځنی ګروپ چې خلاصیده نو د ورځی له خوا یې د مرستندویه ګروپ په حیث د نورو ۲۴ ساعتونو د پاره په روغتون کې پاتی کیدل.

د شپی له خوا د عمومی جراحی، تراوماتولوژی او انستیزی دوکتورانو د کورونو څخه راغوښتل او د یو ترتیب شوی لست له مخی تنظیم او په حقیقت کې دا ډول متخصصین په خپلو کورونو کې هم د نوکریوال په توګه اوسیدل او د کار د زیات حجم په نسبت وظیفی ته احضاریدل.

په روغتونونو کې د کار د حجم د زیاتښت په سبب او علت د ۱۳۵۸ کال په لومړیو او له هغه مخه کال د مجروحینو د قدموی تداوی د نشتوالی عبارت وی. همداشان د طبی کادرونو کمبود هم د کار په اغیزمن توپ هم پوره نقش درلود.

- د اردو د صحیه پرسونل اکمال عبارت ؤ:

د ۲۸ فیصده هغو دوکتورانو، متخصصینو او فارمسستانو څخه چې عالی تحصیلات یې درلودل، او ۵۶ فیصده طبی متویط پرسونل د تشکیل له مخی اکمال و، خو ۶۰ فیصده د پورتنی پرسونل څخه په مرکز کې وظیفه اجرا کوله.

- د ټپیانو تخلیه په لومړی سرکې د امبولانسونو په واسطه وه او ټاکلی طبی پرسونل یې نه درلود، عادتاً په منځنی ډول هره ورځ ۲۰ تنو

زخمیانو روغتون ته مراجعه کوله او د جراحی یو ګروپ په عملیاتخانه کې د دوو تنو دوکتورانو په تشکیل سره په یو ه ساعت کې په منځنی توګه یو عملیات او د جراحی یو ګروپ د یوه داکتر سره د دوو ساعتو په جریان کې د جراحی دری تطیره سرته رسول. په پیچلو وختونو کې د یوی اونۍ په موده کې د ناریه جراحی تر ۳۰۰ زیات عملیات په مرکزی روغتون کې اجرا شوی دی.

په راتلونکو تدبیرونو کې د قطعاتو د جګړه ایز فعالیتونو د تجربو په اساس ۱۵ عملیاتخانی او ۱۵ د جراحی ګروپونه چې په هغو کې یو او یا دوو تنو دوکتورانو مساعی اجرا کوله.

په نظر کې نیول شوی چې د هغو په نتیجه کې د جراحی دوکتورانو کولای شول د ۱۰۰ ټپیانو د پاره په ۱۲ ساعتو کې د هغو مکمل حجم سره د جراحی مرستی سرته ورسوی.

د اردو د صحی تامیناتو د لا ښه والی په برخه کې له رهنمودونو، دستورونو او امرونو په غیر چې قطعاتو ته ورکول کیدل او په قصیرالمدتو کورسونو کې آمرینو او سرطبیبانو ته ویشل کیدل یو لړ نور شمیر اسناد، فورمونه او جدولونه چې یا نوی تهیه کیدل او یا قسماً اصلاح کیدل، په تشخیصی، لابراتواری، معالجوی، تولیدی، محاسبوی او د احصائیی په پروسه کې کار اخستل کیده او ۶۵ قلمونو څخه به یې زیات اقلام تشکیلول چې د طبی علومو اکادمی په روغتون، مرکزی پولی کلنیک، صحیی ریاست او په نورو معالجوی موسساتو کې له هغو څخه ګټه اخستل کیدله، دغه اسناد د ۱۳۵۶، ۱۳۵۷ او ۱۳۵۸ کلونو کې منځ ته راغلل.

لومړنی اثر چې ۱۳۵۷ کال کې چاپ شو یو ارزښتناک اثر د «رهنمای فعالیت های روغتون های قوای مسلح» په نوم و چې د دوکتورانو، امرینو، سرطبیبانو او د ګردو طبی پرسونل د پاره یو ډیره ښه رهنما شمیرل کیدله. دی کتاب اته فصلونه درلودل چې د روغتون ټولو اړخونو یی محتوا تشکیلوله.

- په همدې شان د نقری د تصفیی دستګاه، د اوکسیجن د تولید دستګاه، د مصنوعی ښنتورګو دستګاه، د طبی آلاتو د ترمیم ورکشاپ د بازار موندنی او خریداری د پاره اجرات ترسره شول چې وروسته یې یوه برخه اکمال او له نیکه مرغه د اردو صحیه د ریاست د فعالیت په اساس په ۱۳۶۹-۱۳۷۰ کلونو کې د مصنوعی ښنتورګی دستګاه، د اوکسیجن د تولید

دستګاه خريدارى چې لومړى يې د طبى علومو اكادمى په واک كې وركړ شو او دويمه دستګاه په پل چرخى كې نصب شوه.

بايد يادونه وشى چې د خپل منځى جګړو له كبله چې د ۱۳۷۱ كال څخه پيل شو پورتنى دستګاوى په فعاليت پيل نشو كړاى. دا ځكه چې د اوكسيجن د توليد دستګاه چور شوه او د مسلكى كادرونو مهاجرت نورو هېوادونو ته مصنوعى ښتورګى دستګاه هم فعاله نه شوه.

- د صحيه خدماتو آمريت په ۱۳۵۸ كال كې د يوه مركزى لابراتوار د تاسيسولو او د لوژستيک د عمومى رياست په چوكاټ كې د يو مركزى وركشاپ د ايجاديدلو په باره كې پيشنهادونه وړاندى كړل چې د صحيه خدمات هم په هغو كې ځانګى ولرى. خو دا پيشنهادونه ونه منل شو او بيا وروسته د لوژستيک رياست ځان ته يو وركشاپ ايجاد كړ چې د اقتصاد او مسلكى كدرونو د مصروفيت له پلوه يې دومره معقوليت نه درلود او هغه لابراتوار چې د اردو په اعمالات خانه كې موجود و متأسفانه له منځه لاړ.

- د صحيه خدماتو آمريت د اردو د صحى خدماتو د وړاندى كولو د چټكتيا او ښه والى په خاطر مجبور شو ترڅو دوه پيشنهادونه د وخت د وزيرانو شورا ته د ۱۳۵۸ كال په دويم نيمايى كې وړاندى كړى.

۱- د دفاع وزارت يوه رياست په توګه د لوژستيک عمومى رياست له چوكات څخه د صحيه خدماتو د آمريت مستقل كيدل.

۲- لكه څنګه چې د صحيه خدماتو آمريت په مستقيم ډول طبى آلات، دستګاوى، سامان، وسايط او وسايل له خارجى كمپنيو څخه اكمالوى بايد چې په همدى توګه درمل، رياكتيفونه او نور مستقيماً خريدارى او اكمال كړى.

پورتنى پيشنهادات تر بررسى لاندې وو چې د ۱۳۵۸ كال د مرغومى شپږمه نيټه را ورسيدله او د هغو د تطبيقيدلو مجال يې ورنكړ.

۳- هغه طبى كادرونه چې په مختلفو نومونو په بندى خانو كې شپى او ورځى تيرولى ژر تر ژره دى د بندى خانو څخه خلاص او خپلو دندو ته وګمارل شى، چې دا هم د مرغومى تر شپږمى نيټى وځنډوله.

«دغه جدول كله چې د مرغومى په شپږمه نېټه د مازدګر په وخت د مسلحو قواو لوى درستيز محمد يعقوب د سوژوى افسرانو له خوا په شهادت رسيږى د نوموړى په دوسيه كې موجود ؤ – مومنى».

په دې توګه د حرب د طبابت او د طبابت د ودې او پراختيا په پروسه کې څېړنې، تتبعات او علمي تحقيقات پيل شول او کال په کال نوي نوي نوښتونه او علمي ارزښتناکې احصائيې ترلاس لاندې ونيول شوې. دا تدبيرونه هغومره د حرب د طبابت په پراختيا او تکامل کې ارزښتمن تلقي کېږي چې د علمي او نظامي کار او فعاليتونو په اثر بالخاصه څوک چې په مرکز کې وظيفه اجرا کوي د صحي خدماتو د اورګانزيشن او مختلفو حربي پتالوژيو په برخه کې خاصه ملکه او ممارثه حاصل کړه، او په وروستنی تحليل سره د تشخيص او تداوي او د وقايوي تدبيرونو د نيولو له نظره هر اړخيزه فعاليتونه او پراخه پوهه منځ ته راغله.

د اردو مرکزي روغتون کې د صحي اسنادو ارشيف د عسکري طبي پرسونل د پاره د پژوهش، تتبع او څېړنې ډېر لوی مرکز وګرزيد.

په يوځې ساحه کې علمي – پراکتيکي کنفرانسونه په ملي او بين المللي سويه د حرب د طبابت، د حربي طبي اکمالاتو او حربي پتالوژۍ د تحليل، ارزيابي، مناقشې او نتيجه ګيرۍ په لور د طبيبانو او فارمسستانو د تجمع ډير لوی مرکز وګرزيد.

د کنفرانسونو مواد د کالنيو، ژورنالونو او مجلو په شکل په پښتو، دری، روسي او انګليسي ژبو په ډېر زيات تيراژ او زيات شمير طبع او د طبيبانو په واک کې ورکړ شو.

د نرسنګ، معاون دوکتوری، لابراتوار، د وينې بانک، فزيوتراپۍ او داسې نورو کورسونو جوړيدل او د ښځينه او نارينه صحيه پرسونل د افسرۍ قصيرالمدت کورسونو تاسيسيدل او په دی کورسونو کې مسلکي او د حرب د طبابت د مختلفو د سپلينونو د مضمونونو تدريس، د حرب د طبابت د ودی او تکامل يوه بله نمونه ګڼل کېږی.

د اردو د مرکزي پولي کلنيک پرانستل (د ۱۳۵۸ کال د غبرګولي ۱۵) او په دې موسسه کې د متخصصينو او داکترانو فعاليتونه ارزښتناک ارقام او احصائيې، د حرب د طبابت د تتبع او علمي تحقيق په لوری مهيا کړ.

په پوره وياړ بايد وويل شي چې د پورتنيو مسايلو ادامه  او داسې په لس ګونو نوری نمونې د ۱۳۵۷ کال د پلانونو د تدابيرو ښودونکې دی.

- د تشکيلاتو په هکله بايد وويل شي چې د صحيه خدماتو آمريت د فرقې، غونډ، او هغو غونډونو چې د فرقې د سوق الجيش مسافه يې ليری

وه، د کندک او د یوی تحصیلی موسسی تشکیل په تیپک شکل جوړ شو چې وروسته کلونو کې ځنی یې د تطبیق وړ وګرځیدل.

- د کارګرانو، مستخدمینو او د سربازانو د کورنیو د غړو د تداوی په باره کې چې دمخه نه اجرا کیدله وپتیله شوه چې د هغوی تداوی د دفاع وزارت د موسساتو او صحی مرکزونو له خوا په وړیا توګه ترسره شی.

- په هغو سیمو کې چې د اردو قطعات پراته وو او د عامی روغتیا وزارت د مرستو امکانات هلته محدود وو، ملکی خلک د اردو د صحی پرسونل له خوا معاینی او تداوی لاندې نیول کیدل. همداشان د کونړ په ولایت کې چې د اسعد آباد د ښار روغتون مجهز و، د عامی روغیتا وزارت مرستی د جراحی او اورتوپیدی له بابته تقویه شوی وو، دی روغتون د اردو سره زیاتی مرستی وکړی.

همدا پروسه د هرات او خوست د ښارونو په ملکی روغتونونو کې هم روانه وه. په دی روغتونونو کې نظامی طبی کادرونه فعالیت کاوه. د بدخشان، ارګون، ځاځی، څمکنی او بریکوت کې پوځیانو د ملکی خلکو سره مرستی کولی.

- د تیرو کلونو د حساباتو تصفیه کول ډیر لوی کارو او د راتلونکی محاسبوی مشکلاتو دلیری کولو په خاطر تصمیم ونیول شو چې هره ورځ باید د صحیی اسنادی تفتیشونه اجرا شی، څو راتلونکی ته حسابی ستونزی پاتی نه شی چې دا پروسه تر اوسه پوری ادامه لری.

- د طبی عینیاتو د اکمال په لا ښه والی سره څرګنده ده چې د صحی خدماتو عرضه (وړاندی کول) هم ډیر ښه شکل ځانته ونیو او ضمناً وپتیله شوه چې د مزمنو ناروغانو د پاره پنځه ورځنی دوا نه بلکی د یوی میاشتی د پاره درمل ورته ورکړ شی، ترڅو چې د ناروغانو د زیاتی سرګردانۍ سبب نه شی.

د دولتی او ګوندی لوړ رتبه اشخاصو او د هغوی د کورنۍ د غړو، که پوځیان دی او یا ملکیان تداوی یې د صحیی ریاست په غاړه شوه چې تر اوسه پوری دا پروسه دوام لری.

د هېواد د داخلی موسساتو (د بهرنیو چارو وزارت، د پیښنو ضد ریاست، د سری میاشتی عالی ټولنه) مرستی په پراخه توګه را جلب شوی. همدارنګه د بهرنیو هېوادونو په جمله کې شوروی اتحاد د نمایشګاه ۱۳۵۸ کال چې کابل کې په لاره شوی وه، د آلاتو او دستګاو برسیره یو مقدار زیاد

سامان او مالزمه د صحیه خدماتو په واک کې ورکړ شو. همدارنګه د یو سلو پنځوس زرو روبلو معادل درمل او ریاکتیفونه هم پرته له عوضه مساعدت وکړ.

د سیاسی نمایندګانو سره پروتوکولونه لکه دموکراتیک المان، هنګری، چکوسلواکیا او شوروی هېوادونو سره د ناروغانو او ټپیانو د تداوۍ او پروتیز په برخه کې لاسلیک شول، چې له دې هېوادونو څخه ځینو زمونږ د هېواد ناروغان او زخمیان ومنل او د هندوستان له خوانه د ناروغانو د بهتری تداوی امکانات ومنل شو. په دې برخه کې د دا ډول ناروغانو شمیر له ۱۴ تنو څخه ۵۰ تنو ته په کال کې ور زیات شو.

د تخلیوی قدموی تداوی په برخه کې چې د قطعاتو او جزوتامونو زیاترو طبی پرسونلو د هغی سره بلدتیا نه درلودله پاملرنه وشوه او د دې په ترڅ کې د تقوی ګروپونه د پانسمان د موټر سره همیشه له مرکز څخه خدمتی کیده.

د نری رنځ هغه ناروغان چې د عسکری څخه معاف کیدل د رسمی مکتوبونو سره د نری رنځ سره د مبارزی ریاست ته په مرکز او ولایتونو کې د صحیی آمریت ته او حتی ولسوالیو ته معرفی کیدل ترڅو چې د دوی تداوی په برخه کې ځنډرانه شی. او له بلې خوا نه د اهالیو په منځ کې د نری رنځ د خپریدلو څخه زیات مخنیوی وشی.

- د هغو اشتباهاتو له جملی څخه چې دمخه ورته اشاره وشوه باید وویل شی چې د هماغو خلاګانو له مخی یو شمیر طبی پرسونل د ایدیالوژیکی تضادونو، شخصی تناقضاتو او حتی د درونی دښمن په لمسون بندی خانو کې واچول شول چې د مرغومی د شیړمی نیتی دمخه دوکتور نبی حسن، دوکتور زهیر، دوکتور علی احمد صدری، دوکتور زرغون او دوکتور رحمت الله کونړی له بده مرغه خپلو کورونو ته راستانه نه شول او دوکتور محمد غنی اندړ ځان وواژه. سره د دې هم طبی نظامی پرسونل سره د هېواد څخه بهر ته د فرار روحیه ډیره ضعیفه وه یواځی دوکتور محمد اسمعیل وردګ د وطن پریښودنی ته مجبور شو او دوکتور شاه محمود چوپان چې د خپلی رخصتۍ ورځی یې تیرولی د مرغومی د شیړمی په رارسیدلو وظیفی ته را نه غی او وطن یې پریښود.

اړین بریښی چې د مرغومی شپږمی یعنی پر افغانستان باندې د شوروی ځواکونو د هجوم له پیل څخه د ځانګړی پاراګراف په شکل صحی مسایل د ارزیابی لاندې ونیول شی.

لکه چې د غویي د اومی دمخه د احترام په سترګه واقعیتونو ته انعکاس ورکړی شوی دی دلته به هم زمونږ ادعا بې ځایه وی که چیری ووایو چې د شوروی اتحاد د عسکرو د یرغل نه وروسته د نظامی طبابت، او د طبابت د علم د پراختیا او د علمی – تحقیقاتی چارو په برخه کې چوتپیا رامنځ ته شوه، بلکې مثبت کارونه په دې باب ترسره شوی دی. خو د دی سره جوخت نه شی کیدلای چې د دی نوری او تیاری دوری د خالیګاو او ناخوالیو څخه سترګی پټی شی.

خو مخکې تر هغه باید وویل شی چې په دې ورځو کې (د ۱۳۷۰ کال دریم ربع) د هېواد په دولتی او آزادو مطبوعاتو او همدارنګه په ناسته او ولاړه کې ځنی اشخاص د شوروی د ځواکونو د راننوتلو په باب دلته او هلته د ننه او بهر له سلولونو او آزادی هوا څخه پراخی ویناوی او اوریدنی وشوی، خو زمونږ د تعجب ځای دا دی هغه څوک چې د مرغومی شپږمه د وطن پالونکو په مقابل کې د انتی سویتیست، ضد شوروی، خاین نور او نور په حیث د تیره تیغ په توګه کار اخستل او د دی وطن په زرګونو زامن په یوه تومت سره دی تیغ ته راښکل کیدل او له منځه تللی دی. زندانونو ته بوتلل شول او ډیر یې وطن پریښودنی ته مجبور شول. خو همدی اشخاصو چې شوروی ځواکونه یې خپل ډیر عالی او ډیر لوړ ویاړ باله او هغه یې په پراخه پیمانه تبلیغاوه، اوس افغانستان ته د شوروی ځواکونو راننوتل په ژبه زمزمه کوی، نشخوار کوی او غندی یې. زمونږ په اند دا چټیاټ بل ځای نیولی نه شی او دا محض دروغ خبری به نوری د افغانستان د خلکو په زړونو کې ځای و نه لری پرته له دی چې مختوری او شرمساری یې په برخه شی.

دا هغه اشخاص او افراد دی چې ځنی یې د مجاهدینو په دوره کې لوړو مقامونو ته ورسیدل او په وطن کې د جنګ ګرمولو کې یې نقش لوباوه او ځنی یې د ۱۳۸۱ کال را وروسته د لویدیزی هېوادونو څخه سرونه راپورته کړل او بیا هېواد ته را وستل شول او دولتی لوړ مقامونه یې ورته ورکړل چې له یوی خوا یو ځلی بیا د دی خاوری بچیان په وینو ولړی، له بلې خوا د ګوداګی په ډول د هغه هېواد سیاسی او اقتصادی ګټو لټون وکړی او ویې ساتی، فساد ته لمن ووهی او د دی لیاری څخه یو ځل بیا د دغه هېواد شته لوټ او تالان کړی.

د شوروی ځواکونو را ننوتل نه یوازی د شوروی خلکو د پاره ننګین او مذموم و، بلکې د هغه وخت د لوحه سرایانو د پاره او د دې وخت د یاوه

سرايانو د لعنت طوق، هغه چې د افغانستان په ټولنى کې يو محدود او مردو د قشروو او وى به، د دې وضعى ځخه به څه نتيجه واخستلاى شو:

زمونږ په عقيده هغه وخت چې يې شخصى او ډله ايزى ګټى په توافق کې دى ټول شيان سم وو او «شوروى د افغانستان د خلکو د ننګ او ناموس ساتونکى و» او بيا څه وخت چې شخصى او ګروهى ګټى يې په ټکر کې شوى نو بيا شوروى د افغانستان د خلکو مقابل کې خائنانه عمل ترسره کړى دى، دلته دا پوښتنه رامنځ ته کيږى چې دوه مليون شهيدان، يو مليون معيوب او معلول او پنځه مليونه اوارګان او د هېواد د اقتصاد او فرهنګ خرابى د دى لرغونى وطن د يو موټى رټل شوو کسانو د شخصى ګټو صدقه نه ده؟ ځواب روښانه او څرګند دى او نه شى کيداى چې بل ډول توجيه شى، د نمونى په ډول د افغانستان د جمهور رئيس داکتر نجيب الله دا جملى د ملى مصالحى د مشى دا علامولو د پنځمه تلين د نمانځنى په مناسبت يعنى د مرغومى پنځه ويشتمه را په زړه کوو.

«ورود نيروهاى شوروى به افغانستان طى سالهاى ۱۹۸۰ و حضور آنان تا سال ۱۹۸۹ باعث قيام ملى و تشديد جنګ و خونرزيزى ګرديد که در نتيجه صدها هزار هموطن شهيد و معيوب و مليون ها افغان در کشور هاى بيګانه پناهنده شد و خسارات غير قابل تصور اقتصادى به کشور ما وارد آمده است».

د شوروى د ځواکونو په رانتوتلو، په افغانستان کې، د افغانستان د جمهورى اردو صحيه خدمات د نورو پوځى او ملکى اورګانونو غوندى هم د بدلونونو سره مخامخ شو چې له ځينو څخه يادونه کوو:

۱- ګرده لاربښونکى اسناد او پلانونه (بالخاصه د اردو د صحيه خدماتو پنځه کلن پلان) د صحيه خدماتو له څانګو څخه راټول او له منځه يووړل شول او په لاس ته راوړنو باندې خاورى وشيندلى.

۲- لکه چې کادرى سياست په لومړى سرکې اشتباهات درلودل، له بده مرغه په دې دوره کې «د افغانستان د خلکو نجات» هم د ژورو اشتباه ګانو څخه خالى نه و.

شوروى سلاکاران په پوځى شئوناتو باندې هغو مره مسلط وو چې حتى د اردو د صحيه پرسونل د تبديلى، ارتقا، په ډيره ټيټه رتبه د تقرر او ترفيع به فورمه کې يعنى د صحيه بريدګى (بريدمل) څخه تر ډګروال او

جنرال پوری په فورم کې د مشاورينو امضا بايد موجود وای. له دی نه په غير د پورتنی قدمی څخه يې فورم دوباره مستر ديدله.

تعينيات هم د شورويانو په لاس وو، د صحيه خدماتو آمر او نورو آمرينو د تغير او تبديل صلاحيت نه درلود. د همدې اشتباهاتو له مخی وو چې متأسفانه په دی مرحله کې هم محبسونه له بنديانو څخه ډک وو. په سل ها و طبی او فارمسی کادرونه بهرنيو هېوادونو ته وتښتيدل.

په افغانستان کې د جګړی د سختوالی له کبله د دوکتورانو، دواسازانو او د طبی منځنی پرسونل په لس ګونو تنه په جګړه کې ووژل شول، اسيران او معيوب شول.

٣- د طبی کادرونو د اکمال د سطحی د پورته بيولو په خاطر (حال دا چې پرسونل هميشه مخ په کميدو و) د صحيه خدماتو په تشکيل کې بدلون رامنځ ته شو او حتی هر کال تشکيل نوی کيده.

دا عمل يوازی د کاغذ پرمخ ترسره کيده او داسی ښودل کيده چې ګواکی د طبی پرسونل اکمال په بشپړ ډول تطبيق شوی دی. په دې ځای کې له يوی خوا د مشاورينو درجه لوړيدله او د بلې خوانه د طبی پرسونل د اکمال درجه په هغه کې مغشوش او مجهول کيده.

۴- د اردو لومړی نمبر روغتون (قوای مرکز) چې د اردو د پاره يې تاريخی وياړونه درلودل او د بلې خوانه د هغوی بنسټ ايښودونکی ترکان وو، د شوروی ځواکونو په واک کې ورکړ شوه ترڅو چې د تاريخ په دې پاڼه هم خاوری وغورځول شی.

له پامه بايد پټ نه شی چې د طبی کادرونو د روزنی په پلان ګذاری کې د راپور ورکولو په سيستم او د صحيه خدماتو په احصائيه، د طبی علومو په اکادمی او د اردو په نورو روغتونونو کې د تشخيصی، معالجوی او تداوی د کيفيت په لوړتيا کې کيفی بدلونونه منځ ته راغلل. د طبی پرسونل احصائيه بشپړه او د صحيه خدماتو آمرينو او سرطبيبانو په شوروی اتحاد کې د مسلک د تقويې د شپږ مياشتنيو کورسونو څخه استفاده وکړه او ځينی لوړو تحصيلاتو ته وليږل شول او د حرب طبابت په خپلو لوړو مدارجو کې واقع شو.

☜ د ستر درستيز په چوکاټ کې د صحيی مرکزی کميسيون ايجاد شو، د اردو د بدنيه قابليت په تعليماتنامه (١٣٦٢) کې د جګړی د

شرایطو له مخې او د سلاح د تغیراتو نیولو سره تغیرات راغلل او همداشان په اردو مرکزی روغتون کې په لس ها و علمی آثار تالیف او ترجمه او چاپ شول.

☜ په ۱۳۶۱ کال کې د اردو لومړنی نمبر روغتون تشکیل په ختیځ زون یعنی د جلال آباد ښار ته انتقال او هلته د اردو د لومړی نمبر روغتون په نوم د سردار محمد داود خان په بڼ کې د جراحی، داخلی او پراکلنیک څانګو سره تاسیس شو.

همداشان د دې کال له لومړیو څخه د کابل د طب په دولتی انستیتوت کې د حربی طبابت د آمادګی کافدرا په کار پیل وکړ او د دی کافدرا څخه تاسیس هدف د صحیه خدماتو د احتیاط د افسرانو تربیه وه. په دې کافدرا کې د صحیه خدماتو د تکتیک او اورګانزیشن، رادیولوژی، حربی توکسیکولوژی، د حرب جراحی، داخله حرب او د حرب اپیدیمولوژی مضمونونه تدریس کیدل.

د اردو د صحیه خدماتو په برخه کې له سترو لاس ته راوړنو څخه یو هم په ۱۳۶۴ کال کې د نظامی طب د پوهنځی تاسیسیدل دی. چې د وزیرانو شورا د ۳۶ لمبر مصوبی ۱۳۶۴/۲/۲۳ پر اساس د دفاع وزارت په چوکاټ تاسیس شو. چې هر کال وزارت دفاع ته ۴۰ تر ۷۰ محصل، وزارت داخلی ته ۲۰-۳۰ تنه او د اطلاعاتو عمومی ریاست ته ۱۰ تر ۲۰ تنه محصلین پوهنځی ته جذب شی. تدریسی بیز یې د مرکزی روغتون په غاړه و او د پنځم او شپږم ټولګی محصلین دغه روغتون ته د تحصیل لپاره استول کیدل. دغه پوهنځی د کابل طبی انستیتوت په چوکاټ کې په فعالیت پیل وکړ. د پوهنځی د فعالیدلو لپاره د کابل دولتی طبی انستیتوت او د ننګرهار د طب پوهنځی څخه محصلین جذب شول چې په دغه برخه کې اکادمیسن دوکتور محمد موسی وردګ او ډګرمن محمد محسن اقبال د کابل طبی دولتی انستیتوت څخه او عبدالحی مومنی د ننګرهار د طب پوهنځی څخه محصلین جذب کړل.

همدارنګه د اردو روغتیایی چارو ریاست د ځوانو کدرونو د روزنی او جذب کې زیات کار کړی دی چې د شپږو کالو په درشل کې ۳۰ د افسری صحی کورسونه او ۲۴ د پرکمشری صحی کورسونه تدویر کړی چې ۹۶۴ تنه فارغ او تقسیمات شوی دی. همدارنګه د لوړو زده کړو وزارت او د عامی روغتیا وزارت څخه د طب داکتران، د غاښو داکتران، فارمسستان،

انجینران او طبی متوسط پرسونل جذب شوی چې تعداد یې ۹۸۴ تنو ته رسیږی.

همدارنګه په شوروی اتحاد، چکوسلواکیا، پولند، هنګری او بلغاریا کې هم محصلین او داکتران استول شوی چې وروسته له تحصیل څخه وطن ته راستون شوی دی.

لکه چې یادونه شوی ده د وزیرانو د شورا د ۳۴۵-۱۷/۱۰/۶۹ مصوبې پر اساس د اردو مرکزی روغتون د مسلحو قواو د طبی علومو اکاډمی ته ارتقا وکړه. او د اکمال تخصص پروګرام هم د جراحی او داخلی په کافدرا وو کې تشکیل شو چې ځوان ډاکتران د تخصص د بشپړولو لپاره جذب شی.

همدارنګه د هغو قراردادونو چې خارجی هېوادونو په نتیجه کې روغتونونه او د فرقو صحی مرکزونه په عصری وسایلو په ځانګړی توګه د اکسری ماشینونه، د غاښو ماشینونه، امبولانسونه، د تعقیم او مقطرو اوبو دستګاوی باندې تجهیز شول او د درملو او کیمیاوی موادو کمبود نه احساس کیده.

همدارنګه د درملو د تولید په لابراتوار کې تابلیتونه تولیدیږی چې په سلو کې ۵۱ ضرورت اکمال کړی، د مختلفو سیرومونو تولید د روغتونونو احتیاج یې ترسره کاوه، د حرب پاکت او ځنی طبی سامان هم تولید کیږی. د صحی مرکزونو او روغتونونو د فعالیت او اجراتو په هکله تل کنترول، تفتیش او نظارت لاندې نیول شوی دی.

هغه څه چې د اهمیت وړ وو د ساری ناروغیو ثبت او احصائیه وه چې د هغه له رویه کلنی پلانونه تنظیم کیدل چې څرنګه د هغو څخه مخنیوی وشی او په څه ډول درملنه یې وشی.

همدارنګه د روغتونونو او صحی مرکزونو تشکیل باندې له سره غور وشو چې د هغه په نتیجه کې مثبت بریاوی لاس ته راغلی دی. دغه ټول لاس راوړنی د دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل د وخت صحی رئیس په زیار سره منځ ته راغلی دی.

دا پوهنځی دوه ټولګی (پنځم او شپږم) لری او د پنځو کافدراو او یا دیپارتمنتونو (څانګو) درلودونکی و. لکه داخله حرب، جراحی حرب، حربی تراوماتولوژی او اورتوپیدی، حربی اپیدیمولوژی، د تکتیک او صحیه خدماتو د اورګانزیشن څانګو درلودونکی و. دې پوهنځی په ډیرو لنډه موده

کې ډېر مهم کارونه لکه د درسی بیزونو تکمیل د درسی او علمی کتابونو تدوین، په داخلی او خارجی علمی – میتودیکی کنفرانسونو کې ګډون، او داسې نور سرته رسولی دی.

له ۱۳۶۴ کال را وروسته چې ورو ورو د افغانستان سیاسی فضا له جګړی څخه د سولی خواته روښانه شوه د صحیه خدماتو په ساحه کې ښکاره تغیرات رامنځ ته شول.

په ۱۳۶۴ کال کې د کابل د دولتی انستیتوت په چوکاټ کې د نظامی طب پوهنځی د پنځو څانګو په تشکیل سره په مرکزی روغتون کې تاسیس شو چې استادان یې تر ۱۳۶۸ کال پوری د طبی دولتی انستیتوت څخه حق الزحمه ترلاسه کاوه او په کال ۱۳۶۸ کې د افغانستان دموکراتیک جمهوریت د وسله وال پوځ د پوهنتونونو، اکادمیو او پوهنځیو د علمی کدر د غړو د حقوقو او امتیازونو دقانون (۱۳۶۶/۹/۳) د اتمی مادی پر شرایطو برابر پنځه تنه د پوهنځی استادان علمی درجی ترلاسه کړل.

د صحیه خدماتو آمریت، د صحیه خدماتو ریاست ته ارتقا وکړه چې په رښتیا سره د اردو د صحیه خدماتو د فعالیت او کار کیفیت ته یې لوړتیا ورکړه.

په شیندند کې د ۴ نمبر اختصاصی روغتون، په کابل کې د ۵ نمبر (په ۱۳۷۰ کې دا روغتون چې د هوایی طبابت پوری مربوط ؤ په دوو څانګو – کوچنیانو او نسایی او ولادی باندې تبدیل او د طبی علومو اکادمی پوری وتړل شو) تاسیس شو.

د شمال د زون د ۶ نمبر اختصاصی روغتون هم تاسیس شو. همدارنګه د معالجی او تداوی له بابته د فرقو د صحی مرکزونو تقویه کول، د کندهار د ۳ نمبر او د کابل د دوهم نمبر د اختصاصی روغتونونو تقویه کول د حرب د طبابت په تعمیم او پراختیا کې ستر نقش لوبولی دی.

په دې کلونو کې پلان ګذاری لا دقیقه شوی، طبی اکمالات بیا احیا شوی او اختصاصی روغتونونه د مدرنو او عصری الاتو او دستګاوو په واسطه تجهیز شول.

په منظمه توګه د تقویی ګروپونه محاربوی فعالیتونو ته لیږل کیدل چې د کار او فعالیت نتیجه یی متخصصینو او داکترانو ته کنفرانس تدویر کیدل چې د بحث او شور څخه وروسته ارزښتناکی نتیجی لاس ته راتللی او

همدارنګه دقيق راپورونه يې د صحيه خدماتو وروستيو اقداماتو لپاره د صحيه خدماتو رياست ته سپارل کيدل.

د صحيه خدماتو د آمريت په لابراتوارونو کې د درملو اعمال ځانته غوره بڼه ونيوله. د اوکسيجن د توليد دستګاه توريد، د اردو د صحيه خدماتو له سترو اقداماتو څخه ګڼل کيږی.

د مسلکی کادرونو د لا ښی روزنی په خاطر د وزيرانو شورا د ٣۴۵ لمبر مصوبی پر اساس په ١٣۶٩ کال کې د اردو د صحيه خدماتو رياست د پيشنهاد له مخی د دوو کافدراو په داخل کې (داخله او جراحی) د تخصص د اکمال پروګرام د اردو په مرکزی روغتون کې تشکيل او د همدې پيشنهاد له مخی وو چې د اردو مرکزی روغتون د وسله وال پوځ د طبی علومو اکادمی ته ورپوته شو.

په دې کال کې د صحيه خدماتو په رياست کې د طبی آلاتو د ترميم آمريت تشکيلدل په رښتيا سره لوی ګام ګڼل کيږی، ځکه چې مرکزی ديپوګانی د طبی آلاتو د ترميم له ورکشاپه، او د درملو د کيفی او مقداری تحليل له لابراتواره پرته کوم مفهوم نه درلود.

د هرات په ښار کې د يو سل بستريز په کال ١٣٧٠ کې روغتون تاسيس او د لوژستيک د عمومی رياست څخه د صحيه خدماتو د رياست استقلاليت په برخه کې اقدام په ١٣٧٠ کال کې يو لوی قدم دی.

د طبی علومو اکادمی د وظايفو لايحه چې د ډير معتبرو منابعو او زمونږ د شرايطو په نظر کې نيولو سره تدوين شو د اردو د صحيه د سترو کارونو په جمله کې راځی.

همداشان بايد وويل شی چې په وروستيو کلونو (١٣٧٠ کال ترمخه) کې د اردو د صحيه خدماتو طبی علومو اکادمی په ساحه کې يوشمير علمی او تحقيقاتی مقالی چاپ شوی دی چې د ځوان نسل د روزلو په برخه کې لازمی مرستی کړی دی.

د صحيه خدماتو د فعاليت اساس او محتوا د وسله وال پوځ د منسوبينو د روغتيا ساتنه، تحکيم او اعاده کول تشکيلوی چې ډير مهم او ارزښتناک اصل دی. د دې اصل په تطبيق سره د قوتونو محاربوی پياوړتيا او محاربوی چمتووالی په لوړه سطحه ميلاوه وی. همداشان د صحيه خدماتو د اردو د دندو په موفقانه اجرا کې د دولتی مقاماتو، د قطعاتو او جزوتامونو قوماندانان او وسله وال پوځ منسوبين نقش ډير ارزښتناک او ځرګند دی.

دلته په لنډ ډول د وسله وال پوځ د صحیه خدماتو دندی په اوسنیو شرایطو کې په لاندې ډول بررسی کیږی.

۱- د ټپیانو او ناروغانو سره د روغتیایی مرستو د اجرا د بشپړ اغیزمنو تدبیرونو د پرمخ بیولو اورگانیزاسیون، د هغوی د ژوندانه د اعظمی حد د ساتنی، د محاربوی قدرت او د هغوی د کار او فعالیت د چټک احیا کولو په منظور.

۲- د منسوبینو په منځ کې د ناروغیو د خپریدلو د مخنیوی په منظور د وقایوی تدبیرونو نیول.

۳- د منسوبینو د روغتیا د ساتنی او تحکیم په منظور د قطعاتو د ژوندانه د معشیت د طرز، د هستوگنی د محل او محاربوی فعالیت سیستماتیک د هر اړخیز کنترول پرمخ بیول.

۴- د حربی مصیبتونو د لا څرگندیدو او سیر مطالعه او تدقیق، د جگړه ایز فعالیتونو په بیلا بیلو شرایطو د قطعاتو د صحی تامیناتو د ترلاسه شوو تجربو بررسی او نتیجه اخستنه. د معالجوی، وقایوی او نور تشکیلاتی مسایلو د تدبیرونو د نیولو او ایجادولو په منظور.

د پورتنیو چارو د پرمخ بیولو د پاره د خدماتو تشکیلاتو او تجهیزاتو ته د ضرورت احساس کیږی چې د صحیه خدماتو تشکیل په زیاترو مواردو د هغو د هدفونو او دندو او همدارنگه د وسله وال پوځ د تشکیلا او جوړښت مطابق عیاریږی.

د وسله وال پوځ د صحیه خدماتو په چوکاټ کې صحیه جزوتامونه، صحیه قطعات او معالجوی موسسات شامل دی، چې د هغو د طبی عینیاتو د تشکیل او تجهیزاتو تعداد د یو لړ مشخصو شرایطو له مخی ټاکل کیږی. د دې شرایطو له جملی څخه د جگړه ایزو عملیاتو د پرمخ بیولو طریقی، د صحی تلفاتو اوصاف، د صحی تلفاتو د سطح د ټیټولو امکانات، د حرب د طبابت د پراختیا سطح، او په هېواد کې د بیرغ لاندې د خدمتونو امکانات او خصوصیتونه دی.

- د صحی مرستو د ځانگړتیاوو او حجم له نظره د صحی خدماتو تشکیلات په لاندې ډول تنظیم شوی دی:

۱- د صحی خدماتو جزوتامونه د صحی خدماتو هغه تشکيل ته اطلاق کېږی چې د قطعاتو په تشکيل کې وړته ځای ورکړ شوی دی چې د کندکونو، غونډونو او لواګانو د روغتيايی مرکزونو څخه عبارت دی.

د صحی خدماتو جزوتامونه په خپل تشکيل کې دوکتوران، نرسان، د صحيه واړه ضابطان، د صحيی سربازان او يو شمير غير مسلکی پرسونل لکه لوژستيکی او اداری پرسونل لری.

په همدې شان صحی جزوتامونه (بلوک، تولی) د ټاکلو او ضرورت وړ طبی عينيات درلودونکی هم دی. چې د هغو په سرکې د هغو مسول آمر وظيفه اجرا کوی چې د طبی منځنی پرسونل او يا د طب د داکتر څخه عبارت دی.

۲- د صحی خدماتو قطعات د يوه ځانګړی او مستقل د صحيه خدماتو د تشکيل څخه عبارت دی چې د فرقی په چوکات کې ورته ځای ورکړ شوی او د فرقی د صحيه کندک په نوم يادېږی.

د فرقی صحيه کندک د صحيه کندک قوماندان اداره کوی چې په تشکيل کې يې د طب دوکتوران، دواسازان، طبی منځنی پرسونل، صحيه سربازان او غير مسلکی پرسونل وظيفه اجرا کوی.

د فرقی صحيه کندک د تشکيل په داخل کې طبی مواد، مالزمه، تخنيکی وسايط او وسايل لری.

۳- معالجوی مؤسسات چې د وسله وال پوځ د صحی خدماتو په تشکيل کې موجود دی د تشخيص او معالجوی چارو د دندو برسيره د لوړو زده کړو او د طبی منځنی پرسونل د روزنی د ارګانونو درلودونکی دی. چې دا موسسات د طبی علومو اکادمی، د ۱،۲،۳،۴ او نورو روغتونونو څخه عبارت دی.

۴- د اردو د صحيه د رياست قرارګاه – د صحيه خدماتو د سوق او اداری، د طبی عينياتو د اکمال او د طبی کادرونو د ښوونی او روزنی په خاطر د ارګانونو درلودونکی دی.

د معالجوی او تخليوی تاميناتو په نوی سيستم کې د تخليی سره د قدموی تداوی د سيستم اساسات او پرنسيبونه د ټپيانو او ناروغانو د معالجی او تخليی د دقيقو صحی مرستو او انقسام د توحيد د اصل سره په نظر کې نيول کېږی. نو صحی تخليوی قدمه له قواوو، د صحيه خدماتو د وسايلو او وسايطو څخه عبارت ده چې د ټپيانو او ناروغانو سره د صحی مرستو د

قبلولو، تصنیف او اجرا کولو په منظور د تخلیې د لارو په اوړدو کې تاسیس شوی ده. لکه د غونډ، لوا او فرقې صحی مرکزونه، ګرځنده صحرایي روغتون او د مرکز اختصاصی روغتونونه.

د مدرنو معالجوی او تخلیوی تامیناتو د سیستم یو بل خصوصیت د طبی مرستو له انقسام او معالجوی تدبیرونو څخه عبارت دی چې دا مرستې او تدبیرونه په صحی تخلیوی قدمو کې د هری قدمی د خصوصیت په پام کې نیولو سره ویشل کېږی، ټپیان او ناروغان باید له ټولو قدمو څخه تیر شی او په دې قدمو کې طبی تصنیف ترسره شی.

د قطعاتو د معالجوی او تخلیوی تامیناتو معاصر او کلاسیک سیستم د اساساتو په جمله کې د پتوجنیز د منشأ، د پتولوژیک د پروسو د کلنیک او تداوی او په جګړه ایزو شرایطو کې د صحی خدماتو د فعالیت د اورګانیزاسیون د واحدو پرنسیبونو له مخی دی. یعنی په کومو مرکزو کې، کوم ټپی او ناروغ سره څوک څه ډول مرسته ترسره کړی.

نو له دې امله په اوسنی وخت کې د محاربی له لومړی خط څخه د مملکت تر مرکزه پوری پنځه ډوله صحی مرستی د تطبیق او اجرا لاندې نیول کیدای شوی.

١- صحی لومړنی مرستی.

٢- تر دوکتوری دمخه (معاون دوکتوری) صحی کومکونه.

٣- دوکتوری صحی مرستی.

۴- عمومی تخصصی کومکونه.

۵- اختصاصی صحی کومکونه.

د دې مرستو څلور مخکینی ډوله مرستی د قطعاتو په عقبی سیمو کې تر اجرا او استفادی لاندې نیول کېدلی او پنځمی اختصاصی مرستی په صحرایي ګرځنده روغتونونو او د ګارنیزیونونو او مرکز په ثابتو روغتونونو کې اجرا کیدلی.

**په اردو کې د طبی اکمالاتو خصوصیتونه:**

که څه هم د نظامی طبی اکمالاتو وده د طبابت د ودی سره په یو وخت کې تر بحث لاندې نیول شوی ده، خو په فشرده ډول بنایی وویل شی

چې د شلمی پیړۍ نه دمخه په اردو کې طبیب او درمل جوړونکی نه سره جلا کیدل او د دې پیړۍ په لومړیو کې طبابت او فارمسی پراختیا ومونده‌له او تجربی هم وښودله چې ښایې طبابت په یو مناسب او مساعد ځای کې د څو تنو په همکاری صورت ومومی چې په دې ترتیب صحی مرکزونه او روغتونونه په پام کې نیول شوی او لومړنی نظامی روغتون د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې په باغ بالا کې تاسیس شوی چې وروسته د پل محمود خان د اردو نظامی روغتون او بیا وروسته د قوای مرکز روغتون تاسیس شو. د پل محمود خان په روغتون کې طبی متخصصین، هندی، برتانوی، او امریکایی داکټران او دواسازان استخدام شوی وو. د قوای مرکز په روغتون کې ترکی داکتران او درمل جوړونکی فعالیت درلود.

په دې وخت کې د صحیی او وترنری په مدیریت کې د کورنیو درمل جوړونکو په خوا کې ترکی متخصصینو او دواسازانو کار کاوه د دوی (په تیره بیا ش بای شکری بیګ د دواسازی معلم او متخصص) په مرسته د اردو د صحیی ریاست مرکزی دیپوګانی، د درملو د اعمال لابراتوار (امپول، تابلیت، پوماد، سلوشن او معقم محلولات او نور) او د الکولو د تقطیر دستګاه جوړه شوی ده. د دې سره جوخت د روغتونونو درملتونونه ښه رونق پیدا کړ کلنیکی درملونه او زرقی محلولات بالخاصه د نووکتئین محلولات په مختلفو فیصدیو د قوای مرکز په شفاخانه کې تهیه او اعمال کیدل.

د پوځی درمل جوړوله کورسونو څخه د فارغانو لومړۍ دوره د ۱۳۰۸ کال د وری په میاشت کې فارغه شوه چې تر ۱۳۵۱ کال پوری څو دوری د وقفو سره سره ادامه درلودله او له ۱۳۵۷ کال را وروسته دا کورسونه دوباره احیا شول، چې د عامی روغتیا وزارت د منځنیو زده کړو لرونکو دواسازانو په روزنه کې د یادونی وړ مرسته کړی ده.

د عامی تحصیلاتو لرونکو پوځی فارمسستانو د فارغ التحصیلانو لومړۍ دوره په ۱۳۴۱ کې د طب او فارمسی له پوهنځی د هغه وخت د کابل له پوهنتون څخه فارغ شول.

که څه هم په ۱۳۴۰ کال کې د فارمسی یو شمیر متخصصین له ترکیی څخه هم دیپلوم اخستلی او وطن ته راستانه شول خو هغوی په اردو کې د کم وخت دپاره د وظیفی د اجراکولو وروسته نور خپل خدمت ته دوام ورنه کړ شو. په اوسنیو شرایطو کې د فارمسی عالی تحصیلات درلودونکی

کادرونه د کابل پوهنتون د فارمسی په پوهنځی کې د ځلورو کلنو د پاره تحصیل کوی.

د درمل جوړونکو د مسلکی پوهی په لوړولو کې د ترکیې، شوروی اتحاد او د هندوستان جهوریت زیاتی مرستی کړی دی.

د دواسازی کادرونه اوس د اردو په ټولو برخو کې یعنی د اردو په صحیی ریاست، روغتونونو، د فرقی په صحی مرکزونو او د یو شمیر لواګانو او غونډونو په روغتیایی مرکزونو، په تعلیمی او تحصیلی موسسو، د دفاع وزارت په تفتیش او صحیه خدماتو په ریاست کې دندی اجرا کوی.

د طبی عینیاتو اکمال په مرکزی صورت او یوه برخه یې په غیر مرکزی ډول ترسره کیږی. د طبی عینیاتو د اکمال مراجع داخلی منابع (د فارمسی د چارو ریاست، د عامی روغتیا وزارت، د هېواد د درمل جوړولو فابریکی او لابراتوارونه) او بهرنی منابع دی.

د صحیه خدماتو ریاست په خپل تشکیل کې د اکمالاتو مدیریت لری چې د پلان ګذاری، د طبی عینیاتو د اکمال او توزیع دندی په غاړه لری.

د اردو د صحیی ریاست د مرکزی دیپوګانی چې د طبی عینیاتو اخستلو، تسلیمی، ساتنی، توزیع او محاسبی دندی اجرا کوی.

د درملو یو شمیر قلمونه، طبی سامان او مالزم (انفرادی پاکت، پانسمان میزونه، میزابه، د سیروم پایی، د درملو او د جراحی د سامان میزونه، طبی الماری او نور) هم اعمالوی.

په هوایی او هوایی مدافعی په قواو، سرحدی عمومی قواو، د طبی علومو اکادمی په روغتون او په یو شمیر بیزونو کې هم د طبی عینیاتو دیپوګانی موجود دی.

د روغتونونو په درملتونونو، د فرقی په صحی مرکزونو کې د درملو یو شمیر اقلام لکه زرقی او غیر زرقی محلولات، پومادونه، سلوشنونه، پودرونه او نور تهیه کیږی.

د طبی علومو په اکادمی او د اردو د مرکزی پولی کلنیک په درملتونونو کې د ځلویښتو قلمو په حدودو ترکیبی درمل اعمال او تهیه کیږی.

مرکزی دیپوګان د درملو د کنترول او انالیز لابراتوار درلودونکی نه دی. خو له نیکه مرغه په دې وروستیو کې (د ۱۳۶۴ نه وروسته)د طبی آلاتو د ترمیم ځانګه تشکیل شوې ده.

د طبی عینیاتو ترمیم چاری (ورځنی) ترمیم چاری په شعبو (دیپارتمنتونو) او منځنی ترمیم د طبی علومو اکادمی د ورکشاپ په واسطه ترسره کیږی.

د طبی عینیاتو د ساتنی، محاسبی او اقتصادی لګښتونو له صورت نه تفتیش او کنترول د صحیی ریاست د اکمالاتو او پلان د مدیریتونو او اسنادی پلټنی د موسساتو د داخلی تفتیشونو په واسطه، د صحیه ریاست، د دفاع وزارت د داخلی عینیاتو د تفتیش ریاست او د عظمی صدارت د مقام د تفتیش له خوا ترسره کیږی.

د فارمسی چارو او طبی اکمالاتو په هکله علمی او تحقیقاتی چاری د صحیه خدماتو د تکتیک او اورګانزیش د کافدرا (د طبی علومو اکادمی علمی مرستیالی)، د طبی علومو د اکادمی د درملتون د پرسونل او د اردو د صحیی ریاست د ارګانونو له خوا پرمخ بیول کیږی.

د اردو د صحیه خدماتو ریاست غوری او اساسی دندو په جمله کې یو هم د طبی عینیاتو (درملو، باکترلوژی موادو، ریاکتیفونو، رنګونو، د دیزانفکشن موادو، د پانسمان او خیاطه لوازمو، دوکتوری طبی شیانو، د جراحی سامان، طبی ماشین الات او وسایل، طبی موبل، حفظ الصحوی (سنیتاری) او د دیزانفکشن سامان او لوازم، طبی سنیتاری تخنیک چې په موټرونو او تریلرونو باروی، د درملتون اشیا او الات، لابراتواری شیان او الات، انفرادی تجهیزات لکه د ادوي انفرادی پاکت، د پانسمان انفرادی پاکت، د حرب پاکت، انفرادی کیمیاوی ضد پاکت، باکتریوسید تابلیتونه، ګروپی تجهیزات لکه د تانک او طیاری طبی تجهیزات، د صحیی چـــانتی، سیټونه، کامپلیتونه، اسناد، وثایق او طبی کارتونه، غیر مصرفی «لکه طبی سامان الات او دستګاوی»، طبی عینیاتو په موقع ترمیم او تخلیه چې له استهلاک نه لویدلی وی). د پورتنیو اقلامو د اکمال یعنی تولید، تورید، بازار میندنه، داخلی او بهرنی خریداری ګانی، محافظه او نګهبانی، توزیع، محاسبوی چارو، د اکمالاتو د پلان ګذاری پرمخ بیول او د طبی عینیاتو له معقوله مصرفونو او استعمال له کنترول او تفتیش څخه عبارت دی.

که چېرته پورتني ګروپ بندي ته وکتل شي هر يو ګروپ کې د عينياتو په لس ګونو او سل ګونو قلمونه احتوا کوي چې په حضر کې هغه ٥.٠٠٠ اقلامو ته او په سفر کې ٣.٠٠٠ قلمونو ته رسيدلای شي.

يو شمير نور طبي عينيات هم شته دي چې د محاربوي فعاليت د تامين کوونکو يا سفري تجهيزاتو په نوم يادېږي چې د دې ډول طبي عينياتو اقلام د ٣٠٠-٣٥٠ په اندازه د وسله وال پوځ د تشکيلاتي جوړښت، ودې او تکامل او د هېواد د توليداتو له مخې متغيير دي او په عمومي ډول پورتني مواد پخپله د مملکت د توليدي موسساتو يا فابريکو او يا د دوستو هېوادونو څخه چې د هغو په ترانسپورتيشن او يا وارديدلو کې ستونزې رامنځ ته نه شي، اکمالېږي. طبي عينيات د ټاکلو نورمونو له مخې د قطعاتو او جزوتامونو د تشکيل او روغتيايي موسساتو د بسترو له مخې اکمال او توزيع کېږي.

د حضر په وخت کې د طبي عينياتو نورم د يوه کلن لګښت په اساس د يو کال د پاره ټاکل کېږي خو حقيقي شکل يې په داسې توګه لاس ته راځي چې د سولې د شرايطو لږ تر لږه درې کلن يا پنځه کلن لګښتونه په پام کې نيول کېږي.

د نورم په ټاکلو کې يو لړ عوامل لکه د يوې قطعې د نارغانو عمومي شمير، د طبي او تخنيک وده او تکامل، د تشخيصي او معالجوي متودونو څرنګوالی او په هېواد کې د طبي عينياتو د توليد امکانات، د مسلکي کادرونو شته والی او هغه بودجه چې دولت له خوا ټاکل کېږي، عمده رول لوبوي.

د طبي عينياتو د اکمال نورم په ټاکلو کې د اکمالاتو مديريت، د صحي موسسو، قطعاتو او جزوتامونو متخصصين او د صحيه رياست د قرارګاه نور ارګانونه ګډون کوي. خو د جګړې د ستونزو او شرايطو په نسبت طبي عينيات نورم موجود نه وي بلکې د طبي عينياتو، طبي نوو سامان آلاتو د يوه کلن ضرورت فهرست چې په هغه کې د پلان، اکمال مديريتونه، د ديپوګانو قوماندانی او د اردو سر متخصصين ګډون کوي، ترتيب شوی او د دفاع وزارت د مقام منظوری اخستل کېږي.

د ترتيب شوی فهرست په اساس د نومړو اقلامو فيات پيشبيني شوی او د طبي عينياتو مجموعي قيمت د بهرنيو اسعارو او افغاني پيسو په شکل د دفاع وزارت د مالي د عمومي رياست څخه د صحيه د رياست د مالي مديريت په واسطه غوښتل کېږي.

د اردو د صحیی ریاست د خپل اکمالاتو د مدیریت پواسطه طبی عینیات په مرکزی شکل د لاندنیو مراجعو څخه اکمال خریداری او ترلاسه کیږي:

- د وزیرانو د شورا د مصوبی او د افغانستان د جمهوریت د جنریک درملو د قانون له مخی مصرفی طبی عینیات (درمل، ریاکتیفونه، باکترلوژیکی مواد، دیزانفکیسونی مواد، او د طبی مالزمی یو شمیر اقلام) د عامی روغتیا وزارت د فارمسی د چارو د ریاست له خوا پیرودل کیږی. دلته د اردو د صحی خدماتو د یو کلن ضرورت وړ پلان چې د مخه د فارمسی ریاست ته لیږل شوی او د کـــــــال په اوږدو کې د اړتیا وړ مواد (د پسرلی او منی فصلونو کې) اکمال کیږی.

- طبی غیر مصرفی عینیات لکه سامان، الات، دستگاوی او سفری عینیات او د طبی مالزمی یو شمیر قلمونه د بهرنیو هېوادونو څخه اخستل کیږی.

- یو شمیر اقلام په تیره بیا سفری طبی عینیات د دفاع وزارت د خارجه ارتباط د ریاست په واسطه د صحیه ریاست د پیشنهاد له مخی د بهرنیو هېوادونو څخه راغوښتل کیږی او په دې باب د دواړه له خوا پروتوکول امضا کیږی.

مگر د عینیاتو پاتی گروپونو زیاتره اقلام په مستقیم ډول د صحیه ریاست په واسطه بهرنیو هېوادونو ته غوښتنلیک ورکړ شوی او د نړۍ د مختلفو کمپنیو د اسنادو، د راټولولو وروسته په مقایسوی فهرست کې درج کیږی. د صحیه ریاست منتخب هیئت (د اردو سر متخصصین، د اردو د صحیی د ریاست د قرارگاه د څانگو د آمرانو سره) د هغو اقلامو د کیفیت او قیمت له مخی د مقایسوی فهرست له مخی انتخابوی او بیا د اړوندو کمپنیو څخه د هغه پیرودلو او د اسعارو د انتقال په برخه کې اقدام کیږی.

- که چیرته د فارمسی چارو ریاست د صحیی ریاست ضرورت د درملو له پلوه تکافوونه کړای شی او یا ور سره موجود نه وی د پورتنی مقام تر استیذان وروسته د داخلی خصوصی توریدی شرکتونو او موسسو څخه د «جگړی» په اساس د هیئت پواسطه درمل پیرول کیږی.

- که چیرته د درملو او طبی نور عینیاتو مقدار زیات وی او د ریاست صحیی د صلاحیت څخه پورته وی یعنی زښته زیاتی روپۍ ایجاب کړی د پیریدلو دا پروسه د دفاع وزارت د خریداری د ریاست په واسطه پرمخ بیول کیږی.

- همداشان د درملو د اقلامو د یو شمیر د ډیر چټک اکمال په خاطر او هغه درمل چې د یوه کلن ضرورت په فهرست کې د مقدار د کموالی او یا د هغو د میعاد د استعمال لنډوالی په نسبت نه دی ځای شوی نو په غیر مرکزی ډول اکمالیږی. لکه چې د دی مقصد لپاره یو موټې روپۍ قطعاتو، جزوتامونو او صحی موسسو ته پولی تخصیص ورکول کیږی ترڅو د خپل سوق الجیش له سیمی څخه د خپل اړتیا وړ موادو پیرودلای شی.

- د اردو صحیه ریاست او د اردو ځینی صحی قطعات، جزوتامونه او صحی موسسی د طبی عینیاتو د اقلامو یوه اندازه د بهرنیو هېوادونو او د دولتی او خصوصی داخلی موسسو څخه په وړیا ډول ترلاسه کوی، همداشان هغه غنیمتونه د وسله والو مخالفینو څخه ترلاسه کیږی، تر معاینی او تدقیق وروسته د پرنسیب له مخی تر محاسبی لاندې نیول کیږی. خو په هر شکل چې طبی عینیات د اردو د صحی موسسی او جزوتامونه ترلاسه کوی له یوی خوا تر محاسبی لاندې نیول کیږی او له بلې خوانه د صحیی ریاست د اکمالاتو مدیریت په جریان کې اچول کیږی.

- د درملو او طبی مالزمی د اقلامو یوه اندازه د صحیی ریاست د مرکزی دیپوګانو په لابراتوار کې اعمالیږی.

- هغه طبی عینیات چې صحیی ریاست ته راوړل کیږی د معاینی د هیئت له خوا تشریح شوی او په ۸ نمبر فورم کې ثبتیږی. نوموړی مواد وروسته د صحیی په مرکزی دیپوګانو کې د عینیاتو د ځانګړتیاوو له مخی ځای پر ځای کیږی او محاسبه یې هم د اکمالاتو په مدیریت او هم د مرکزی دیپوګانو د قوماندانی د ساتنی د مدیریتونو په واسطه پرمخ بیول کیږی. د پرنسیب له مخی دا ایجابوی چې د صحیی ریاست د پلان په مدیریت کې یو اوپراتیفی محاسبیت تعقیب شی.

د صحی مرکزی دیپوګان د عینیاتو د تسلیمی د هغو د ساتنی ترتیب او تنظیم، د کیفیت څخه د کنترول، او د طبی الاتو له ترمیم څخه په قطعاتو او روغتونونو کې سازماندهی کوی.

همداشان د طبی عینیاتو توزیع د صحیی د اکمالاتو د شعبی د امر یې په اساس د دیپوګانو د قومانوانۍ له لاری صورت نیسی.

مستقل قطعات، لوی جزوتامونه، تعلیمی موسسات او روغتونونه راپوری درخواستونه یعنی فورم ۱۴ راساً د صحیی ریاست د اکمالاتو مدیریت ته لیږی. قطعات او کوچنی جزوتامونه لومړی خپل درخواستونه

لوی جزوتام (فرقی) ته لیږی او بیایی له توحید وروسته د صحیی ریاست ته استوی.

د طبی عینیاتو درخواست د یوه مکتوب، استعلام او د عرض د پاڼی په واسطه نه اجرا کیږی او همداشان په درخواست کې باید اخستل شوی مقدار، لګښت، دیپو موجود او د احتیاج بقیه مقدار درج شی. راپوری درخواستونه د طبی عینیاتو د هر ډول وظیفی له مخی لکه مالزمه، سامان الات، پاتنت درمل، درګ (د درملو خام مواد) او نور په ځانګړی توګه ترتیب او تیاریږی.

د صحیی مرکزی دیپوګانو څخه د طبی عینیاتو توزیع لویو جزوتامونو او روغتونونو ته د فورم ۹ یعنی د عینیاتو د اعطا د امر له مخی اجرا کیږی، هغه عینیات چې د پورتنی فورم په اساس توزیع کیږی د لیږلو په مجرد د توزیع کوونکو دیپوګانو په خرڅ مجرا کیږی او د اکمال په خدمت کې تر را رسیدلو وروسته د نوموړو او امرو مصدقی نقل د ورلیږل شوی له خوا نه د ورلیږونکی دیپو په خرڅ مجرا او د ورلیږل شوی په ذمت قیدیږی. ورلیږل شوی مرجع مجبور او مکلفه ده چې نهایت د پنځلسو ورځو په موده کې مصدقه نقل، مربوط اکمال خدمت ته وسپاری. هغه قطعات او موسسی چې تر ۳۰ کیلو مترو پوری مسافه ولری په ۴۸ ساعتو کې باید یو نقل د دفترونو له قید څخه وروسته دوباره مسترد کړی.

قطعات، لوی جزوتامونه او صحی موسسات د خپل ګارنیزیون د ننه توزیع ګانی په ۹، او ۱۱ فورم کې اجرا کیږی او مصرفی لوازم په داسی شرط چې نورم یې تثبیت شوی وی د توزیعاتو په ۱۰ نمبر فورم کې ترسره کیږی.

طبی اکمالات له لویو جزوتامونو (دفرقی صحیه کندک) څخه غونډونو ته معمولاً په دریو صورتو اجرا کیږي:

۱- د جګړه ایز فعالیت تامینوونکی اکمالات: دا ډول اکمال د محاربی په جریان کې پرته له درخواستی څخه صورت نیسی.
۲- اتوماتیکی اکمالات: دا ډول اکمال هم د جګړی په جریان کې په داسی صورت کې چې ټپیان او ناروغان په کتلوی او متواتر شکل راځی پرته له درخواستی صورت نیسی.
۳- جاری اکمالات: جاری اکمالات د پلان او نورم له مخی په میاشت کې یوکرت د درخواستی د ترتیب په واسطه ترسره کیږی.

## د افغانستان په جمهوري اردو کې د صحيي د اکمالاتو سيستم



## د صحیی د مرکزی دیپوګانو څخه د طبی عینیاتو اکمالوونکی اورګانونه



## د محاربی په شرایطو کې د فرقی د اکمالاتو طرز



## نظامی طبابت د مجاهدینو د قدرت په وخت کې

د مجاهدینو په دوره کې د اردو په تشکیل کې خاص تغییرات منځ ته رانغی او مجاهدین په پخوانی تشکیل کې تنظیم شول. په ۱۳۷۲ کال کې کله چې د دولتی طبی انستیتوت ودانی په علی آباد کې د جنګونو له کبله ویجاړی شوی نو د دولت د تصمیم په اساس دولتی طبی انستیتوت د خپل ټول اداری او تدریسی تشکیل سره د طبی علومو اکادمی ساحی ته انتقال شو او د تدریسی کادرونو د کموالی سره هم مخامخ و چې د طبی علومو اکادمی تکړه متخصصین دغه خالیګاه ډکه کړه او د پنځم ټولګی د نظامی مضامینو برسیره هغه مضامین چې ملکی استادانو پرمخ بیوه دوی په غاړه واخستله.

په همدې کال کې د طبی علومو اکادمی په تشکیل کې هم تغییرات رامنځ ته شو چې د نظامی طب پوهنځی پنځه څانګی (دیپارتمنتونو) یوویشت دیپارتمنتونو ته ارتقا وکړ او د افغانستان د وسله وال پوځ د پوهنتونونو، اکادمیو او پوهنځیو د علمی کادر د غړو د حقوقو او امتیازونو د قانون اتمه ماده د یو فرمان له مخی دویم ځل د تطبیق وړ ګرځید او هغه استادان چې نظامی طب پوهنځی کې یې درسونه مخی ته بیول علمی درجی یې تثبیت شوی.

د جنګونو د زور اخستلو او د چور او چپاول له کبله د اردو اکثریت روغتونونه غیر فعال شول او یواځی د طبی علومو د اکادمی روغتون ټپیان او ناروغان منل او درملنه یې کاوه. په دې دوره کې نظامی پوهنځی طب او منځنی طب درسونه دوام درلودل او د «تعلیمات موسسات عالی و تعلیمی اردو» کتاب نشر شو چې څلور فصلونه یې نظامی طبابت پوری تړاو درلود.

د طالبانو نظامی تشکیلات ډیر محرم او مرموز و خو سره د دی هم ځینی نظامی روغتونونه لکه د طبی علومو اکادمی، قندوز او قندهار فعال وو.

هغه څه چې د یادونی وړ دی د زخمیانو بې له دی چې قدموی مرستی ورسره وشی په ډیر سرعت او چالاکی سره روغتونونو ته تخلیه کیدل.

د اکمال تخصص پروګرام چې ۱۳۶۹ کې منظور شوی و لس کاله وروسته یعنی په ۱۳۷۹ کال کې په فعالیت شروع وکړ. د اکمال تخصص پروګرام درسی کوریکولیم جوړ شو چې حتی د عامی روغتیا وزارت داسی یو درسی پلان او کوریکولیم نه درلود.

نو په دې دوره کې د اکمال تخصص پروګرام، نظامی پوهنځی او منځنی طبی کورسونو درسونه په ښه توګه جريان درلود.

هغه څه چې په دې ځېرکی کې د يادونی وړ دی هغه دا چې د نظامی طبابت د ټولو کته کوريو پرسونل په تيرو شوو دورو کې خپل ايمانی او وجدانی دندی يې اجرا کړی دی خو سره د دی هم ډيری نيمګړتياوی هم موجودی وی چې ځنی يې په ګوته کيږي:

۱- اقتصادی کمزورتيا: د نظامی طبابت چاری مستقيماً د هېواد اقتصاد پوری ارتباط لری نو څرنګه چې زمونږ د هېواد اقتصاد په ډيره ټيټه سطح کې قرار درلود، په دی کې شک نشته چې په نظامی طبابت کې هم د کادرونو، طبی عينياتو او عالی طبی تخنيک په ټيټه سطح قرار درلود.

زما ښه په ياد دی کله چې په کال ۱۳۵۷ کې مرکزی روغتون ته مصدومينو او ټپيانو تعداد زيات شو د طبی آلاتو کمبود ډير احساس کيده حتی مونږ د پلستر غوڅولو دپاره قيچی (بياتی) نه درلود. خو د صحيی رياست څنډی ته يو لږ ديپوګانی موجود وی چې د هجری شمسی پيړۍ شلمو کلونو د ترکانو له وخته راهيسی مهراولاک واو هيچا تردی مه نه وخلاص کړی. د يو هيئت په موجوديت کله چې ديپوګانی خلاصيږی ځنی اسناد او د صحيه او وترنری ځنی سامانونه هم په صندوقونو که موجود ؤ چې له نيکه مرغه د پلستر د غوڅولو يوه قيچی هم موجوده وه، مرحوم دوکتور علی محمد صدری چې مرکزی روغتون د سر جراح په توګه کار کاوه دومره خوشحاله شو لکه چې يوه مهمه تحفه ورته ورکړل شوی وی.

۲- د نظامی طبی کادرونو کموالی: د داکترانو او متخصصينو تعداد په سلو کې ۲۸ او د منځنی طب پرسونل په سلو کې ۵۶ تشکيلاوه چې د هغو له جملی څخه يواځی په سلو کې ۶۰ يې په مرکز کې فعاليت کاوه. واضح ده چې دومره پرسونل سره د طبی خدماتو عرضه کولو کې څه نيمګړتياوی بايد موجودی وی.

۳- په نظامی طبابت پرنسيبونو باندې د طبی کادرونو نه پوهيدل. واقعاً چې اکثريت پرسونل هغه پرنسيبونو باندې چې د جنګ په وخت کې په نظر کې ونيول شی نه پوهيدل نو ځکه په لومړيو کې زمونږ تلفات او معيوبتونه څه ناڅه زيات ښودل شوی دی.

۴- په طبی کادرونو باندې د جنګ ناوړه اغيزی جنګ او جګړه د وطن ټول بشری مادی او معنوی ارزښتونه له منځه وړی – واضح ده چې د جنګ په وخت کې نظامی طبابت ډير کادرونه شهيدان شول، اسيران شول او

وطن یی پریښود او نورو هېوادونو کې خواره واره شول. چې دا هم د نظامی طبابت په کړو وړو باندې ناوړه ژور تاثیر وکړ.

٥- په احزابو او تنظیمونو کې ذات البینی تناقصات: دغه بدبختی نه یوائې د افغانستان د خلق دموکراتیک گوند کې موجود و حتی په مجاهدینو کې لا زیات ژور تناقضات موجود ؤ چې د دغه ناوړه دود له کبله نظامی طبی کادرونو او مادی او معنوی ارزښتونو باندې ناوړه اغیزه اچولی ده.

خو یوه موضوع د پام وړ ده هغه څوک چې الله تعالی بندگی ته او خپل وطن او خلکو ته متعهد وی شک نشته چې په هر حالت کې خدای (ج)، وطن او خلک له یاده نه وباسی.

نو د نظامی طبابت په غړو کې ډیر زیات داسی اشخاص موجود وو او اوس هم ځنی یې ژوندی دی چې نه یی وطن پریښود، نه یی وظیفه پریښودله او نه یې په پاکو احساساتو کې یې کومه تغیر منځ ته راغی. ممکن د بدنی طاقت له کبله په دنده کې کمزورتیا موجوده شوی وی خو پاسنی احساس یې هیڅکله له منځه نه ده تللی.

په دې توگه نظامی طبی کادرونو د ټولو نا خوالیو سره سره په ډیر صداقت او ایمان داری سره خپله دنده او وظیفه پرمخ بیولی ده.

د نظامی طبی کادرونو نه یوائې په پوځی چارو کې دندی اجرا کړی بلکی په داخل او خارج کې د هغو مرستی روښانه دی. نظامی طبی کادرونه په هېواد کې د طبعی حوادثو کې لکه د هېواد په شمالی برخو خصوصاً د رستاق د زلزلی ځپلو خلکو سره مرسته کړی. همدارنگه کله چې په پاکستان کې سلابونو ډیری ورانی منځ ته راوړ زمونږ تکړه پیلوتان او طبی کادرونه د رغونی او طبی مرستی رسولی دی. په اندونیزیا کې د سونامی په ناوړه پېښه کې نظامی طبی کادرونه د قدر وړ مرستی رسولی چې د دیپلوماتیکو له لیاری د هغو څخه مننه او قدردانی شوی ده.

نظامی طبی کادرونه په هېواد کې د عامی روغتیا وزارت، د افغانستان د علومو اکادمی او نورو ارگانونو سره خپلی مرستی رسولی دی. نظامی طبی کادرونه په دی ښه پوهیږی هرڅومره چې د روغتیایی او تحصیلی چارو په منځ کې هم غږی موجوده وی په هماغه اندازه د خلکو خصوصاً ناروغانو پکې گټه ده له همدی کبله نظامی طبی کادرونه زیار باسی ترڅو د عامی روغتیا وزارت، د طبی علومو پوهنتون او د نظامی طبی علومو اکادمی ترمنځه ټینگی اړیکی موجودی وی ترڅو د علمی – تحقیقی، معالجوی او زده کړی چارو کې لا ښه والی منځ ته راشی.

زمونږ نظامی طبی کادرونه نه یوائی په هېواد کې د اړوندو ارګانونو سره اړیکی لری بلکې په نړیواله سطح هم نظامی کادرونه د اتحادیو او سازمانونو غړی دی او په کنفرانسونو، کې یې فعاله ونډه اخلی او خپلی بریاوی نړیوالو ته وړاندی کوی.

همدا اوس د ملی دفاع وزارت، عامی روغتیا وزارت او د افغانستان علومو اکادمی سره د روغتیایی چارو په برخه کې د همکاریو تړونونه موجود دی.

## ځلورم څپرکی

## د مسلحو قواو طبی علومو اکادمی

د افغانستان د مسلحو قواو طبی علومو اکادمی زمونږ د هېواد ډېره ستره او لويه موسسه ده چې په روغتون کې يې تشخيصی، معالجوی، وقايوی، تدريسی، تربيوی، علمی او تحقيقاتی چاری پرمخ بېول کيږل.

څرنګه چې دغه موسسه نه يواځی په افغانستان کې بلکې په ډېرو هېوادونو خصوصاً منطقه کې ساری نه لری ضرورت بريښی چې نور هم معلوماتونه را ټول شی او يوه مکمله څېره يې د اړوندو اشخاصو په واسطه روښانه شی.

«د افغانستان د وخت اردو، سلطنتی کورنۍ او د اردو د عالی رتبه افسرانو د درملنی په موخه د يو مجهز مرکزی روغتون د ايجادولو مفکوره په کال ۱۳۴۴ کې دولتی مسئولو مقاماتو سره منځ ته راغله»[۱].

د دغه روغتون د جوړولو په خاطر د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ پروتوکول عقد شو چې د نوموړی هېواد مادی او تخنيکی مرستې سره په کال ۱۳۴۸ کې د مرکزی روغتون په نامه اعمار يې رسماً پيل شو.

د اردو د مرکزی روغتون (۴۰۰بستر) د ودانولو کار د وخت د دولتی حاکميت د خاصی پاملرنی لاندې و او هميشه د دولتی مشرانو تر څارنی لاندې قرار درلود. لکه چې د ۱۳۵۱ کال د مرغومی په ۱۲ نېټه اعلحضرت محمد ظاهر شاه د افغانستان پاچا د دې روغتون د کار جريان وکوت. او محمد موسی شفيق صدراعظم هم د دې کال د مرغومی په ۱۹ نېټه د دې روغتون د کار د جريان څخه کتنه وکړه.

---

۱ - دوکتور سياووش تاريخچه اورتوپيدی در افغانستان و جهان کابل ۲۰۰۶.

دغه موسسه چې د اردو مرکزی روغتون په نامه نومول شوی ده او د څلور سوه بستریز روغتون هم ورته ویل کیده، خو د مرحوم تورنجنرال داکتر محمد قاسم عسکریار چې د اردو د صحی چارو ریاست بې پر غاړه و غوښتل یی چې دغه موسسه د طبی علومو اکادمی ونومول شی او تشکیل یې هم باید اکادمیک وی، خو شوروی سلاکار (پروفیسور شیشکین) چې د تشکیلاتی چارو د مرستی لپاره افغانستان ته راغلی و او مرحوم عبدالودود غفاری چې وروسته د دوکتورا او د پوهاند علمی درجی ته ورسید د سلاکار سره د ترجمان او تشکیلاتی چارو کې همکاری درلود، د مرحوم عسکریار او سلاکار ترمنځ د تشکیل په برخه کې اختلاف پیدا شو دا ځکه چې شوروی سلاکار د دولتینو د پروتوکول پر اساس ټینګار کاوه چې د روغتون په کچه یو تشکیل جوړ شی او بیا وروسته په تدریج سره اکادمی ته ارتقا وکړی. «د دغه اختلاف په پایله کې شوروی سلاکار یا دا چې پخپله خوښه خپل وطن ته ستون شو او یا دا چې د افغانستان څخه وویستل شو»[1].

کله چې مرحوم سردار محمد داود خان جمهوریت اعلان کړ د وطن پیاوړی جراح مرحوم جنرال داکتر نور محمد خلمی د اردو د روغتیایی چارو د رئیس په توګه وټاکل شو. مرحوم خلمی هم په دې عقیده و چې د روغتون تشکیل د اکادمی په څیر جوړ شی، هماغه و چې نوموړی د دفاع وزارت له لیاری د دولت ریاست ته یې پیشنهاد وکړ چې د روغتون په چوکاټ کې علمی – تحقیقاتی او تدریسی بیز فعال شی او د مسلحو قواو د طبی علومو اکادمی په نامه پخپل کامل مفهوم باندې تعدیل او تبدیل شی. هماغه و چې دولت دغه پیشنهاد قبول کړ او د روغتیایی چارو ریاست ته هدایت ورکړ شو ترڅو یو علمی کمیسیون جوړ شی او د هغه د علمی – تحقیقاتی او معالجوی د فعالیت طرز مطالعه شی او د کار په ختم کې د دفاع وزارت له خوا دولت ته یې وسپاری.

د کمیسیون په غړیتوب کې د عامی روغتیا، کابل پوهنتون پوهانو او د اردو د صحی ریاست مختلفو کته ګوریو مسلکی غړی او د اردو ځنی افسران هم شامل شول. او د دولت د ریاست له خوا د کمیسیون اعضا تائید او خپل کار باندې شروع وکړ.

د کمیسیون کار د ۱۳۵۴ کال په نیمایې کې شروع شو چې د هری پنجشبی په ورځ د روغتون په اداری برخه کې فعالیت کاوه چې څه ناڅه یو کال یې په برکی ونیو.

---

۱ - مجله صحت در افغانستان دوهمه ګڼه ۱۳۸۷ لمریز کال ۲۱مخ.

د دغه کمیسیون غړي په دې ډول و:

۱- مرحوم دګروال دوکتور نورمحمد خلمی – د اردو صحی چارو رئیس د کمیسیون رئیس.

۲- دګروال دوکتور محمد نعیم ننګرهاری – د اردو د ۱نمبر روغتون د داخلی څانګو سرداخله – غړی.

۳- دګرمن دوکتور عبدالغفور نورستانی – د اردو ۱نمبر روغتون سرجراح او د عمومی جراحی او صدری څانګی آمر – غړی.

۴- جګړن دوکتور عبدالمنیر شینواری – د اردو ۱نمبر روغتون د ولادی او نسایی متخصص – عضو.

۵- جګړن دوکتور محمد عمر عسکریار – د اردو ۱نمبر روغتون د سترګو متخصص او د سترګو څانګی مرستیال – عضو.

برسیره پردی نوموړی د صحی اسنادو په جوړولو او تعلیماتنامو او نورو اړوندو اسنادو په ټولولو کې د قدر وړ خدمت کړی دی.

۶- تورن دوکتور عبدالودود قیومی د اومی فرقی د ۵۵ غونډ سرطبیب او د روغتیایی کندک آمر – د کمیسیون سکرتر.

۷- دګروال دیپلوم انجینر عبدالقدیر نجرابی د روغتون د ساختمانی پروژی آمر – غړی.

۸- دوکتور عبدالباقی شالیزی د ۱نمبر روغتون د عقلی او عصبی متخصص – غړی.

هغه غیر نظامی پروفیسورانو چې د عامې روغتیا وزارت او د کابل د پوهنتون څخه په کمیسیون کې غړیتوب درلودل په لاندې ډول دی:

۱- پوهاند دوکتور محمد عثمان انوری (د عامی روغتیا پخوانی وزیر) د نسایی او ولادی پروفیسور او د طب پوهنځی استاد – غړی.

۲- دوکتور سید عبدالقادر بها د اناتومی پروفیسور د طب د پوهنځی استاد –غړی.

۳- پوهاند عبدالعزیز سراج د کوچنیانو پروفیسور د طب د پوهنځی استاد – غړی.

۴- دوکتور سید الف شاه غضنفر طب پوهنځی کې د بیوشمی استاد – غړی.

۵- پوهاند دوکتور محمدنادرعمر دفزیولوژی پروفیسور دطب پوهنځی استادغړی.

۶- پوهاند دوکتور محمد حبیب دل د طب پوهنځی فارمکولوژی استاد – غړی.

۷- دوکتور محمد رؤوف روشان د کوچنیانو د روغتون رئیس – غړی.

۸- دوکتور ضامن علی د علی آباد د صحی موسسو رئیس – غړی.

۹- دوکتور محمد نبی کامیار د وزیر اکبر خان روغتون رئیس – غړی.

همدارنګه د ۱۳۵۴ په نیمایي کې یو تعداد نور مسلکی غړی چې برسیره پر تشکیلاتی موضوعاتو باندې کار او مرستی کولی د خدمتی په توګه وغوښتل شول ترڅو د روغتون پر فعالیت، د اسنادو منځ ته راوړل، د ناروغانو دوسیه، تشخیصیه پانی، د طبی عینیاتو اکمال، د طبی سامان الاتو او دستګاو منتاژ، د صحی او لوژستیکی محاسبوی او غذایی رژیم چارو باندې کار وکړی چې په لومړی سرکې دغه متخصصین جذب شول دوکتور محمد عمر عسکریار، جګړن وترنر دوکتور غلام بهاءالدین نجرابی، جګړن فارمسست عبدالحی مومنی، د لوژستیک انجینر تورن غلام دستګیر، د تخنیک جګړن عبدالقیوم او جګړن عبدالوکیل نورستانی.

همدارنګه باید وویل شی چې د ساختمانی چارو د آمریت په تشکیل کې د فارمسست درانی، فارمسست الحاج عبدالله، بریدګی محمد عثمان او انجینر محمد صدیق حلیم هلی ځلی د قدر وړ دی.

د ۱۳۵۴ کال په نیمایي کې د شوروی اتحاد پنځه تنه مشاورین (د قوماندان، سرطبیب، سرجراح، فارمسی او نرسنګ) د تشکیلاتی او نورو اداری او مسلکی چارو لپاره افغانستان ته راغلل.

او په ۱۳۵۵ کال په لومړیو کې یو تعداد تکړه متخصصین د رهبری په برخه او د څانګو (دیپارتمنتونو) په خاصه توګه اداری او انضباطی په برخه کې د آمرینو په توګه وټاکل شول چې په هغو کې:

☜ مرحوم دګروال (وروسته جنرال) دوکتور نور محمد خلمی چې د روغتیایی چارو رئیس و د طبی علومو اکادمی د قوماندان په توګه.

☜ مرحوم دګروال دوکتور سورګل اسعدی د روغتون د سرطبیب په توګه.

☜ دګروال (وروسته جنرال) دوکتور محمد نعیم ننګرهاری د علمی مرستیال په توګه.

☜ دګروال دوکتور محمد انور نوزاد د اداری معاون په توګه.

☜ جګړن فارمسست عبدالحی مومنی د فارمسی او اکمالاتو د څانګی د آمر په توګه.

- ☜ جګړن وترنر دوکتور غلام بهاءالدین د غذایی رژیم د مسئول په توګه.
- ☜ تورن انجینر غلام دستګیر د اعاشی د آمر په توګه.
- ☜ جګړن عبدالقیوم د تخنیک د مدیر په توګه.
- ☜ جګړن عبدالوکیل نورستانی د انضباط د کندک د قوماندان په توګه.
- ☜ جګړن دین محمد د پیژند د مدیر په توګه.
- ☜ انجینر محمد صدیق حلیم د حفظ او مراقبت د آمر په توګه.
- ☜ دوکتور شیرزوی د تشخیص وظیفوی د څانګی آمر په توګه.
- ☜ دوکتور محمد عمر سلام د رادیولوژی د څانګی د آمر په توګه.
- ☜ دوکتور محمد ناصر نوابی د لابراتوارونو د آمر په توګه.

وروسته ورو ورو د معالجوی څانګو آمرین وټاکل شول او په تدریج سره تشکیل څه ناڅه ډک شو.

بالاخره د لړم د میاشتی په ۲۷ مه په کال ۱۳۵۵ کې د جمهور رئیس محمد داود، د عامی روغتیا وزیر مرحوم پوهاند دوکتور نظر محمد سکندر، د شوروی اتحاد د عامی روغتیا وزیر، د ملی دفاع وزیر، د کابینی غړو په ګډون د دوستی د دیوال ځیرمی ته چې څلور تنه ناروغان د داخلی په څانګه کې بستر وو د نوار په قطع کولو سره رسماً افتتاح او په کار یې پیل وکړ.

د مرکزی روغتون په تشکیل کې ۲۷ څانګی (دیپارتمنتونه) موجود وو چې نه یواځی د اردو پرسونل یې تداوی کاوه بلکې د دولتی لوړ رتبه مامورین، د داخلی وزارت او ملی امنیت صعب العلاج ناروغان، د باندنی هېوادونو د کور دیپلوماتیکو غړو درملنه یې کاوه.

د جنګ په کلونو کې د دغه روغتون تشکیل تغیر موندلی له ۴۰۰ څخه تر ۱.۰۰۰ بسترو ته ارتقا ورکړ شوی او ځنی وختونه د ناروغانو تعداد ۱.۲۰۰ تنوته رسیدل.

د روغتون د فعالیدو سره جوخت ۲۵ تنه پروفیسوران اکادمیک او تکړه دوکتوران د شوروی اتحاد څخه د عقد شوی پروتوکول له مخی افغانستان ته راغلل چې عملاً د مسلکی کادرونو د روزنی په برخه کې مصروف وو چې د حربی مدرن طبابت د بنیاد ایښودونکو واقعی استادانو په توګه ورته ویلای شو.

هغه څه چې د يادونې وړ ده هغه د ښوونې او روزنې تحصيلي چارې او د نظامي طبابت پراختيا په مرکزي روغتون کې وو چې په ۱۳۵۷ کال د منځنۍ طب تعليماتو کورس ايجاديدل و او په تدريج سره دغه کورس پراختيا ومونده چې د طب د مسلک په ټولو رشتو کې متوسط پرسونل تربيه کړی او دغه لړۍ تر اوسه دوام لري.

همدارنګه د وری په ۲۵ مه ۱۳۵۷ کال په مرکزي روغتون کې د لمړی ځل د پاره علمي – ميتوديکي کنفرانس جوړ شو چې دوه ورځې دوام ومونده او په مختلفو رشتو کې ۳۵ مقالې ولوستلې شوې چې زمونږ د ملکي پوهانو، متخصصينو او داکترانو له خوا ډير وستايل شو. دغه کنفرانس د عنعنې شکل يې ونيو او هر کال د روغتون کالنامه له چاپه راوځي چې په هغو کې د علمي کنفرانسونو مقالې او د نظامي طبابت مبرم مسايل پکې انعکاس موندلې دی.

د ۱۳۵۸ کال د غبرګولي په ۱۵مه مرکزي پولي کلنيک پرانستل شو چې د مرحوم جنرال داکتر آدم درمل هلې ځلې نه هيريدونکې دی.

په ۱۳۶۱ کال د کابل د طب په انستيتوت کې د حربي طبابت کافدرا پرانستل شوه چې د دغه کورس فارغان د صحي احتياط ضابطانو په توګه وپيژندل شول او په دغه کافدار کې د مرکزي روغتون متخصصينو او پروفيسورانو تدريس کاوه.

د جدي ضرورتونو په اساس د وزيرانو شورا د ۱۳۶۴/۲/۲۳ مصوبې پر اساس نظامي طب پوهنځی د ملي دفاع وزارت په چوکاټ کې چې ميتوديکي علمي او تدريسي چارې د دولتي طب د انستيتوت پر غاړه و پرانستل شو چې په لومړی سرکې پنځه څانګې (کافدراوی) لرلې.

په دې پوهنځي کې د پنځم او شپږم ټولګې شامل و چې د طب د انستيتوت د څلورم صنف په تکميليدلو سره نظامي طب پوهنځي ته معرفي کيدل، په هر ټولګې کې ۱۰۰ تر ۱۲۰ پورې محصلين شامل وو چې ۴۰-۷۰ تنو پورې ملي دفاع وزارت، ۲۰-۳۰ تنو پورې د داخلې وزارت او ۱۰-۲۰ پورې محصلين د عمومي ملي امنيت وو.

د نظامي طب پوهنځي په پرانستلو او په پښودرولو کې د پرفيسور محمد موسى وردګ چې د دې موسسې قوماندان او د اورتوپيدی او تراوماتولوژی د کافدرا آمر هم و په دواړو برخو کې د نوموړی هلې ځلې نه هيريدونکی دی.

د دې د پاره چې په لوړو نظامی تحصیلی موسسو کې علمی کادرونه منځ ته راشی د وخت د انقلابی شورا د رئیسی هیئت د ۳۱۴- ۱۳۶۶/۹/۳ مصوبی پر اساس د مسلحو قواو د افغانستان دموکراتیک جمهوریت د وسله وال پوځ د پوهنتونونو، اکادمیو او پوهنځیو د علمی کادرو د غړو د حقوقو او امتیازونو قانون توشیح شو.

په دغو لوړو تحصیلی موسسو کې د نظامی طب پوهنځی هم شامل و چې د قانون د اتمی مادی پر اساس پنځه تنه د پوهنځی استادان د ټاکل شویو نورمونو د پوره کولو سره د علمی درجی مستحق وپیژندل شول. د وزیرانو د شورا ۳۳۲- ۱۳۶۶/۱۲/۱۲ مصوبی پر اساس د پوهنتونونو، اکادمیو او پوهنځیو علمی کادرونو مقرره تصویب شوه چې د دی مقرری د محتوا پر اساس د پوهنځی استادان علمی درجی ته شاملیدل او ارتقایې کول.

څرنګه چې له یوی خوا د ځوانو داکترانو او نور طبی پرسونل لپاره د باندنیو هېوادونو د تحصیل امکانات له منځه لاړ، ضرورت و چې د مسلحو قواو د داکترانو د مسلکی پوهی د لوړتیا لپاره د اکمال تخصص پروګرام منځ ته راشی. همداو چې د وزیرانو شورا د ۳۴۵- مرغومی میاشت کال ۱۳۶۹ د مصوبی پر اساس د تخصص پروګرام د داخلی او جراحی څانګو لپاره منځ ته راغی.

د اکمال تخصص پروګرام او د روغتون ارتقا په اکادمی باندې د تورنجنرال پروفیسور دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل مندۍ رامنځۍ او هلی ځلی د طبی علومو اکادمی په ځلانده تاریخ کې به ثبت وی.

همدارنګه په همدې کال د وسله وال پوځ طبی علومو اکادمی «لایحه وظایف» د پوهنوال عبدالحی مومنی له خوا او د روغتیایی چارو رئیس جنرال دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل په لارښوونه تدوین چې د ډیرو معتبرو لوایحو او د خپلو شرایطو په نظر کې نیولو سره په ۱۳ فصلونو کې ټایپ او د اکمال تخصص پروګرام مصوبی سره یو ځای د طبی علومو اکادمی قوماندان جنرال پروفیسور دوکتور ولایت حبیبی ته د تطبیق د پاره وسپارل شو.

کله چې جنګونو شدت وموند او د کابل دولتی طبی انستیتوت د متخاصمو قواو د تصادم مرکز وګرزید نو د کابل طب انستیتوت د خپل ټول اداری او تدریسی تشکیل سره د ۱۳۷۱ کال په وروستیو کې د مسلحو قواو طبی علومو اکادمی ته انتقال شو. په دغه کار کې د پروفیسور وردک هلی ځلی د ستاینی وړ دی. په دغه ووخت کې پوهندوی محمد صدیق رازقی د

نظامی طب د تدریسی چارو مدیر په توګه دنده اجرا کوله چې د دوارو تدریسی چارو په هم آهنګی کې لوی نقش لوبولی دی.

د ۱۳۷۲ کال د غویی د میاشتی مشترکی جلسی چې طبی علومو اکادمی او دولتی طبی انستیتوت د رهبری ترمنځ وشوی د انستیتوت د استادانو د کمبود د خلا د ډکوالو له پاره یو تعداد نظامی استادان ور وپیژندل شول چې نه یواځی د پنځم او شپږم ټولګی درسونه یې مخی ته بیول بلکې هغه مضامین چې ملکی استادانو پرمخ بیوه دوی په غاړه واخستله په دی ترتیب د کابل د طب انستیتوت ټول نظری او عملی درسونه په طبی علومو اکادمی کې پرمخ بیول کیدل.

په دې وخت کې ضرورت و چې د نظامی طبی علومو اکادمی تشکیل کې تغیرات منځ ته راشی ترڅو وکړای شی د تخصص پروګرام، د نظامی طب پوهنځی او منځنی طبی تعلیماتو درسونه په ښه صورت سره پرمخ ولاړ شی. په دې توګه په کال ۱۳۷۲ کې د افغانستان د مسلحو قواو د طبی علومو اکادمی نوی تشکیل جوړ شو چې د پنځو څانګو په عوض یوویشت څانګی (دیپارتمنتونه) منځ ته راغلل. چې په دې برخه کې د مرحوم تورنجنرال دوکتور عبدالواسع رنجبر او ډګرجنرال دوکتور سهیلا صدیق لاس ته راوړنی د قدر وړ دی.

څرنګه چې جنګونو زور اخستی و اکادمی ونشو کړای چې په ۱۳۶۹ یا ۱۳۷۰ کال کې د اکمال تخصص پروګرام پیل کړی خو په کال ۱۳۷۹ کې لومړی دوره ځوان ډاکتران د جراحی او داخلی مختلفو څانګو کې په درسونو پیل وکړ چې په همدې کال کې د اکمال تخصص کوریکولم تدوین شو حال دا چې په دې وخت کې د عامی روغتیا وزارت د اکمال تخصص ریاست هیڅ کوم درسی کوریکولم نه درلود.

د کوریکولم په جوړولو کې ټولو استادانو ونډه لرله خو د پوهاند عبدالحی مومنی او علمی مرستیال جنرال پوهندوی داکتر محمد او د پروګرام په فعالولو کې د پوهنوال جنرال دوکتور محمد اسمعیل ذبیح هلی ځلی د ستاینی وړ دی.

د نوی نظام د راتګ سره په یوه اړخیزه توګه د نظامی طب پوهنځی د کابل د طبی پوهنتون له تشکیل څخه وغورځېد. حال دا چې همدا اوس اوس د سلو شاوخوا ځوان داکتران د لوړو تحصیلاتو وزارت له خوا طبی علومو اکادمی ته چې د ولایتونو د طبی پوهنځیو څخه فارغ کیږی معرفی شوی چې خپل د ستاژ دوره تیره کړی او همدارنګه د افغانستان د علومو

اکادمی علمی کادرونه د څیړنو د پاره نظامی طبی علومو اکادمی ته معرفی شوی او د یو پروتوکول له مخی دا لړۍ روانه ده.

څرنګه چې د نظامی طبی علومو اکادمی د عالی لوړ تخنیک څخه برخورداره دی نو د دغه مجبوریت له مخی په ۱۳۸۷ کال کې د لوړو زده کړو وزارت چارواکی او بالخاصه د کابل طبی علومو پوهنتون مجبور شول چې نظامی طبابت پوهنځی بیاورغول شی او له نیکه مرغه محصلین یې په درسونو پیل وکړ.

د طبی علومو اکادمی علمی غړی په لس هاو درسی، میتودیکی، درسی ممد، علمی او تحقیقی آثار مسلحو قواو او ټولنی ته وړاندی کړی دی.

د تخلیی سیستم او د زخمیانو او ناروغانو درملنه د نړیوالی روغتیایی سازمان پر پرنسیپونو صورت نیولی چې د هېواد عامی روغتیا کې یې له اهمیته ډک رول لوبولی دی.

د طبی علومو اکادمی د خپل د تاسیس څخه د ۲۸ کلونو په درشل کې ۲۳۵.۰۰۰ ټپیان او ناروغان معالجه کړی دی چې په سلو کې یې ۹۰ بیرته قطعاتو ته سوق شوی دی. د تلفاتو تعداد په وسطی ډول روغتون کې په سلو کې ۳.۵ دی چې د تلفاتو ډیر کم رقم ښئی.

د طبی علومو اکادمی د خپل تاسیس د پیل څخه تر ۱۳۸۲ کال پوری په مختلفو رشتو کې ۱۹ تنه د متخصص په توګه ۷۰۹ تنه ځوان داکتران او ۱.۰۴۶ تنه طبی منځنی پرسونل یې په مختلفو رشتو کې مسلحو قواو ته وړاندی کړی دی.

«در طی ۲۵ سال جنګ در حدود ۱۲ ملیون مریض، مصدوم و مجروح جهت تداوی به اکادمی علوم طبی مراجعه و بصورت سراپا و داخل بستر تحت تداوی قرار گرفته اند و نزد تقریباً ۱۱۰.۰۰۰ مجروح، مصدوم و یا مریض عملیات های مختلف جراحی اجرا شده است. این کمیت بالا نشان دهنده حجم فعالیت های اکادمی علوم طبی را که در حقیقت تمام بار جنګ داخلی ۲۵ ساله را بدوش کشیده است. نشان میدهد»[۱].

په اوسنی حالت کې ډیر ښه مناسبات د طبی علومو اکادمی د عامی روغتیا وزارت، لوړو زده کړو وزارت په خاصه توګه د کابل طبی پوهنتون، د افغانستان د علومو اکادمی د طبی علومو مرکز سره لری او د

۱ - دوکتور سیاووش تاریخچه اورتوپیدی در افغانستان و جهان کابل ۲۰۰۶.

تجاربو د تعمیم او نیازمندو خلکوته د صحی خدماتو د لاښه عرضه کولو په خاطر متقابلو مرستو ته ادامه ورکوی.

د مسلحو قواو د طبی علومو اکادمی قوماندانان په لاندې معرفی کیږي:

۱- مرحوم جنرال دوکتور نور محمد خلمی ۱۳۵۲-۱۳۵۵
۲- جنرال دوکتور نیک محمد عزیزی ۱۳۵۵-۱۳۵۷
۳- مرحوم ډگرمن دوکتور محمد غنی اندړ ۱۳۵۷-۱۳۵۸
۴- جگړن عبدالحی مومنی برای مدت سه ماه
۵- جگړن دوکتور ولایت حبیبی ۱۳۵۸-۱۳۷۱
۶- پوهاند جنرال دوکتور محمد موسی وردگ ۱۳۷۱-۱۳۷۳
۷- جنرال دوکتور سهیلا صدیق ۱۳۷۳-۱۳۷۶
۸- ملا محمد شریف ۱۳۷۶-۱۳۸۱
۹- جنرال پوهندوی دوکتور عبدالرازق سیاووش ۱۳۸۱-۱۳۸۳
۱۰- دگرجنرال پروفیسور دوکتور عبدالقاسم احمدی ۱۳۸۳-۱۳۹۳

د طبی علومو اکادمی مرکزی پولی کلنیک د غبرگولی ۱۵ کال ۱۳۵۸ کې په فعالیت شروع وکړ او څرنگه چې دا موسسه له یوی خوا طبی علومو اکادمی پوری تړلې ده او له بلې خوا د درملنی خصوصیت یی هم فرق لری یعنی سروپا مریضان او زخمیان تشخیص، تداوی کوی او یا روغتونونو ته معرفی کوی نو ضرورت دی چې د دی موسسی په فعالیتونو څه ناڅه رڼا واچوله شی.

د پولی کلنیک آمریت اوس شل ځانگی لری چې تشکیل یی دری ځلی تغیر موندلی دی.

«په لومړی تشکیل کې یي: دوکتوران ۴۰تنه، نرس ۴۶تنه، پارامدیکل ۲۴تنه، سرباز ۱۸تنه، اجیران ۶۹تنه، مامور ۱تن، اداری افسران ۴ تنه، اداری پرکمشر ۳تنه او ټول پرسونل ۲۰۷تنه په

دویم تشکیل کې یي: دوکتوران ۳۲تنه، نرس ۲۸تنه، پارامدیکل ۳۳تنه، اجیران ۵۵تنه، مامورین ۲تنه، اداری افسران ۵تنه، درایور ۱تن، جمله پرسونل ۱۶۶تنه.

دريم تشکيل يي: دوکتوران ۲۷تنه، نرس ۲۶تنه، پارامديکل ۲۰تنه، اجيران ۲۵تنه، دريور ۱تن ټول پرسونل ۹۹تنه»[۱].

د پولی کلنيک د تاسيس څخه تر ۱۳۸۶ کال پوری په لاندې ډول فعاليت کړی دی.

| شمير | کلونه | د ناروغانو شمير | شمير | کلونه | د ناروغانو شمير | کتنی |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۱۳۵۸ | ۲۳۹.۲۸۸ | ۱۶ | ۱۳۷۳ | ۱۱۹.۳۵۵ | |
| ۲ | ۱۳۵۹ | ۲۵۳.۶۵۱ | ۱۷ | ۱۳۷۴ | ۱۳۹.۴۴۹ | |
| ۳ | ۱۳۶۰ | ۲۵۴.۳۴۸ | ۱۸ | ۱۳۷۵ | ۵۱.۱۵۶ | |
| ۴ | ۱۳۶۱ | ۲۲۲.۲۰۹ | ۱۹ | ۱۳۷۶ | ۸۳.۱۹۸ | |
| ۵ | ۱۳۶۲ | ۲۲۳.۴۰۵ | ۲۰ | ۱۳۷۷ | ۵۴.۹۱۲ | |
| ۶ | ۱۳۶۳ | ۲۲۴.۴۰۷ | ۲۱ | ۱۳۷۸ | ۵۴.۲۳۶ | |
| ۷ | ۱۳۶۴ | ۲۲۴.۶۰۳ | ۲۲ | ۱۳۷۹ | ۵۵.۸۷۹ | |
| ۸ | ۱۳۶۵ | ۲۱۷.۸۰۵ | ۲۳ | ۱۳۸۰ | ۱۰۹.۹۶۸ | |
| ۹ | ۱۳۶۶ | ۲۲۵.۴۸۴ | ۲۴ | ۱۳۸۱ | ۳۳.۶۶۲ | |
| ۱۰ | ۱۳۶۷ | ۱۹۴.۰۰۲ | ۲۵ | ۱۳۸۲ | ۵۱.۰۰۵ | |
| ۱۱ | ۱۳۶۸ | ۲۰۹.۰۷۰ | ۲۶ | ۱۳۸۳ | ۵۱.۸۵۴ | |
| ۱۲ | ۱۳۶۹ | ۱۹۳.۳۱۷ | ۲۷ | ۱۳۸۴ | ۵۱.۱۸۴ | |
| ۱۳ | ۱۳۷۰ | ۱۹۷.۴۱۲ | ۲۸ | ۱۳۸۵ | ۵۸.۶۶۶ | |
| ۱۴ | ۱۳۷۱ | ۱۱۶.۹۷۵ | ۲۹ | ۱۳۸۶ | ۸۱.۱۵۱ | |
| ۱۵ | ۱۳۷۲ | ۱۰۲.۲۱۹ | | | | |

د وخت د تيريدلو سره د طبی علومو اکادمی پولی کلنيک کې د درملنی، معايناتو او د پرسونل په کړنو کې زيات تغيرات راغلی دی چې د ذکر کولو وړ دی.

- لومړنی د CTScan ماشين، د ITT لابراتوار، ECO د وهاج د کلنيک په همکاری سره تر هغه پوری چې د طبی علومو اکادمی په روغتون کې CTScan او MRI فعال شول.
- په هره پنجشبه کې د علمی کنفرانسونو پرمخ بيول او د ستاژيرانو سره په مختلفو څانگو د درسونو پرمخ بيول.
- د مجهز مشترک لابراتوار Eleza-PCR د اکادمی په روغتون او عامی روغتيا وزارت کې افتتاح چې د پرمختللی ماشينونو د

۱ - مجله اردو دريم گڼه ۱۳۸۷ هجری شمسی کال او ۲۰۰۸ ميلادی کال ۴۴مخ.

ریسرج لپاره د ایدز او زیړی دولونو (HCV, HBS, HIV) د عامی روغتیا په مرسته د پولی کلنیک په چوکات کې.

- ☜ په ټولو څانګو په خاصه توګه د راجستریشن او د کلنیک آمریت کې کمپیوټری مکمل د Databese ایجاد چې د صحی مرستی او احصایوی ټول ارقام بنئی.
- ☜ د اکسریز دیجیتل ماشینونو نصب او د سراپا ناروغانو لپاره د التراسوند څانګی ایجادول.
- ☜ د غوږ او ستونی په څانګه کې د اوتوګرام ماشین نصبول.
- ☜ په هره څانګه کې د تشخیصی وسایلو نصبول.
- ☜ د وینی په بانک کې د مدرن ماشین آلات نصبول، د وینی د ساتنی په موخه کافی مواد تهیه کول او د وینی ( HCV, HBS, HIV) ټول لابراتواری معاینات سرته رسول او د ملی اردو لیری قطعاتو ته د هغه لیږل.

## پنځم څپرکی

## د ملکی مدافعی عمومی ریاست روغتیایی څانگه

کله چې په افغانستان کې جنگ زور واخیست نونه یوازی انسانان تر ډیری سختی ضربی لاندې راغلل بلکې د هېواد مادی او معنوی شتمنۍ هم تر ډیری ناوړی حملی راغلی او فابریکی، کارخانی، فارمونه او نور له نابودۍ سره مخامخ شول.

د پورتنیو زیرمو د خوندی ساتلو په موخه د وخت دولت د ۱۳۶۰ کال په وروستیو کې تصمیم ونیو چې د افغانستان د ملی دفاع وزارت په چوکاټ کې د ملکی مدافعی عمومی ریاست تشکیل منځ ته راوړی. دغه ریاست دهېواد د تدافعی قدرت د پیاوړتیا په موخه منځ ته راغی چې بنسټیز اهداف یې عبارت وو له – په مسلحانه ډول د خلکو او تولیدی موسسو، زراعتی فارمونو او د کلو څخه دفاع او په محلاتو کې د دولتی حاکمیت ټینگول وو. په عین وخت کې ملکی مدافعه دنده درلودله ترڅو چې د حیواناتو، نباتاتو، ارتزاقی موادو، د اوبو منابعو او د اوبو رسولو شبکو د خوندی ساتلو په خاطر لازمی لاری چاری وسنجوی. د ملکی مدافعی بشری قواوی او وسایل د پورتنیو دندو د اجرا په خاطر او په مصیبت رسیدلو مناطقو او مرکزونو کې د نجات او رغونی چاری پرمخ بیولو کې مهارت ولری. په عین حال کې ملکی مدافعی ته اړین دی چې د دښمن ضرر رسوونکی وسایلو څخه د محافظی چاری دهېواد ټولو خلکو ته زده کړه ورکړی. او د خلکو په خاصه توگه د تولیدی موسسو او زراعتی فارمونو کارگرانو د روحی معنوی وضعی او د مورال د ارتقا (اوچتیا) په خاطر وسیع تبلیغی او ترویجی فعالیت وکړی.

باید په یاد ولرو چې د ملکی مدافعی اساسی، بنسټیزه او ډیره مهمه وظیفه د خلکو تحفظ دی، دا دنده په دې علت اساسی شمیرل کیږی چې دولت د انسان مواظبت او مراقبت ته په ځانگړی توگه تل پاملرنه لری.

دهېواد د خلکو، حیواناتو او نباتاتو مؤثر حفاظت د ملکی مدافعی اساسی دنده ده، چې د دغو چارو په پرمخ بیولو کې د کار استقراریت تامینیدل دی چې د ملی اقتصاد رشد باندې عمده نقش لری.

د پورتنیو ضرورتونو پر بنسټ په کال ۱۳۶۱ کې د حکومت تصمیم تحقق وموند او د مختلفو څانگو اړتیاو پر بنسټ د ملکی مدافعی عمومی ریاست په جوړښت کې د نورو څانگو په څنگ کې د «د روغتیا او وترنری مدیریت» تشکیل هم منځ ته راغی.

د ۱۳۶۱ کال د لړم په میاشت کې زه (ډگرمن عبدالحی مومنی) د ملی دفاع وزارت د لوژستیک عمومی ریاست د تفتیش د عمومی مدیریت څخه د ملکی مدافعی د روغتیا او وترنری مدیریت د مدیر په توگه وټاکل شوم.

د ملکی مدافعی ریاست چې د ملی دفاع په چوکاټ کې منځ ته راغی نو اصلی کار یې د هېواد په فاربریکو، کارخانو او زراعتی فارمونو کې وو چې له یوی خوا دغه موسسی وکړای شی په مسقلانه ډول د ځان څخه دفاع وکړی د تولیدی موادو اندازه خپل نورم وساتی او په عین وخت کې مسلح قوتونه د هېواد د ساتنی چاری پرمخ بوزی.

د ملکی مدافعی موسسه د افغانستان په تاریخ کې د لومړی ځل له پاره منځ ته راغله. په دې توگه د دغی موسسی د اهدافو د پرمخ بیولو په کار کې باید د مسلحو قواو (ملی دفاع وزارت) تکړه او باتجربه کادرونه جذب شوی وای چې همداسی هم وشوه.

سره د دی چې د روغتیا او وترنری مدیریت تشکیل پراخ ؤ خو ما تر وروستی یعنی د ۱۳۶۴ کال لیندی میاشتی پوری په یوازی توگه کارونه پرمخ بوتلل.

په کارخانو، فابریکو، زراعتی فارمونو او د معارف په لیسو کې د روغتیایي همکارانو جذب د پنځو تر اتو فیصده ټولو کارمندانو، کارگرانو او متعلمینو څخه صورت نیوه، د دوی اساسی دنده عبارت له د زخمیانو، مصیبت رسیدلو لټول، نجات ورکول، طبی لومړنی مرستی رسول او د هغو د انتقال او تخلیی کول روغتیایي کلینکونو ته وو.

په دې صورت اړین و چې ټولو تاسیساتو ته څو څو ځلی سفرونه سرته ورسیږی د روغتیایي واحدونو تشکیل جوړ او د زده کړی پروگرامونه یې ترتیب او هغو تاسیساتو کې چې کلنیک وجود نه درلود نوی کلنیک جوړ

او ټول کلنيکونه د طبي تجهيزاتو له کبله اکمال شي او همدارنګه روغتيايي کلنيکونه د نږدې روغتونونو سره د مرستې پروتوکولونه امضا شي ترڅو د تاسيساتو ټول ناروغان او زخميان ومني او لازمې مرستې ورسره وکړي.

د مسلکي تجربې د لا ارتقا په خاطر په کال ۱۳۶۲-۱۲۶۳ کې درې مياشتنۍ د سوق او اداري عالي کورس مې په ماسکو کې واخيست.

د روغتيايي همکارانو د نظرې د زده کړې په څنګ کې عملي درسونو ته ډېر ارزښت ورکول کيده او څو څو ځلې تطبيقاتونه يې اجرا کول. دوی ديرې ښې تجربې لاس ته راوړې چې نه يوازې د خپلې موسسې مصيبت ځپلو سره مرستې کولې، بلکې په خپل استوګنځې يعنې کلو او بانډو کې هم د زخميانو او سوزول شويو سره په زړه پورې مرستې کړې دي.

د تشکيل پر اساس روغتيايي همکارانو پوستې د ۳-۵ کسو څخه جوړې شوي چې په مختلفو برخو کې د ضرورت پر اساس منځ ته راغلي او د لومړنې روغتيايي مرستې چانتې (روغتيايي چانتې) په مخصوص ځای کې ځړول شوې وو.

د ملکي مدافعې ټول مديريتونه پخپلو دندو کې ډېر بريالي وو خو کله چې د شوروي اتحاد سياست تغيير ومونډ دغه موسسه هم کورنيو چارو وزارت ته د دفاع خودی په نامه يوه رياست ته وسپارله شوه چې ورو ورو له منځه ولاړه.

خو کله دغه رياست پخپل حال پاتې شوی وای دهېواد وروستيو جنګونو کې به يې ډېر ستر کارونه په خاصه توګه طب، انجينرۍ (ماين پاکۍ) د موسسو څخه په دفاع کې سرته رسولي وای.

بايد يادونه وشي چې يو عنوان کتاب مې د «خدمات صحيه مدافعه ملکي جمهوري دموکراتيک افغانستان» په نوم په ۱۴۵ مخونو او څوارلسو څپرکيو کې تاليف او د ملی دفاع وزارت په مطبعه کې چاپ کړ.

دا کتاب په ډېره ساده دری ژبه ليکل شوی چې اکثره خلک او حتی کورنيو کې هم ورڅخه ډېره استفاده کيدلای شي.

مخکې تردې چې ملکي مدافعې رياست داخلي وزارت ته تسليم شي زه د ضرورت پر اساس په کال ۱۳۶۴ کې د نظامي طب پوهنځي چې د کابل د طب انستيتوت پورې تړاو درلود، د استاد په توګه وټاکل شوم.

د دې د پاره چې د روغتیا او وترنری مدیریت په هکله معلومات حاصل شی دا دی په شماتیک ډول د البوم په توگه د هغه وظایف، جوړښت (تشکیلات) او داسی نور مسایل وړاندی کیږی.

**هدف:**

د روغتیایی واحدونو اماده کول (زده کړه)، د حیواناتو، نباتاتو او د هغو وسایل محافظه کول، د روغتیایی چارو او حیواناتو او نباتاتو د حفاظت په تامینولو کې هغوی د امادگی په وضعیت ساتل، د ساری ناروغیو د منځ ته راتگ څخه مخنیوی، د اوسیدونکي د کار قابلیت په بیړه سره احیا کول، د کارگرانو او د هغو کورنیو، کارمندانو، دهقانانو او دهېواد خلکو ته روغتیایی مرستی رسول، روغتیايي تطهیر سرته رسول، او د څښلو اوبو د منابعو، غذايي موادو، واښه (علیق) د کیمیاوی او باکترلوژیکی موادو د تاثیراتو کنترولول.

## I- د ملکی مدافعی د روغتیایی چارو دندی

| د صلحی په وخت کې | د احضاراتۍو په وخت کې (د دښمن د حملی خطر) | د دښمن د حملی او د هغه څخه وروسته (کله چې د ضایعاتو مراکز منځ ته راځي) |
|---|---|---|
| ۱- د سوق او اداری ارګانونو منځ ته راوړل او احضارول.<br>۲- معالجوی او وقایوی تدابیرو نیول.<br>۳- د اهالیو روغتیایی تامیناتو پلان ګذاری.<br>۴- د روغتیایی مرتبه واحدونو ښوونه او روزنه او د هغو اماده کول دندو ته.<br>۵- دهېواد ټول خلک آماده کول د لومړنی روغتیایی مرستی رسول خپل ځان او متقابل ته.<br>۶- خلکو ته د انفرادی تحفظ لپاره د طبی وسایلو تامینول او د هغو څخه په عملی توګه استفاده کول.<br>۷- د طبی لوازمو او نورو ضروری وسایلو په واسطه د روغتیایی موسساتو تجهیزول.<br>۸- د خلکو روحی مورال ته ارتقا ورکول.<br>۹- د جګړې لپاره د بشری قواو او وسایلو امادګی نیول.<br>۱۰- د درملو ذخیری، طبی سامان او لوازم او وقایوی موادو د دښمن د عصری وسلو د تخریب څخه ساتنه او محافظه. | ۱- د روغتیایی مرتبه واحدونو او سوق او اداری ارګانونو د اماده باش په حالت کې ساتل.<br>۲- د ټولو وسایلو، درمل او مالزمی تحفظ د کیمیاوی او باکترلوژیکی موادو له تاثیراتو څخه.<br>۳- د ساری ناروغیو د وقایی او ضد په موخه کومپلکسی تدابیرو نیول.<br>۴- د ضایعاتو له مراکزو څخه لیری د روغتیایی موسساتو تاسیس.<br>۵- د روغتیایی تدابیرو پلانونه تدقیقول.<br>۶- د مصیبت رسیدلو د تخلیی او درملنی لپاره تامینات.<br>۷- د مرتبه واحدونو د وظایفو توضیح او د هغو د وظایفو لپاره تقسیمول. | ۱- د منځ ته راغلی وضعیت ارزیابی او قیمت ورکول.<br>۲- د روغتیایی کشف ترتیب او تنظیم.<br>۳- د ضایعاتو مراکزو ته د واحدونو د انتقال ترتیب او تظیم.<br>۴- د مرتبه واحدونو او صحی موسساتو د طبی کومکونو د تطبیق لپاره د هغو فعالیت ترتیب او تنظیم.<br>۵- د آسیب رسیدلو د تخلیی ترتیب او تنظیم.<br>۶- د کیمیاوی او بیولوژیکی موادو د مسمومیت څخه د غذایی موادو او اوبو کنترول.<br>۷- د تخریب شوی محلاتو او د حرکت په خط السیر کې د اپیدیمی ضد اقداماتو نیول.<br>۸- د کیمیاوی او بیولوژیکی موادو له تاثیر څخه د خلکو، ناروغانو، طبی موسسو، مرتبه واحدونو د محافظوی تدابیرو اتخاذول. |

**نوټ:**

د قواو احضاراتو ته راتگ ساعتونه:

- ☜ د روغتیایی چارو قرارگاوی د ۲-۴ ساعتونو په موده کې.
- ☜ د روغتونو د اداری بیز د ۱۲ ساعتونه په موده کې.
- ☜ د روغتیایی مرتبه واحدونو عالی احضاراتو لپاره د ۶-۸ ساعتونو په موده کې.
- ☜ د اپیدیمولوژی او روغتیایی استیشنونو او لابراتواری کنترول لپاره ۳-۴ ساعتو په موده کې.
- ☜ د روغتیایی طبی لوازمو او درملو تحفظ په ۱۲ ساعتونو کې.

## II- د ملکی مدافعی د روغتیایی او وترنری مدیریت جوړښت



## III- د ملکی مدافعی صحی واحدونو تشکیل او امکانات

۱- روغتیایی پوسته: تشکیل ۳-۴ تنه، تجهیزات- صحی چانته، صحی تسکره، دکش تسمه، د کیمیا ضد انفرادی پاکت، درملتونکه، گاز ماسکه.

امکانات: په یو ساعت کې د لسو آسیب رسیدلو ته لومړنی مرستو رسول.

۲- روغتیایی همکاران: ۲۴ تنه، تجهیزات- صحی چانته، صحی تسکره، دکش تسمه، د کیمیا ضد انفرادی پاکت، درملتونکه، گاز ماسکه.

امکانات: په یو ساعت کې پنځوسو آسیب رسیدلو ته لومړنی طبی مرستی رسول.

۳- د روغتیایی همکارانو مفرزه: ۱۲۵ تنه ټول پاسنی تجهیزات.

امکانات: په یو ساعت کې د صحی همکارانو په پرتله پنځه برابره لومړنی طبی مرستی رسول.

۴- د لومړنی طبی مرستو مفرزه: تشکیل ۱۴۶ تنه، تجهیزات- قبول او تصنیف څانگه، تخلیی څانگه، صحی همکارانو څانگه، تهطیر څانگه، تجرید څانگه، بستر څانگه، درملتون، لابراتوار، مادی او تخنیکی څانگه.

امکانات: په ۲۴ ساعتو کې لومړنی داکتری مرستی د ۱۰۰۰ تنو آسیب رسیدلو لپاره.

۵- تخصصی روغتیایي بریگاد: تشکیل ۵ تنه- د هغه دنده لازمی مشوری ورکول دوکتورانو، طبی تخصصی مرستی او روغتونونو ته.

۶- تخصصی روغتیایی مفرزه: تشکیل ۴۲ تنه- پورتنی دندی لری.

۷- گرځنده اپیدیمکی ضد مفرزه: تشکیل ۶۵ تنه.

امکانات: په لسو ساعتونو کې په هغه ساحه کې چې ۲۰-۲۵ زره نفوس ولری ضد اپیدیمکی اقداماتو اجرا، همدارنگه د ۱۴۴۰-۲۱۶۰ مصابینو وینځل، د ۲۱۰-۴۲۰ لباس واحدونو دیزانفکشن او په ۲۴ ساعتو کې د محیط څخه ۳۰ نمونی اخستل.

٨- د ساری ناروغیو ضد تخصصی بریګاد: تشکیل یې ٣٠ تنه. ځنی اقدامات اجرا کوی چې د کولرا، کوی او نور آسیبونو خنثی کول دی همدارنګه د ساری ناروغیو د عامل تثبیتول دی.

امکانات: په یوه شپه او ورځ کې ٢٥ نمونی تجزیه او تحلیلوی او په پنځه شپو ورځو کې ۴۵ نمونی ارزیابی کوی.

٩- ګرځنده ساری روغتون: تشکیل ١٣٨ تنه. یو لړ تشخیصی او معالجوی څانګی لری.

امکانات: په یوه میاشت کې ٢٠٠ ساری ناروغان تداوی کوی. په خطرناکه ساری منطقه کې ١٠٠ تنه مصاب قبلولای شی.

١٠- اپیدیمولوژی کشف ګروپ: تشکیل ٣ تنه. تجهیزات یې په کامپلټ کې د نمونی د اخستلو لپاره لوازم.

امکانات: په یوه ساعت کې کولای شی دوه کیلو متره مربع ساحه تدقیق کړی او د دی ناحیې څخه لس نمونی واخلی.

١١- د روغتیایی ترانسپورت مفرزه: تشکیل ١٩٠-٢٢۶تنه. تجهیزات-٩٠ عراده موتر.

امکانات: په یو سفر کې کولای شی چې ١٠٠٠ تنه آسیب رسیدل انتقال کړی.

١٢- ترانسپورتی قطار: تشکیل ۶١-٧٣. تجهیزات ٢۴-٣٠ عراده موتر.

امکانات: په یو ځلی کولای شی ٣٥٠ تنه آسیب رسیدل انتقال کړی.

١٣- روغتیایی هوایی کنډک: ١٠ طیاری چې مختلف مارکونه لری او آسیب رسیدلو ناروغان اړوندو مراکزو ته تخلیه کوی.

**IV- د معالجوی او تخلیوی د تامینولو بنسټیز پرنسیبونه**

**I-** په دوو مرحلو کې د طبی تخلیی قدمی موجودیت:

- په لومړی مرحله کې یوازی لومړنی طبی مرستی، د دوکتوری نه مخکی او د دوکتوری مرستو اجرا کول – دغه مرستی د صحی همکارانو، د صحی همکارانو مفرزه، د لومړنی طبی مرستی مفرزه، روغتونونه او هغه روغتیایی موسسی چې د آسیب لیدلو منطقو کې روغی پاتی شویدی اجرا کیږی.

- په دویمه مرحله کې طبی تخصصی مرستی ترسره کیږی چې په روغتونونو کې اجرا کیږی.

**II-** دریمه مرحله یې روغتیایی تخلیوی قدمی. دری ډوله طبی مرستی سرته رسیږي:

- لومړنی روغتیایی مرستی.
- لومړنی دوکتوری مرستی.
- تخصصی مرستی.

**III-** هر ډول روغتیایی مرستی باید په معیین وخت او معیین حجم سره اجرا شی. مثلاً لومړنی طبی مرستی د ضایعاتو په مرکزونو کې د لسو ساعتونو څخه وروسته اجرا نه شی. دوکتوری مرستی د ۲۴ ساعتو څخه ناوخته صورت و نه مومی او تخصصی طبی مرستی د ۲-۳ ورځو څخه په تاخیر کې صورت و نه مومي: یعنی لومړنی طبی مرستی په لسو ساعتو، دوکتوری په ۲۴ ساعتو او تخصصی طبی مرستی په ۲-۳ ورځو کې تطبیق شی.

**IV-** د هری مرحلی دندی باید معیین وی او د هغه مراعاتول په بعدی مرحلو کې- په لومړنی طبی مرستی، دوکتوری او تخصصی کې هر یو یې باید خپل دندی د صلاحیت په حدودو کې سرته ورسوی.

## ۷- د ملی اقتصاد په صحی مرکزونو او صحی معالجوی موسساتو کې د روغتیایی عاجلی مرستی ترتیب او تنظیم

| د طبی مرستو ډولونه او د تطبیق ځایونه | د عاجلو طبی مرستو د تطبیق اساسی پرنسیپونه |
|---|---|
| ۱- لومړنی طبی مرستی : لومړنی طبی مرستی د حادثی د منځ ته راتلو په محل کې صورت مومی.<br>تجهیزات: د صحی چانته، تسکره، میزابی.<br>د لومړنی طبی مرستو حجم:<br>پخپله د ځان سره مرسته، متقابله مرسته او د صحی همکار په موجودیت کې د مؤقتی خونریزی توقف، د اسفکسی له منځه وړل، د کسرونو تثبیتول د تختو یا میزابو په واسطه، د ریوی قلبی مجددی احیا مرستی (مصنوعی تنفس او د زړه تړلی مساژ)، د پانسمان ایښودل. | ۱- لومړنی طبی مرستی په جرحه (زخم)، د هډوکو کسر (مات شوی)، ترضیض (ضربی)، تسمم، د زړه او تنفس توقف کې اجرا کیږی چې دا مرستی کیدای شی پخپله شخص یا متقابل لوری او یا صحی همکار له لوری عملی شی. |
| ۲- د دوکتوری نه مخکی او دوکتوری روغتیایی مرستی د انتقال او تخلیی په لارو کې تر روغتیایی مرکز پوری.<br>تجهیزات: د روغتیا موتر، د صحیی چانته، طبی سامان و مالزمی، او ستندردی میزابی. | ۲- معالجوی او یا روغتیایی مرکزونو ته د عاجلی تخلیی او انتقال چاری تنظیمول. د تخلیی او انتقال په وخت د حیاتی مهمو اعضاو د درملو په تطبیق سره محافظه کول. لکه د زړه مقوی درمل، انلجزیکونه او داسی نور. |
| ۳- د موسسی په صحی مرکز کې لومړنی دوکتوری مرستی.<br>تجهیزات: د عاجلو درملو المارۍ، د مصنوعی تنفس دستگاه، د تراخیوتومی سامان، کاتدون، پونکسیون پلورا، نقل الدم درملنه او نور په مکمل ډول آماده اوسی. | ۳- په عاجله توگه لومړنی دوکتوری طبی مرستی د پانسمان، پیچکاری کولو او یا د دوکتور په کوټه کې د آسیب رسیدلو د بعدی تخلیی لپاره د هغه د قدرت لوړوالی لپاره تدابیر نیول کیږی.<br>د عاجلو طبی مرستو حجم: د حادو، تسمماتو او ترضیضاتو ناروغیو عاجلو مرستو تابلو سره توافق وکړی. طبیب باید خارجی خونریزی ته توقف ورکړی، انتوبیشن، تراخیوتومی، وریدی زرقی محلولاتو تطبیق، ترانسپورتی تثبیت باید اجرا کړای شی.<br>او همدارنگه د زړه- سږو بیارغونه او بعدی تخلیوی تدابیر په ښه صورت سره اجرا کړای شی. |

| د طبی مرستو ډولونه او د تطبیق ځایونه | د عاجلو طبی مرستو د تطبیق اساسی پرنسیبونه |
|---|---|
| ۴- د تخلیی په لاره کي تر معالجوی موسسو پوری د طبیب مرسته. | ۴- د مصددمینو، مجروحینو او ناروغانو عاجله تخلیه معالجوی موسسو ته په روغتیایی موتر (امبولانس) کي چې د درملو کامپلیت، هغه سامان آلات چې د تخصصی او اختصاصی مرستو لپاره په کار راځی مجهز وی، او په مختلفو وختونو کې د هغو څخه استفاده وکړای شی، تخلیه شی. |
| ۵- روغتیایی تخصصی او اختصاصی مرستی:<br>د روغتیایی تر ټولو لوړه مرسته ده چې د متخصصینو له خوا اجرا کیږی. د دغی مرستی رسولو په وخت کې د مخصوصو تجهیزاتو څخه کار اخستل کیږی. دغه مرستی د دویمی مرحلی د طبی مرستو د تطبیق پوری اړه لری چې د روغتونونو په بیز او روغتیایی موسسو کې اجرا کیږی. په اوسنی شرایطو کې چې د وګړو تخلیه صورت نه نیسی، نو د ولایاتو او زونونو او کابل ښار د روغتونونو څخه استفاده کیږی. | ۵- لاندې دندی لری:<br>- قبول، تصنیف او تخصصی مرستی رسول.<br>- د دوز یمتری کنترول اجرا کول او د اسیب رسیدلو ته روغتیایی تطهیر پرمخ بیول.<br>- د ساری ناروغانو معلومول، تجریدول او د هغه تخلیه کول انتانی روغتونونو ته. |

## VI- د نباتاتو او حیواناتو د حفاظتی تشکیلاتی روغتیایی اورګانونه



## د حیواناتو د تحفظ تیم

| د تیم قوماندان وترنر | | | |
|---|---|---|---|
| تامیناتو پوسته | د حیواناتو د تحفظ ځانګي | وترنری پوسته | د وترنری کشف پوسته |
| ۶ | ۳×۱۳ | ۳ | ۳ |
| قوماندان-۱ | قوماندان-۱ | قوماندان-۱ | قوماندان معاون وترنر |
| دوزیمتریست-۲ | د حیواناتو روزونکي-۱۱ | سنیتار-۲ | لابرانت-۱ |
| مادی معاون-۱ | دریور دوزیمتر-۱ | | سنیتار-۱ |
| دریور-۱ | دیزانفکشن دستگاه-۱ | | دریور-۱ |
| تراکتوریست-۱ | د اوبو تانک-۱ | | جیب-۱ |
| لاري-۱ | په لسو ساعتونو موده کي:<br>- واکسناسیون ۲۰۰-۳۰۰ راس حیوان<br>- وترنری تطهیر ۱۶۰-۲۰۰ راس<br>- د طویلی پاک کاری ۱۰۰۰۰ متر مکعبه<br>- د طویلو گرمتیک کول ۲۰۰۰-۴۰۰۰ متر مکعب | | تول پرسونل-۴ |
| تراکتور-۱ | | | جیب-۱ |
| پرسونل-۵۰ تنه | | | |
| تخنیک-۷واحد | | | |

| د حیواناتو د تحفظ مفرزه | |
|---|---|
| تامیناتو پوسته | د مفرزی قوماندان وترنر -۱ |
| ۶ | ۳×۸ |
| قوماندان-۱ | د حیواناتو د تحفظ ځانگی |
| کیمیادوزیمتر-۲ | قوماندان-۱ |
| د اکمالاتو معاون-۱ | پرسونل-۷ |
| لاري-۱ | د لسو ساعتو په موده کي:<br>- واکسین ۱۵۰۰ راس<br>- تداوی مرستي۴۰۰ راس<br>- د حیواناتو تطهیر ۱۶۰-۲۰۰ راس<br>- وترنری تصنیف ۵۰۰-۶۰۰ راس<br>- دیزانفکشن، دیگازاسیون او دیزاکیتواسیون ۴۰۰۰ متر مربع |
| جیب-۲ | |
| پرسونل-۳۲ | |
| تخنیک-۲ | |

| وترنری تخصصی گروپ | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| معاون | | د گروپ قوماندان | | | | تامیناتو پوسته |
| داکتر وترنر-۱ | | دوکتور وترنر-۱ | | | | ۵ |
| **پوستي** | | | | | | قوماندان-۱ |
| ابیدیمي | ۳ | اکسپرتیز | رادیو لوژي | توکسیکولوژي | باکترلوژي | دوزیمتریست-۲ |
| داکتر وترنر-۱ | پارازیتولوژي | روغتیایی وترنر | داکتر وترنر-۱ | داکتر وترنري-۱ | داکتر وترنر-۱ | دریور-۲ |
| لابرانت-۱ | داکتروترنر-۱ | داکتر وترنر-۱ | لابرانت-۱ | لابرانت-۱ | لابرانت-۱ | لاري-۱ |
| وترنر-۱ | لابرانت-۱ | لابرانت-۱ | دوزیمتریست-۱ | وترنر-۱ | سنیتار-۱ | جیب-۱ |
| | وترنر-۱ | وترنر-۱ | | | | |
| پرسونل-۲۵ | | | | | | |
| وسایط-۳ | | | | | | |
| په لسوساعتونو کې تشخیص او معاینه:<br>- باکترلوژی ۸-۱۰ نمونی<br>- رادیولوژی ۵۰ نمونی<br>- سمی ۱۰-۱۵ نمونی | | | | | | |

| **د نباتاتو د تحفظ تیم** | | |
|---|---|---|
| د نباتاتو پوسته | د نباتاتو د تحفظ ځانگی | د نباتی ناروغیو د کشف پوسته |
| ۶ | ۳×۱۴ | ۳ |
| قوماندان -۱ | قوماندان اگرونوم | پوستی قوماندان اگرونوم |
| دوزیمتریست -۱ | | لابرانت -۱ |
| معتمد -۱ | قوماندان -۱ | کارگر -۱ |
| دریور -۱ | میخانیک -۱ | دریور -۱ |
| حمال -۱ | دهقان -۱ | جیب -۱ |
| لاری -۱ | تراکتور -۱ | په لسو ساعتونو کې:<br>۳۰ نمونی اخلی<br>۲-۳ فارمونه کنترولولای شي |
| | ایروزول دستگاه -۱ | |
| پرسونل -۵۰ | | |
| تراکتور -۳ | | |
| ایروزول اله -۳ | | |
| لاری -۳ | | |
| په لسو ساعتونو کې:<br>- د دیپوگانو گرمتیک کول ۱۵۰۰-۲۰۰۰ متر مکعبه<br>- کیمیاوی تطهیر ۱۴۰ زراعتی هکتار<br>- دیپوگانو غیر سمی کول ۱۰۰۰۰ متر مکعبه | | |

| د نباتاتو د تخصصی تحفظ گروپ | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تامیناتو پوسته | قوماندان اگرونوم | | | | | مرستیال اگرونوم |
| ۵ | پوستی | | | | | |
| قوماندان -۱ | اگرو کیمیاوي | رادیولوژي | توکسیکولوژي | اکتومولوژي | فیتوتولوژي | |
| دوزیمتریست -۱ | ۳ | ۳ | ۳ | ۳ | ۶ | |
| تامیناتو معاون -۱ | قوماندان اگرونوم -۱ | قوماندان اگرونوم -۱ | قوماندان -۱ | قوماندان -۱ | قوماندان اگرونوم -۱ | |
| دریور -۱ | اگرونوم -۱ | اگرونوم -۱ | اگرونوم -۱ | لابرانت -۱ | اگرونوم -۱ | |
| لاری -۱ | لابرانت -۱ | لابرانت -۱ | لابرانت -۱ | تکنیشن -۳ | لابرانت -۱ | |
| جیپ -۱ | تکنیشن -۱ | تکنیشن -۱ | تکنیشن -۱ | | تکنیشن -۳ | |
| پرسونل -۲۵ | | | | | | |
| تخنیک -۲ | | | | | | |
| په لسو ساعتونو کې:<br>- د سمی موادو تشخیص او معاینه ۱۰ نمونی<br>- باکترلوژی ۱۰ نمونی<br>- ریاکتیف ۲۵ نمونی | | | | | | |

| د نباتاتو د تحفظ بریگاد | |
|---|---|
| تامیناتو پوسته | قوماندان |
| ۶ | اگرونومیت - معلم |
| قوماندان -۱ | د نباتاتو د تحفظ څانگی |
| مادی مرستیال -۱ | ۳×۸ |
| دریور -۱ | قوماندان اگرونومیت -۱ |
| تراکتوریست -۱ | پرسونل -۷ |
| دوزیمتریست -۱ | |
| لاری موتر -۱ | |
| پرسونل -۳۱ | |
| تخنیک -۵ واحده | |
| په لسو ساعتونو په مدت کې:<br>۱۰۰۰-۱۵۰۰ متر مکعبو د دیپوگانو گرمتیک کول<br>تر ۷۰ هکتاره څمکه کیمیاوی تطهیر | |

## VII- د حیواناتو پر عضویت ېباندی د کیمیاوی موادو تاثیر او د لومړنیو طبی مرستو تطبیقول

| کتنی | پسیکوشمیک | ساه لنډی | عمومی | جلدی | د اعصابو فلج | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷ | ۶ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ |
| | B-Z | فوسگین، دی فوسگین | اسید سینل | ایپریت، آزوت لرونکی ایپریت او لیوزیت | زرین، زمان تابون، ۷ گاز | سمی مواد |
| | د حیواناتو ټول اشکال متاژثر کوی (په انسان کې د تنفسی له لارې) | د سږو او پوستکی له لارې ټول حیوانات متاژثر کوي | د جلد او سږو له لارې د حیواناتو ټول اشکال متاژثر کوي | د پوستکی له لارې د حیواناتو ټول اشکال متضرر کوی | په عضویت کې د هغه د انتشار په صورت کې د سره کریواتو تخریب او د مرکزی عصبی سیستم تخریب منځ ته راوړي | د پورتنی موادو تخریبی تاثیر (مسمومیت) |
| | پر عصبی مرکزی سیستم تاثیر چې د هغه په اثر موقتی روحی تشوشات منځ ته راځي | د سږو او ودم، دعصبی سیستم تخریب (د واگوس عصب) تماکو ته علاقه | ساه لنډی، د وینی فشار لوړوالی، د حدقی توسع، تکی کار دی، صرع، د تنفسی مرکز فلج کیدل | مخفی دوریی ۱-۸ ساعتو نا آرامی، د پوستکی هغه برخی نیکروز چې مواد پری لویدلی وی او د عصبی مرکزی سیستم متاژثر کیدل | د قرنیی وچوالی، دهشت، ویره او انحطاط، د سږو تشنج، د زړه د ضربان سرعت، د وینی د فشار لوړوالی او صرع | د مسمومیت علایم |
| | غیر مقاوم | غیر مقاوم | لږ مقاوم | مقاوم | اوړی څو اونۍ ژمی یوه اونۍ | د موادو د مقاومت درجه |
| | | - ۵% د وینی معادل پلازما مایعات<br>- ۱۰% کلسیم کلوراید<br>- لوبلین<br>- اوکسیجن او داسی نور | - امیل نیتریت<br>- پروپیل نیتریت<br>- سودیم نایتریت انتی دوت | د ۱۰% یونیتول او ضد ایپریت پوماد انتی دوت | د اتروپین او K۶۵ انتی دوتونه | لومړنی طبی مرستی تطبیق |

## VIII- پر نباتاتو د کیمیاوی موادو تاثیر

| دی سیکانت ها Disicants | | دی فلویانت ها Difluants | | ادویه ضد گیاهان طفیلی Gerbecides | | | | مواد کیمیاوي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سودیم ارسیند | پنتاکلورفینول | بوتیفوس | فولکس (میرفوس) | پیکلورام | پرکوات (گراموکسان) | فلورینول | اسید کوکودیل | |
| پنبه او نور | پنبه او نور | پنبه، لبلبو او نور | پنبه او نور | لبلبو، انگور، پنبه، سابه | تخم لرونکی بوټی (حبوبات) | لبلبو، سابه، آفتاب پرست گل، تماکو، انگور، او تخم لرونکی ونی | ټول نباتات په خاصه توگه د وریجو دانی ډیری حساسی دي | مسمومیت (تخریب کوونکی تاثیر) |
| د پانو کوچنی کیدل او وچیدل | د پانو کوچنی کیدل او وچیدل | د پانو وچیدل او توئیدل | پانی خاکی رنگ نیسي | د پانو کوچنی کیدل او غیر منظم کیدل | د پانو ژر وچیدل، پانی ژیړیږي | د پانو عرض کمیدل، پانی غیر مستقیم کیږی او گل ژر صورت نه نیسی | پانی ډیر ژر وچیږی او توئیږي | د تخریب علایم (مسمومیت) |
| مقاوم | غیر مقاوم | غیر مقاوم | غیر مقاوم | مقاوم پر حبوباتو تاثیر کوي | غیر مقاوم | غیر مقاوم | په خاوره کی مقاومت ۲-۳ کاله (د وریجو لپاره) | د موادو د مقاومت درجه |
| ډیر قوی سمی دي | سمی دي | متوسط سمی دي | متوسط سمی دي | لږ سمی دی | قوی سمی دي | لږ سمی دي | سمی دي | د انسان او حیوان لپاره سمی والي |

## شېږم څپرکی

## د ۱۳۸۰ کال راهیسی د نظامی طبابت څرنګوالی

د طالبانو له ماتی څخه وروسته د نوی نظام د راتګ سره په ملی دفاع وزارت کې د تشکیلاتو له نظره بنسټیز بدلون راغی چې بالترتیب په ریاستونو کې او ملی اردو تشکیلاتو کې هم بدلون راغی چې د ملی اردو د روغتیایی چارو ریاست په تشکیل کې په کلی توګه بدلون راغی او نوی تشکیل یې په پښوو درید.

هغه څه چې د اردو په هکله وویل شی هغه دا چې بلوک، تولی، کندک، لوا او قول اردو تشکیل په نظر کې نیول شویدی چې په لوا کې د تامیناتو یو کندک موجود دی چې په هغه کې یو تولی صحی چارو پوری ارتباط لری.

قول اردوګانو ته څېرمه د زون (ساحوی) روغتونونه د ۱۰۰ بسترو په تشکیل کې په فعالیت بوخت دی، او په ګارنیزونونو کې صحی کلنیکونه فعالیت لری.

همدارنګه د کابل په ښار کې نظامی طبی علومو اکادمی موجوده ده چې د هغه په تشکیل کې بدلون راغلی او د بسترو تعداد یې ۶۰۰ ته رسیږی او دویم نمبر روغتون د ضمیموی روغتون په توګه طبی علومو اکادمی پوری تړاو لری.

د طبی علومو اکادمی روغتون او نور روغتونونه او صحی مرکزونه بیارغول شوی دی او د مدرن طبی تخنیک سره مجهز شوی دی چې په افغانستان کې ساری نه لری. همدارنګه په دې وروستیو کې د تیلی مدیسن سیستم چې د لېری څخه درملنه صورت مومی هم فعال شوی دی.

په طبی علومو اکادمی کې اوس د منځنی طب کورسونه او د اکمال تخصص پروګرام په بریالی سره مخ په وړاندی روان دی او له نیکه مرغه

په دې وروستيو کې (د ۱۳۸۷ کال د لړم د مياشتې) نظامی طبی پوهنځی وروسته د ځو کلونو ځنډ څخه بيرته په فعاليت شروع وکړ.

هغه څه چې د يادولو وړ دی هغه د صحی سربازانو (ميديک) روزنه ده چې په پخوا کلونو کې په فرقو کې داسی پرسونل روزل کيده، خو د نوی نظام د راتګ سره هغه سربازان چې دولسم ټولګی يې لوستلی وی د کابل نظامی تعليمی مرکز کې څو موده لمړنی دوره تيروی او بيا د طبی علومو په اکادمی کې تر روزنی لاندی نيول کيږی او د اړوندو قطعاتو د ضرورت په اساس تقسيميږی. د صحی سربازانو (ميديکانو) د ښی روزنی له پاره يو کتاب چې «طب عاجل تکتيکی» نوميږی په کال ۱۳۸۲ کې له چاپه راوتلی دی.

د قابليت بدنيه تعليماتنامه چې په کال ۱۳۶۲ کې د تطبيق لاندی نيول شوی وه په جنګی شرايطو کې ډيره ښه تعليماتنامه وه، خو وروسته و پتيل شوه چې د سولی په شرايطو باندی نوی تعليماتنامه جوړه شی چې په کال ۱۳۸۲ کې هم نوی تعليماتنامه له چاپه راووته. د دی تعليماتنامی سره جوخت بايد د ژنو (جينوا) څخه کود راغوښتل شوی وای داځکه کله چې ناروغی ثابته شی نو د کود نمبر کې د ناروغ د معاملی څرنګوالی (معاف، غير محارب، د وظيفی دوام) ښئی خو له بده مرغه دغه سند تر اوسه لاس ته نده راغلی. همدارنګه د تعليماتنامی د تدوين کميسيون د يو کلنيک تشکيل او د هغه تشخيصه سامان الاتو جدول هم د جوړولو وړانديزو شو چې د تجمع په مرکز کې په فعاليت شروع وکړی چې دا کار هم تر اوسه ندی شوی او شکمن ناروغان پولی کلنيک او يا د طبی علومو اکادمی روغتون ته راجع کيږی.

د ټپيانو او ناروغانو د لاښه او په ګړندی سره د تخليی په موخه د مسلحو قواو طبی علومو اکادمی روغتون ته څيرمه د الوتکو يو ميدان جوړ شوی دی.

**اخځلیک**


۱- اردو مجلی کالنی، ۱۳۵۲ کال لړم میاشت، مطبعه اردو.

۲- افغانستان در قرون وسطی، ۱۳۶۹، مطبعه دولتی.

۳- براَون، ادوارد، طب اسلامی، ۱۳۳۷، تهران.

۴- پارزادگاه، داکتر بهاوالدین، مکتب های سیاسی، ۱۳۴۴، تهران.

۵- پښتو آریانا دایرة المعارف، لومړی ټوک، ۱۳۲۹، دولتی مطبعه کابل.

۶- پښتو آریانا دایرة المعارف، دوهم ټوک، ۱۳۳۲، مطبعه ملی کابل.

۷- پښتو آریانا دایرة المعارف، دریم ټوک، ۱۳۳۷، مطبعه ملی کابل.

۸- پښتو آریانا دایرة المعارف، څلورم ټوک، ۱۳۴۴، مطبعه ملی کابل.

۹- پښتو آریانا دایرة المعارف، پنځم ټوک، ۱۳۵۴، مطبعه ملی کابل.

۱۰-پښتو آریانا دایرة المعارف، شپږم ټوک، ۱۳۵۵، مطبعه ملی کابل.

۱۱-پښتو آریانا دایرة المعارف، اووم ټوک، ۱۳۵۵، مطبعه ملی کابل.

۱۲-پلان گذاری، علمی اقتصادی ملی و جهات اساسی رشد اقتصادی ملی، اجتماعی، ۱۳۶۹ کابل.

۱۳-تاراسوا، سمینوا، اورگانزیشن و اقتصاد فارمسی، ۱۹۷۷، ماسکو.

۱۴-ترابی، پوهندوی دوکتور محمد انور، طب در گسترده تاریخ، ۱۳۸۵، هالیند.

۱۵-ترابی، پوهندوی دوکتور محمد انور، اندیشمندان و دانشمندان علوم طب، ۱۳۸۵، هرات.

۱۶-ترابی، دوکتور محمد انور و گروپ مولفین، اورگانیزاسیون و تکتیک خدمات صحیه، قسمت اول، ۱۳۶۷، مطبعه اردو.

۱۷-حبیبی، پوهاند عبدالحی، تاریخ مختصر افغانستان از زمان قدیم تا خروج چنگیز حدود ۶۰۰هـ، جلد اول، ۱۳۴۶، مطبعه دولتی کابل.

۱۸-حبیبی، پوهاند عبدالحی، پنجاه مقاله، ۱۳۶۲، مطبعه دولتی کابل.

۱۹-خیاط، داکتر محمد هیثم، د چاپیریال روغتیا د اسلام په میزان کې، پښتو ژباړه پوهندوی داکتر بشیر نورمل، نړیواله روغتیایی اداره، ۱۹۹۶، کابل.

۲۰-خیاط، داکتر محمد هیثم، د روغتیا فقه، روغتیایی اداره، ۱۹۹۷، کابل

۲۱-جلالی، علی احمد، مطالعه تاریخ افغانستان از نگاه عسکری ج.ا، ۱۳۴۳، مطبعه اردو کابل.

۲۲-داکتر سریل الکود، تاریخ پزشکی ایران، ۱۹۷۱، تهران.

۲۳-د افغانستان د علیه دولت اساسی نظام نامه، لړم ۱۴-۱۳۰۲، کابل.

۲۴-دفاع وزارت تشکیلاتو او سفربری ریاست کالنی، ۱۳۰۳-۱۳۱۹هـ، وزارت دفاع کابل.

۲۵-د خلکو وسله وال پوځ د طبی علومو اکادمی، ۱۳۵۸ کال کالنۍ، مطبعه اردو کابل.

۲۶-رسول، تورنجنرال عبدالروف، اردو مجله کالنی سلواغی میاشت، ۱۳۴۹، مطبعه اردو.

۲۷-ریاست عمومی پلان و پالیسي- گزارش وزارت صحت عامه از آغاز دوره مؤقت الی ۱۳۸۶.

۲۸-رفیع زاده، دوکتور محمود، دارو های جالینوسی، ۱۳۴۰، تهران.

۲۹-زاهدی، دوکتور شیر احمد، نقش موثر تربیه خودی در حیات مسلکی یک طبیب، ۱۳۶۹، مطبعه اردو.

۳۰-زومر د اسلام زانگو، ۲۸۰-۲۸۴ مخ.

۳۱-سالنامه مجله اردو، ۱۳۰۹-۱۳۵۲، مطبعه اردو.

۳۲-سالنامه کابل، ۱۳۱۱-۱۳۳۳، مطبعه دولتی.

۳۳-سباوون مجله، ۱۳۶۱، مطبعه دولتی.

۳۴-سوبمن، سرمحقق نصرالله و محقق فرهاد ظریفی، نطق های امیر امان الله خان، ۱۳۷۰، مطبعه دولتی.

۳۵-سالنامه، نظری به اردوی افغانستان در سال ۱۳۰۸- سال۱۳۴۹، مطبعه اردو.

۳۶-سیاووش، پوهندوی دوکتور عبدالرزاق، اورتوپیدی در افغانستان و جهان، ۲۰۰۶، کابل.

۳۷-سیستانی، محمد اعظم، سرزمین ماسه ها و حماسه ها، مطبعه دولتی.

۳۸-سرفریز، تنلر، وزیر مختار بریتانیه در کابل، ۱۹۴۱، طبع ۱۹۵۰ لندن.

۳۹-شرق، دوکتور محمد حسن، کرباس پوش های برهنه پا از ۱۳۱۰-۱۳۷۰ طبع سیا، پشاور.

۴۰-طوغار، دوقتور فواد اسمعیل، امراض چشم، ۱۳۷۱-۱۹۳۸، مطبعه عمومی کابل.

۴۱-علی محمد حسن العماری، فشرده شرح حال و آثار امام فخرالدین رازی، ۱۳۶۷.

۴۲-غبار، میر غلام محمد، افغانستان در مسیر تاریخ، ۱۳۴۶، مطبعه عمومی کابل.

۴۳-کریم، پوهنوال عبدالعلیم و گروپ مولفین، کتاب توبرکلوز، ۱۳۶۱، کابل.

۴۴-کتاب افغانستان امروز از ۱۳۰۴-۱۳۶۸، کابل.

۴۵-کابل مجله، ۴۳ کال ۸ گڼه، ۱۳۵۲ کابل.

۴۶-مثنوی مولوی، طبع ۱۲۸۲هـ.ق، پشاور.

۴۷-مجله اریانا، ۱۰-۱۱گڼه انجمن تاریخ، ۱۳۴۰، مطبعه دولتی کابل.

۴۸-مجله خراسان، سال ۲۷ – میزان، عقرب ۱۳۸۶، کابل.

۴۹-مجله ژوندون، ۱۳۵۹ شماره ۳۳-۳۴، کابل.

۵۰-مجله اردو، ماه ثور ۱۳۵۰، مطبعه اردو، ۱۳۶۱ کابل.

۵۱-مجله سباوون ۱۳۶۱.

۵۲-مجله سالنامه سال ۱۳۱۱.

۵۳-مجله اردو، شماره دلو ۱۳۳۵، مطبعه اردو.

۵۴-مجله اریانا، شماره ۱۳۷۶-۱۳۸۱ کابل.

۵۵-مجله آئینه عرفان، قوس-حوت،۱۳۱۶، مطبعه دولتی.

۵۶-مجله کار، شماره ۶-۷، ۱۳۶۹.

۵۷-مجله سالنامه کابل، جغرافیه اقتصادی افغانستان،۱۳۱۳.

۵۸-مجله جرگه، شماره میزان – عقرب، ۱۳۸۵.

۵۹-مجله طبی اردو، شماره سوم، ۱۳۸۵ مطبعه اردو.

۶۰-مجله صحت در افغانستان، شماره دوم، ۱۳۸۷.

۶۱-مجله طبی اردو، شماره دوم، ۱۳۸۷ مطبعه اردو.

۶۲-موفقیت های مردم افغانستان در ساختمان زندگی نوین، ۱۳۶۴.

۶۳-مسایل پلان گذاری علمی اقتصادی ملی، ۶۵- ۱۳۶۹.

۶۴-ماهیت و خصوصیات رشد انقلاب ثور، ۱۳۶۵.

۶۵-ملی نی چنکو تارا سووا، سیمینووا – اورگانزیشن فارمسی، ۱۹۷۲ ماسکو.

۶۶-مومنی، پوهاند عبدالحی، تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکامی آن در افغانستان، ۱۳۸۴ مطبعه آزادی.

۶۷-مومنی، عبدالحی، خدمات صحیه مدافعه ملکی جمهوری دموکراتیک افغانستان، ۱۳۶۶ مطبعه اردو.

۶۸-مومنی، دگروال عبدالحی، اکمالات صحی نظامی، ۱۳۶۷ مطبعه اردو.

۶۹-نړۍ وال رازقی، پوهنوال محمد صدیق، د فارمسی او طبابت د ودی او پراختیا لنډ تاریخ، ۱۳۷۸.

۷۰-نړۍ وال رازقی، پوهنوال محمد صدیق، د افغانستان پوځی تشکیلات، ۱۳۸۸ اردو مطبعه.

۷۱-نوروز، دګروال ارکانحرب محمد یحيٰ، ۱۳۴۹ اردو مجله کلنی، مطبعه اردو.

۷۲-نظام نامه های دولت امانی، ۱۳۰۲.

۷۳-وردګ، اکادمیسن پوهاند محمد موسی، جراحی حرب، ۱۳۶۷ مطبعه اریانا.

۷۴-و.ی کریکوف، اورګانزیشن اقتصادی فارمسی، ۱۹۷۴ ماسکو.

۷۵-وزارت صحت عامه، پروفایل صحی ولایتی افغانستان، ۱۱ جدی ۱۳۸۹.

۷۶-هادی، محمد نادر و مولفین، جراحی عمومی، ۱۳۶۴ مطبعه دولتی.

۷۷-یوسف، کتاب یوسفی، چاپ سنګی در هند، مارچ ۱۹۱۳.

**همدارنګه د لاندی اثارو څخه هم استفاده شوې ده:**

- د ابن سینا قانون، څلورم کتاب، شپږ فصل.
- الحاوی نهم کتاب.
- پروفایل صحی ولایتی افغانستان، وزارت صحت عامه ۱۱جدی ۱۳۸۹.
- ذخیره خوارزم شاهی، سید اسماعیل ګرګانی.
- افغانستان له ۱۵۰۴ تر نن ورځی پوری کتاب ۱۳۴۸.
- جرګی مجله ۲۵ ګڼه ۱۳۸۵.
- دولافوز، تاریخ هند.
- د وسله وال پوځ طبی علومو اکادمی اسناد.

**مرکی:**

- مرحوم محترم بریدجنرال دوکتور نور محمد خلمی.
- مرحوم محترم کاندید اکادمیسن پوهاند دوکتور عبدالرحیم خوشدل.
- محترم الحاج عبدالغنی خان د فارمسی چارو ریاست فنی مشاور.
- مرحوم محترم متقاعد ډگروال فیض محمد.

**ضمایم (نښلولی):**

**لومړی ضمیمه (نښلولی):**

په اردو کې د روغتیايي چارو مدیران، آمران او رئیسان.

۱- ش محمد آصف خان د طبیه مدیر او د نظامی روغتون مدیر ۱۳۰۶-۱۳۰۷هـ.ل

۲- ش محمد آصف خان د طبیه (صحيي) مدیر ۱۳۰۸-۱۳۰۹هـ.ل

۳- ش امیر محمد خان د طبیه او بیطاریه مدیر ۱۳۱۰-۱۳۱۲ هـ.ل

۴- ش عبدالباقی خان د طبیه او بیطاریه مدیر ۱۳۱۲-۱۳۱۳ هـ.ل

۵- ح غندمشر ثانی حسین علی خان د طبیه او بیطاریه مدیر ۱۳۱۴-۱۳۱۶ هـ.ل

۶- ح غندمشر ثانی محمد سعید خان د طبیه او بیطاریه مدیر ۱۳۱۷-۱۳۲۱ هـ.ل

۷- کندکمشر عبدالواحد خان د صحیی رئیس ۱۳۲۲-۱۳۳۹ هـ.ل

نوت: د ترکی په آثارو کې رئیس معرفی شوی دی.

۸- ډگروال داکتر محمد قاسم عسکریار د صحی خدماتو آمر ۱۳۴۰-۱۳۵۲ هـ.ل

۹- بریدجنرال دوکتور نورمحمد خلمی د روغتیایی چارو آمر ۱۳۵۲-۱۳۵۷ هـ.ل

۱۰- جگړن عبدالحی مؤمنی د روغتیایی چارو آمر د غویی ۱۴مه ۱۳۵۷-۱۵سلواغی۱۳۵۸ هـ.ل

۱۱- ځګړن دوکتور رحمت الله همدرد د روغتیایی چارو آمر ۱۳۵۸-۱۳۶۴ هـ.ل

۱۲- ډګروال دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل د روغتیایی چارو آمر او وروسته د روغتیایی چارو رئیس ۱۳۶۴-۱۳۷۱ هـ.ل

۱۳- ډګروال دوکتور عبدالواسع رنجبر روغتیایی چارو رئیس ۱۳۷۱-۱۳۷۶ هـ.ل

۱۴- ملا عبدالنافع
ملا سید عبدالمالک } روغتیایی چارو رئیسان ۱۳۷۶-۱۳۸۰ هـ.ل
ملا محمد اسمعیل

۱۵- دوکتور فیروزالدین فیروز روغتیایی چارو رئیس ۱۳۸۰ هـ.ل

۱۶- ډګروال دوکتور محمد قاسم رسولی روغتیایی چارو رئیس ۱۳۸۰-۱۳۸۲ هـ.ل

۱۷- تورنجنرال پوهنمل احمد ضیأ یفتلی روغتیایی چارو رئیس ۱۳۸۲- ۱۳۸۹ هـ.ل.

۱۸- تورنجنرال دوکتور الحاج عبدالقیوم طوطاخیل د ستردرستیز روغتیا رئیس ۱۳۸۹-۱۳۹۰.

۱۹- اکادمیسن پوهاند دوکتور محمد موسی وردګ د ستردرستیز صحی چارو رئیس ۱۳۹۰ – ۱۳۹۳.

۲۰- تورنجنرال دوکتور الحاج عبدالقیوم طوطاخیل د دفاع وزارت صحيې رئیس ۱۳۹۰ – ۱۳۹۳.

۲۱- جنرال پوهندوی دوکتور عبدالرازق سیاووش د ستر درستیز د صحيې رئیس ۱۳۹۳- دوام لری.

۲۲- بریدجنرال پوهنوال دوکتور غلام بهاء الدین نجرابی د دفاع وزارت صحی رئیس ۱۳۹۳ – دوام لری.

**دویمه ضمیمه (نښلولي):**

د کتابونو او آثارو فهرست چې د نظامی طبابت کادرونو له خوا لیکل شوی دی.


۱- کتاب عاجل تکتیکی، بریدجنرال دوکتور سید حفیظ ظهور و مولفین ۱۳۸۲ مطبعه اردو.

۲- کتاب اورگانیزاسیون تکتیک خدمات صحیه قسمت اول، دوکتور ترابی و مولفین ۱۳۶۷ مطبعه اردو.

۳- کتاب طب در گستردۀ تاریخ، پوهندوی دوکتور محمد انور ترابی ۱۳۸۵ هالیند.

۴- کتاب اندیشمندان و دانشمندان علوم طب، پوهندوی دوکتور محمد انور ترابی ۱۳۸۵ هرات.

۵- کتاب رهنمای داکتر قطعه، دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل و مولفین، ۱۳۶۳ مطبعه اردو.

۶- کتاب تعلیمات نامه قابلیت بدینه اردو، دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل و مولفین، ۱۳۶۲ مطبعه اردو.

۷- کتاب اسناد واحد طبی، دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل ۱۳۶۲ مطبعه اردو.

۸- کتاب جراحی حرب و پرنسیب های معالجوی مجروحین، دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل ۱۳۸۵ مطبعه اردو.

۹- کتاب تعلیمات حقوق معلولین و معیوبین، دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل ۱۳۶۲ مطبعه اردو.

۱۰- کتاب دستور احصائیه طبی، دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل و مولفین ۱۳۶۴ مطبعه اردو.

۱۱- کتاب تاریخچه اورتوپیدی در افغانستان و جهان، دوکتور سیاووش ۲۰۰۶م پشاور.

۱۲- کتاب نقش موثر تربیه خودی در حیات مسلکی یک طبیب، دگروال دوکتور شیر احمد زاهدی ۱۳۶۹ مطبعه اردو.

۱۳- کتاب امراض عقلی و عصبی، دوکتور شیر احمد زاهدی و مولفین ۱۳۶۶ مطبعه اردو.

۱۴- کتاب امراض عصبی عقلی، دگروال دوکتور شیر احمد زاهدی ۱۳۷۰ مطبعه اردو.

۱۵- کتاب جراحی حرب، اکادمیسن دوکتور عالی طب جنرال محمد موسی وردگ ۱۳۶۷ مطبعه اردو.

۱۶- کتاب شوک تراوماتیک، اکادمیسن دوکتور عالی طب محمد موسيٰ وردگ ۱۳۶۸ مطبعه دولتی.

۱۷- کتاب اورتوپیدی و تراوماتولوژی، اکادمیسن دوکتور عالی طب محمد موسيٰ وردگ ۲۰۰۱م پشاور.

۱۸- کتاب تراوماتولوژی حربی و اورتوپیدی، اکادمیسن محمد موسيٰ وردگ و مولفین ۱۳۶۷ مطبعه اردو.

۱۹- کتاب تراوماتولوژی انفلاقی و سایر اسباب امپوتیشن اطراف، اکادمیسن محمد موسيٰ وردگ و دوکتور محمد رحمن ۱۳۶۹ مطبعه اردو.

۲۰- کتاب نقش اوستیوسنتیز خارج محراقی در اورتوپیدی و تراوماتولوژی معاصر، دوکتور محمد موسيٰ وردگ و دوکتور عبدالرزاق سیاووش ۱۳۶۸ مطبعه اردو.

۲۱- کتاب د پزی او جیبونو، ستونی، حنجری او غوږو ناروغی، دوکتور لعل پادشاه ژوندون ۱۳۶۶ مطبعه اردو.

۲۲- کتاب د غوږ، ستونی او پزی ناروغی، پوهنمل دوکتور غلام سخی سلیمی ۱۳۷۹ پشاور.

۲۳- کتاب امبریولوژی، اناتومی، فزیولوژی و میتود های معاینات گوش – گلو، دوکتور غلام سخی سلیمی و مولفین ۱۳۶۷ مطبعه اردو.

۲۴- کتاب احصائیه طبی نظامی، پوهنیار دوکتور عبدالمتین صافی و دوکتور عبدالرحمن غفوری ۱۳۶۶ مطبعه اردو.

۲۵- کتاب د بولی او تناسلی غړو اورنی (ناریه) ټپونه، دوکتور روح الله عمرزوی ۱۳۶۵ مطبعه اردو.

۲۶- کتاب امراض چشم، دوکتور محمد نادر لعل زوی ۱۳۶۷ مطبعه اردو.

۲۷- کتاب د فزیوتراپی اساسات، دوکتور نظر محمد وردگ ۱۳۶۹ مطبعه اردو.

۲۸- کتاب جراحی عصبی، دوکتور گل محمد سوری ۱۳۶۵ مطبعه اردو.

۲۹- کتاب منوال تراپی، دوکتور گل محمد سوری و مولفین ۱۳۶۹ مطبعه اردو.

۳۰- کتاب جراحی حرب، دوکتور سید احمد جهش ۱۳۸۲ جرمنی.

۳۱- کتاب امراض سیستم تنفسی، دوکتور عبدالفتاح خسروی ۱۳۶۸ مطبعه اردو.

۳۲- کتاب تصنیف نمونه های تشخیصی و اوصاف برازنده امراض داخله، عقلی، عصبی و انتانی، دوکتور عبدالفتاح خسروی ۱۳۶۵ مطبعه اردو.

۳۳- کتاب طب اساسی هوایی، دوکتور عبدالقدیر مهمند حلیمزی ۱۳۶۹ مطبعه اردو.

۳۴- کتاب جروح ناریه و ترضیضات گوش، گلو و بینی، دوکتور برات علی رضایی و مولفین ۱۳۶۶ مطبعه اردو.

۳۵- کتاب پتالوژی جهاز بصری، دوکتور غوث الدین فایق ۱۳۶۹ مطبعه اردو.

۳۶- کتاب د عملی جراحی بنسټونه، پوهنیار دوکتور نصیر احمد ځدران ۱۳۸۷ د افغان کلتوری ټولنو جرگه.

۳۷- کتاب سالنامه های اکادمی علوم طبی از سال ۱۳۵۷ الی سال ۱۳۷۱ مطبعه اردو.

۳۸- کتاب مجموعه کنفرانس های علمی در مورد تکتیک و اورگانیزیشن خدمات صحیه، داخله، جراحی و اورتوپیدی ۱۳۶۲ مطبعه اردو.

۳۹- کتاب رهنمای روغتون های قوای مسلح، دوکتور میرا جان ناصر ۱۳۵۷ مطبعه اردو.

۴۰- کتاب خدمات صحیه مدافعه ملکی جمهوری افغانستان، ډگروال عبدالحی مؤمنی ۱۳۶۶ مطبعه اردو.

۴۱- کتاب اکمالات صحی نظامی، ډگروال عبدالحی مؤمنی ۱۳۶۶ مطبعه اردو.

۴۲- کتاب رساله مدت استعمال و معیاد ترمیم عینیات طبی، ډگروال عبدالحی مؤمنی ۱۳۶۷ مطبعه اردو.

۴۳- کتاب رهنمای دواخانه های قوای مسلح، پوهنوال دگروال عبدالحی مؤمنی ۱۳۶۹ مطبعه اردو.

۴۴- کتاب محافظه و نگهبانی عینیات طبی در دیپو ها و جزوتام های اردو، پوهنوال ډگروال عبدالحی مؤمنی ۱۳۶۹ مطبعه اردو.

۴۵- کتاب تعلیمات موسسات تحصیلی و تعلیمی نظامی وزارت دفاع، پوهاند عبدالحی مؤمنی و مولفین ۱۳۷۵ مطبعه اردو.

۴۶- کتاب فارمسی گلنیک، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۷۹ وزارت صحت عامه.

۴۷- کتاب تعلیمات نامه قابلیت بدنیه اردو، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۲ مطبعه اردو.

۴۸- کتاب تاریخچه طبابت و فارمسی و سیر تکاملی آن در افغانستان، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۴ مطبعه آزادی.

**نوت:** کتاب مذکور جایزه درجه اول مطبوعاتی سال ۱۳۸۵ را بدست آورده است.

۴۹- کتاب آریانا دایرة المعارف جلد اول، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۶ اکادمی علوم مشترک.

۵۰- کتاب پښتو آریانا دایرة المعارف لومړی ټوک، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۶ اکادمی علوم مشترک.

۵۱- کتاب آریانا دایرة المعارف جلد دوم، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۷ اکادمی علوم مشترک.

۵۲- کتاب پښتو آریانا دایرة المعارف دوهم ټوک، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۷ اکادمی علوم مشترک.

۵۳- کتاب آریانا دایرة المعارف جلد سوم، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۹ اکادمی علوم مشترک.

۵۴- کتاب پښتو آریانا دایرة المعارف دریم ټوک، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۹ اکادمی علوم مشترک.

۵۵- کتاب آریانا دایرة المعارف جلد چهارم، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۹۰ اکادمی علوم مشترک.

۵۶- کتاب پښتو آریانا دایرة المعارف څلورم ټوک، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۹۰ اکادمی علوم مشترک.

۵۷- کتاب آریانا دایرة المعارف جلد پنجم، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۹۳ اکادمی علوم مشترک.

۵۸- کتاب پښتو آریانا دایرة المعارف پنځم ټوک، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۹۳ اکادمی علوم مشترک.

۵۹- کتاب اداره و منجمنت صحت عامه افغانستان، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۸ وزارت صحت عامه.

۶۰- کتاب روغتیایي لارښووني، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۹ د اریک گرځنده کتابتون.

۶۱- کتاب د افغانستان طبابت ته لنډه کتنه، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۹ د العباد خیروندویه موسسه.

۶۲- کتاب سګرټ او نسوار ستاسو د روغتیا دښمن، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۹۰ د العباد خیروندویه موسسه.

۶۳- کتاب تاریخ تکامل فارمسی در جهان و افغانستان، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۹۰ د العباد خیروندویه موسسه.

۶۴- اوسنی کتاب، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۹۳.

۶۵- کتاب لست ادویه مجاز، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۶ وزارت صحت عامه مشترک.

۶۶- کتاب لست ملی ادویه اساسی، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۶ وزارت صحت عامه مشترک.

۶۷- کتاب لایحه اکادمی علوم طبی قوای مسلح، پوهنوال عبدالحی مؤمنی ۱۳۶۹.

۶۸- کتاب مقرره حقوق و امتیازات کادر های تخصصی وزارت صحت عامه، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۷۸.

۶۹- لایحه کوریکولیم تکنیشن دواسازی، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۷۸.

۷۰- کوریکولیم پروگرام اکمال تخصص اکادمی علوم طبی قوای مسلح، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۷۹.

۷۱- لوایح، رهنمود ها و کوریکولیم درسی برای اکمال تخصص دوکتوران، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۳.

۷۲- کتاب مراقبت های صحیه افسران، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۳ مشترک.

۷۳- لایحه وظایف مدیریت تحقیقاتی علمی و نشرات اکادمی علوم طبی قوای مسلح، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۳.

۷۴- لایحه وظایف مدیریت تحقیقات علمی ریاست صحیه اردو، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۶.

۷۵- لایحه اکمال تخصص فارمسست ها، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۸ وزارت صحت عامه.

۷۶- کوریکولیم درسی معاون فارمسست ها، پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۸۸.

۷۷- کوریکولیم درسی انستیتوت علوم صحی وزارت صحت عامه پوهاند عبدالحی مؤمنی (انستیتوت علوم صحی پوهاند استاد غضنفر) ۱۳۷۸.

۷۸- کتاب تعلیمات صحی برای نهاد های تعلیمی کشور پوهاند عبدالحی مؤمنی ۱۳۹۳.

۷۹- کتاب روغتیا نعمت او پانکه ده، ترجمه پوهاند عبدالحی مومنی ۱۳۹۳.

۸۰- کتاب رهنمود های صحی، ترجمه پوهاند عبدالحی مومنی ۱۳۹۳.

**اثار طبع ناشده پوهاند عبدالحی مؤمنی:**

۱- آریانا دایرة المعارف دری و پشتوی جلد ششم، ۱۳۸۹ مشترک.

یادښت: د اریانا دایرة المعارف د دویمې دورې کتابونو کې د لیکوال، اېډیتور او ژباړن په توګه کار کړی دی.

۲- د بنسټیزو درملو فارمکولوژی کتاب، ۱۳۸۰.

۳- کتاب اساسات اورگانزیشن اکمالات طبی قوای مسلح، ۱۳٦۹.

٤- کتاب نورم عینیات طبی، ۱۳۷۰.

٥- کتاب قانون طبابت عنعنوی افغانستان، ۱۳۸۱.

٦- کتاب فارمکولوژی، ۱۳۸۰.

۷- کتاب سالنامه دیپارتمنت کلنیک و اورگانزیشن خدمات صحیه، ۱۳۷۷.

۸- کتاب رهنمود تطبیق کمک های اولیه طبی (برای نهاد های تعلیمی کشور)

۹- کتاب کرونولوژی بعضی از واقعات سال ۱۳۹۳.

۱۰-د بنسټیزو درملو کارونې لارښود.

**تبصره:**

- الی اخیر سال ۱۳۹۳ به تعداد ۲۲۰ مقالات علمی و تحقیقاتی موصوف به چاپ رسیده است.
- بالای آثار ده ها دانشمندان تقریظ تحریر نموده است.
- بحیث استاد رهنمای ده ها کادر های علمی وظایف را پیشبرده و اکنون هم ادامه دارد.

**د پوهاند استاد عبدالحی مؤمنی لنډه پېژندنه**



عبدالحی د عبدالرحمن زوی په ۱۳۱۸/۱۲/۱۸هـ.ل کال د ننګرهار ولایت، سرخرود ولسوالي د بالاباغ په کلي کې د یو متدین بزګر کورنۍ کې زیږېدلی دی.

نوموړی ابتدایه ښوونځی پخپل کلي کې په بریالیتوب سره سرته رسولی چې په دغه موده کې یې د فقهي او دري نظم کتابونه د خپل پلار او د کلي دیني عالمانو څخه زده کړل. نوموړی په کال ۱۳۳۲هـ کې حربي ښوونځي کې شامل شوی چې په کال ۱۳۳۹هـ کې د هغې موسسې د دولسم ټولګې څخه په اعلی درجه فارغ شوی دی.

په حربي پوهنتون (کابل بالاحصار کې) د شپږو میاشتو تحصیل څخه وروسته نوموړی د لیاقت د درجې په نظر کې نیولو سره د ۱۳۴۰ هـ کال د وری په میاشت کې، د کابل پوهنتون د طب او فارمسي پوهنځي د فارمسي په رشته کې شامل او په ۱۳۴۳/۱۰/۱۰ کال د پوهنځي څخه په عالي درجه فارغ شوی او د اردو د روغتیا په ریاست کې د یو کلن ستاژ څخه وروسته په وظیفه کې شامل شوی دی.

برسېره پر هغه د هېواد څخه بهر هم تحصیل لری چې د ۱۳۴۶هـ تر ۱۳۴۸هـ کال پوري د تخصص د سند اخستلو لپاره د لیننګراد (سن پطرزبورګ) نظامي طبي اکادمۍ کې د وخت شوروي اتحاد ته سفر کړی دی.

په ۱۳۵۳-۱۳۵۴هـ کې د ماسکو په ښار کې د صحت عامه د اداري اته میاشتني کورس یې تعقیب کړی دی او په ۱۳۶۲-۱۳۶۳هـ کال دري میاشتني کورس یې د ملکي مدافعې اوپراتیفي سوق و اداري په برخه کې د ماسکو په ښار کې تعقیب کړی دی.

همدرانګه په ۱۳۶۷هـ کال د فارمسی علومو د دوکتورا اخستلو لپاره تحقیقاتی پلان جوړ چې د محترم تورنجنرال دوکتور عبدالقیوم طوطاخیل او محترم تورنجنرال اکادمیسن او د طبي علومو عالی داکتر محمد موسی وردګ په لارښوونه سرته ورسیږی او په داخل یا خارج کې ور څخه دفاع وکړی. چې یو څه زیات کار هم ور باندی وشو خو د سیاسی حالاتو له بدلون سره نومړی په دغه کار بریالی نه شو.

**وظایف:**

- ۱۳۴۴-۱۳۴۶هـ کال د پکتیا دریم لمبر قول اردو د دافع هوا د کندک د صحیي مرکز آمر.
- ۱۳۴۶-۱۳۴۸هـ کال په سابقه شوروی اتحاد کې عالی تحصیلات.
- ۱۳۴۸-۱۳۵۳هـ کال د ننګرهار د یولسمي فرقې د روغتون د درملتون آمر.
- ۱۳۵۳-۱۳۵۴هـ کال د قرغې اتمې فرقې د صحیي مرکز آمر.
- ۱۳۵۴-۱۳۵۷هـ کال د اردو مرکزي روغتون (۴۰۰بستر) د فارمسي او طبي اکمالاتو د دیپارتمنت آمر.
- ۱۳۵۷-۱۳۵۹هـ کال د ملی دفاع وزارت د صحیي رئیس.
- ۱۳۵۹-۱۳۶۰هـ کال د دفاع وزارت پیژنتون کې احتیاط او د نهرین شلمی فرقې د صحیي مرکز آمر.
- ۱۳۶۰-۱۳۶۱هـ کال د دفاع وزارت د لوژستیک عمومي ریاست د تفتیش د څانګی غړی.
- ۱۳۶۱-۱۳۶۴هـ کال د افغانستان جمهوري دولت د ملکي مدافعې عمومي ریاست د صحیې او ترنري مدیر.
- ۱۳۶۴-۱۳۷۹هـ کال د کابل طبي انستیتوت نظامي طب پوهنځي د صحیې خدماتو د تکتیک او اورګانزیشن کافدرا کې استاد، سرمعلم او تدریسی آمر.
- ۱۳۷۹-۱۳۸۱هـ کال د افسرانو عالي کورس سرطبیب.

- ۱۳۸۱-۱۳۸۳هـ کال د ستردرستيز صحيي رياست د علمي تحقيقاتو او نشرياتو مديريت مسئول.
- ۱۳۸۱-۱۳۸۳هـ کال د افغانستان د موقتې محترمې اداري رياست د ۷۵۸-۱۳۸۱/۲/۷ حکم مطابق د افغانستان د علومو اکادمی د طبي علومو د مرکز افتخاري رئيس.
- ۱۳۸۳-۱۳۸۷هـ کال د افغانستان د علومو اکادمي د طب د مرکز رئيس.

سره د دې چې د علومو اکادمي د قانون پر اساس لس کاله نور هم د نوموړي د خدمت موده پاتې وه خو د ځيني ملحوظاتو له کبله په ۱۳۸۷ کال تقاعد ته سوق شوی دی.

**رتبوي ترفيعات:**

- د کابل د پوهنتون د نشئت له تاريخ يعنی ۱۳۴۳/۱۰/۱۰ څخه په يو کال اوه مياشتی او شل ورځو قدم سره د دوهم بريدمن په رتبه د پاچا د فرمان پراساس منظور شوی دی.
- په ۱۳۴۵هـ کال لومړی بريدمن رتبې ته ترفيع کړې ده.
- په ۱۳۴۸هـ کال تورن رتبې ته ترفيع کړې ده.
- په ۱۳۵۲هـ کال جګتورن رتبې ته ترفيع کړې ده.
- په ۱۳۵۵هـ کال جګړن رتبې ته ترفيع کړې ده.
- په ۱۳۵۹هـ کال ډګرمن رتبې ته ترفيع کړې ده.
- په ۱۳۶۲هـ کال ډګروال رتبې ته ترفيع کړې ده.

په ۱۳۶۸ کال کې ۲۰فيصده، ۱۳۷۲کال ۲۰فيصده، ۱۳۷۲ کال ۱۵فيصده او په ۱۴۱۹ کال کې ۲۰فيصده؛ ټول ۷۵فيصده بريدجنرالی رتبې معاش تفاوتونه يې اخستي دي او په ۱۳۸۳ کال د ملی دفاع وزارت څخه تقاعد ته سوق شوی دی.

نوموړی د ۱۳۷۹ کال له لومړيو څخه د افغانستان علومو اکادمي سره په رسمي توګه همکارۍ درلود دا ځګه چې د طبي علومو په مرکز کې علمي کادرونه موجود نه وو. او د ۱۳۸۱ کال څخه وروسته د طب د مرکز

